بسم اللہ الرحمن الرحیم

فَاسْئَلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ

# فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاوی فریدیہ

اتم جلد

**افادات**

محدث کبیر فقیہ العصر مفتی اعظم عارف باللہ

مولانا مفتی **محمد فرید** رحمۃ اللہ علیہ

جامعہ دار العلوم حقانیہ اکوڑہ خٹک

**تخریج وترتیب**

مفتی محمد وہاب منگلوری

مدرس دار العلوم صدیقیہ زروبی

**ترجمہ وکمپوزنگ**

مولانا محمد یعقوب نائل

متخصص دار العلوم حقانیہ اکوڑہ خٹک

**زیر سرپرستی**

مولانا حافظ **حسین احمد صدیقی** نقشبندی

مہتمم دار العلوم صدیقیہ زروبی ضلع صوابی

**ناشر**

جدید مکتبہ رشیدیہ

قصہ خوانی بازار محلہ جنگی پشاور

091-2580074

**دکتاب نوم** فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه (اتم جلد)

**افادات** محدث کبیر فقیه العصر مفتی اعظم عارف بالله مولانا
مفتی محمد فرید مجددی زروبوی رحمه الله
شیخ الحدیث وصدر دارالافتاء جامعه دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک

**ترتیب و تخریج** مولانا مفتی محمد وهاب منګلوری نقشبندی
دارالافتاء دارالعلوم صدیقیه

**معاون** مولانا مفتی عصمت الله حقانی

**ترجمه او کمپوزنګ** مولانا محمد یعقوب نائل
متخصص دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک

نومبر ۲۰۱۵ء.............محرم ۱۴۳۶ھ

**زیر سر پرستی** مولانا حافظ حسین احمد صدیقی نقشبندی
مهتمم دارالعلوم صدیقیه زروبی ضلع صوابی (پاکستان)

**ناشر** مکتبه رشیدیه سردار پلازه اکوړه خټک نوشهره
رابطه نمبر ۰۳۴۴-۹۰۸۴۶۹۳

## دمضامینوفهرست

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

## كتاب الهبة

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## كتاب الوديعة



## كتاب العارية

| صفحه | مضمون |
|---|---|



## كتاب اللقطة



## كتاب الغصب

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |



## كتاب الشفعة

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |



## کتاب الرهن

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## کتاب القسمة

| مضمون | صفحه |
|---|---|


## کتاب المزارعة

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |



## كتاب احياء الموات

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| صفحه | مضمون |
|---|---|



## باب الشرب



## کتاب الصید

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |


## كتاب الذبائح

| | |
| --- | --- |

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| صفحه | مضمون |
|---|---|

## كتاب الأضحية

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

| صفحه | مضمون |
| --- | --- |
| ۴۱۹ | د حامله (پلاری) حيوان قرباني او د خرڅولو حکم يې |
| ۴۲۰ | د څناور خصي کول او د قربانۍ حکم يې |
| ۴۲۱ | د خصي حيوان قرباني صحيح کيږي |
| ۴۲۲ | د ښکر ماتي حيوان د قربانۍ حکم |
| ۴۲۳ | د هډوکي د روغوالي پروخت د ښکر ماتي حيوان د قربانۍ حکم |
| ۴۲۳ | د قربانۍ د حيوان ښکرونه نه کېدل او يا يې هم زياتره برخه ماتېدل |
| ۴۲۴ | د ګوډ حيوان د قربانۍ مسئله |
| ۴۲۵ | د ګډي د کوناټي وروسته وړوکې لکۍ د کوناټي جزء دى |
| ۴۲۵ | کمزورى حيوان خرڅول او قوي ورباندې اخيستل |
| ۴۲۶ | د اوښ په قربانۍ کې د اوه (۷) کسانو نه زيات کسان شريکېدل |
| ۴۲۷ | د پلار او زوى په شريکي کار کې قرباني په چا واجب ده؟ |
| ۴۲۷ | د ورونو په شريکي ګټه کې قرباني په چا واجبه ده؟ |
| ۴۲۸ | د اوه کسانو شراکت په دوه غواګانو کې |
| ۴۲۹ | د غوا اخيستلو وروسته نور کسان شريکول |
| ۴۲۹ | په کورني معلوم څناور کې د قربانۍ لپاره نور کسان شريکول |
| ۴۳۰ | په لوى حيوان کې د اوه کسانو نه کم کسان شريکان کېدل |
| ۴۳۱ | په معاون زوى باندې د قربانۍ حکم |
| ۴۳۱ | اومه برخه د ټولو ورونو له طرفه او د نورو شريکانو د قربانۍ حکم |
| ۴۳۲ | په کورني حيوان کې نور کسان شريکول |
| ۴۳۳ | په شريکي مال کې د قربانۍ حکم |

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

| مضمون | صفحه |
|---|---|

## باب جلد الأضحية

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## باب العقیقة



## بابُ الاکلِ والشربِ

## بَابُ النَّظَرِ وَالْمَسِّ

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

قال النبى

صلى الله عليه وسلّم

تهادوا فانّ الهدية تذهب وجز الصدر.

(الحديث)

بسم الله الرحمن الرحيم

## فتاوى ديوبند پاكستان مشهوره په فتاوىٰ فريديه (اتم ټوک)

**الحمد لله وكفىٰ وسلام علىٰ عباده الذين صطفىٰ أما بعد!**

د مفتي صاحب رحمه الله د مړينې وروسته دا منل شوې كرامت او د مخلصو ملګرو د دعاګانو لاس ته راوړنه د فتاوى ديوبند پاكستان چې مشهوره ده په فتاوى فريديه دا دى اوس يې اتم ټوک هم راورسيد، "**والحمد لله علىٰ ذالك**" د پاتې نورو ټوكو د چاپ كېدو لپاره هم د خپلو مخلصو ملګرو نه د دعاګانو په هيله يو.

د فتاوى په دې ټوک کې د كتاب الهبه نه تر كتاب الحظر پورې د فقهي نولس (۱۹) بابونه يو ځای شوي دي، په هره مسئله کې مې د خپل استاذ محترم مفتي سيف الله حقاني دامت بركاتهم د حكم سره سم په زاړه ترتيب يوه يا دوه حوالې هم ليكلې دي، په ځينو ځايونو کې ددې لپاره چې اوږدوالى رانشي يوه حواله مو ليكلې ده، په هغه صورت کې چې كومه صريحه حواله نه وي موندل شوې بيا مو د تصديق په ډول د مفتي صاحب له خولې يو نږدې نظير راوړى تر څو اصلي مسئله پرې ښه روښانه شي.

د مفتي صاحب په خواب کې هيڅ تبديلي نه ده شوې، په سوال کې ځينې هغه شيان چې زياتي يا په مكرر ډول راغلي وو هغه مو ترې لرې كړي دي، مګر دا چې په كوم سوال او خواب کې نوې ګټه نغښتل شوې وه هغه مو بيا هم راوړي دي.

تر خپله وسه پورې مو د حوالو د صحيح راوړلو زيار كړى دى، بيا هم په ځينو ځايونو کې زما د كم علمۍ لامله شايد غلطي امكان ولري.

مفتي صاحب محترم (**رزقه الله تعالىٰ صحةً كاملةً و متعنا الله بطول حياته**) د ناروغۍ سره – سره په دويم ځل ټوله فتاوى وكتل، په ځينو ځايونو کې يې خپله ما كمزوري بنده ته به دا ويل چې په فلاني ځاى کې دا حاشيه او دا زياتونه وكړه.

د مفتي صاحب رحمه الله په پوهه - علمي ميدان کې د زړورتيا او د فتاوى فريديه په تعريف کې د ترتيب كوونكي نه د حد نه زيات تجاوز وشو، ددې لپاره چې ستاسو او د كتاب تر منځ واټن كم شي، راځو خپل اصلي هدف ته.

زه د الله تعالى احسانات كله، چې د هغو خلكو شكريه هم نه شم پوره كولاى چې د علم فقهي دا لويه خزانه يې په څه ډول د كتابونو په مخونو کې ځاى كړه، په خاص ډول د فتاوى فريديه د سرمشر مفتي

سیف الله حقاني صاحب، مولانا حافظ حسین احمد صاحب، په دې فتاوی کې زما مرستندوی مفتي احمد عباس صاحب، ورسره بنه کمپوزر او تصحیح کوونکی مفتي محمد یعقوب (نائل) صاحب چې ددې توک ژباړه، کمپوز او تصحیح یې په یوازې د الله په توفیق سرته ورسول، د ټولو مخلصو ملګرو د علمي خدمت نه یوه نړۍ مننه، د الله تعالی نه ورته د دنیا او اخرت برې غواړم.

په پای کې د خپلو لوستونکو نه هیله لرم تر څو زما ګراني مور جانۍ ته چې اوس په نږدې وخت کې یې ددې فاني نړۍ نه سترګې پټې کړې په خپلو دعاګانو کې خامخا یاده کړي.

د دعا محتاج: انور شاه عفی عنه

خادم العلم والافتاء بدار العلوم الصدیقیه زروبی

۲۴/جمادی الاولی/ ۱۴۳۶هـ/

موافق د

۱۳/ مارچ/ ۲۰۱۵ء/

بسم الله الرحمن الرحيم

قال النبيﷺ صلى الله عليه وسلم تهادوا فانّ الهدية تذهبُ وحز الصدر. الحديث

# كتاب الهبة

## د تمليك او هبې تر منځ فرق

**سوال:** د دين پوهان عالمان په دې اړه څه وايي ايا تمليك او هبه يو شى دى كه بېل- بېل شيان دي؟ د فقهي قانون لاندې جزئي جواب پكار دى. بينوا توجروا

المستفتي: فضل رباني د چترال اوسېدونكى ۱۹۷۰ كال جون مياشت ۲۲ تاريخ

**جواب:** تمليك عام او هبه خاص ده؛ خو د اوسنى اصطلاح سره سم دواړه يو ډول كارول كيږي، (قال فى الدر: الهبة تمليك بلا عوض) په عرف كې بې عوضه د يو شي څوك مالك جوړولو ته هبه ويل كيږي ﴿۱﴾ **وهوالموفق.**

## بچيانو والا زوى ته هبه كول

**سوال:** د دين پوهان او عالمان په دې اړه څه وايي چې زما د بچيانو والا زوى

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: هى تمليك العين مجانا أى بلا عوض.

(الدرالمختار ۴: ۵۶۷، كتاب الهبة)

وفى الهندية: أما تفسيرها شرعا فهى تمليك عين بلاعوض.

(فتاوى هندية ۴: ۳۷۴، كتاب الهبة، الباب الأول)

وقال العلامة خالد الأتاسى: قال السيد الحموى: اعلم أن التمليك يكون فى معنى الهبة ويتم بالقبض وإذا عرى عن القبض والتسليم اختلف العلماء فيه، فقيل يجوز وقيل لا يجوز قياسا على الهبة وأكثر المشائخ على أنه يجوز بدون تسليم وأنه غير الهبة.

(شرح المجلة ۳: ۳۵۱، المادة ۸۳۸)

دی، زه دا اراده لرم چې د خپل ځانه هغه ته درې کنالې ځمکه هبه کړم، په داسې حال کې چې په دې ځمکه دده مصرف هم راغلی آیا زما لپاره دا روا دي؟

بینوا توجروا

المستفتي: فقیر حسین د پېنډۍ اوسېدونکی ۱۹۷۸ کال نهمه میاشت ۱۰ تاریخ

**جواب**: په یاد صورت کې تاسو کولای شی چې خپل زوی ته درې کنالې ځمکه هبه کړئ، ځکه چې دغه ځمکه دده د لاس په ګټې اخیستل شوې وه او دا زوی مو د بچیانو خاوند هم دی، داسې کس ته هبه روا ده. ( کما فی الهندیة ۴: ۳۹۷ ﴿۱﴾) وهو الموفق.

## د ضرر په نیت ځینې بچیان بې برخې پرېښودل مکروه دي

**سوال**: د دین پوهان او عالمان په دې اړه څه وایي چې زید په خپل ژوند کې خپل ټول ملکیت (منقوله او غیر منقوله) د خپلو زامنو پسې لیکي، پیوه لور او ښځه بې برخې پاتې کوي، دده دا عمل د شریعت له مخې ښه کار دی او که بد؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي احمد خان بټل ډاکخانه چنار کوټ، مانسهره ۱۳۸۹ هـ کال رجب میاشت ۴ تاریخ

**جواب**: ددې له امله چې زید ددې مال څښتن دی فتوی دا ده چې ده ته روا دي؛

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ولو وهب رجل شیئا لأولاده فی الصحة وأراد تفضیل البعض علی البعض فی ذلک، لا روایة لهذا فی الأصل...... وروی المعلی عن ابی یوسف رحمه الله تعالی أنه لا بأس به إذا لم یقصد به الإضرار.

(فتاوی هندیة ۴: ۳۹۱، کتاب الهبة، الباب السادس فی الهبة للصغیر)

وقال العلامة الحصکفی: وفی الخانیة لا بأس بتفضیل بعض الأولاد فی المحبة لأنها عمل القلب وکذا فی العطایا إن لم یقصد به الإضرار.

(الدرالمختار ۴: ۵۷۳، کتاب الهبة)

خو په تقوی کې بیا تفصیل دا دی چې د مسلمان سره دا نه دي مناسب چې څوك بغیر له کومې گناه بې برخې کړي.﴿١﴾ (قال رسول الله ﷺ اعدلوا فی اولادکمْ فانّ العدلَ من حقوق الأولاد،وقال لا أشهدُ علی جورٍوقال أشهدُ علیه غیری﴿٢﴾ خو د کراهت دا خبره هغه مهال ده چې نورو وارثانو ته ضرر مقصد وي، که ضرر مقصد نه وي بیا هیڅ کراهت نه لري، لما فی الدرالمختار: لا بأسَ بتفضیل بعض الأولادِ فی المحبّةِ و کذا فی العطایا ان لمْ یقصد به الاضرار فافهم.﴿٣﴾ وهوالموفق.

## هبه په فاسدو شرطونو نه فاسدیږي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید خپله ځمکه خپل تره عمر ته هبه کړه، ورسره یې دا شرط هم ولگولو تر څو چې ته ژوندی یې؛ نو تر هغه پورې ته ترې گټه اخیستلای شې؛ که د مرگ وروسته دې ما ته راکړه؛ خو دېره نبه ده، که نه نو ستا په میراث کې به شمار وي

ددې سره یې دا شرط هم ولگولو چې خپل زوی بکر به د خپل مرگ وروسته ددې ځمکې نه بې برخې کوي؛ آیا داسې هبه صحیح ده؟ په داسې حال کې چې د زید او عمر تر منځ د خپلولۍ رشته هم ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي ادریس تحصیل هري پور ایبټ آباد ۱۴۰۳هـ کال د شعبان میاشت ۲۶ تاریخ

﴿١﴾ فی الهندیة: ولو وهب رجلٌ شیئا لأولاده فی الصحة وأراد تفضیل البعض علی البعض...... عن ابی حنیفة رحمه الله لا بأس به إذا کان التفضیل لزیادة فضل له فی الدین وإن کان سواء یکره وروی المعلی عن ابی یوسف رحمه الله : أنه لا بأس به إذا لم یقصد به الإضرار وإن قصد به الإضرار سوّی بینهم. (فتاوی هندیة ٤: ٣٩١، الباب السادس فی الهبة للصغیر)

﴿٢﴾عن النعمان بن بشیر رضی الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ اتقوا الله واعدلوا فی اولادکم...... فإنی لا أشهد علی جور...... وقال فاشهد علی هذا غیری.

(الصحیح المسلم ٢: ٣٧، باب کراهة تفضیل بعض الأولاد فی الهبة)

﴿٣﴾ (الدر المختار ٤: ٥٧٣، قبیل باب الرجوع فی الهبة)

**جواب:** دا هبه لازمه شوه، هبه کوونکي د رجوع حق نه لري، لکونه الی ذي رحم محرم ﴿۱﴾ دا ډول شرائطو ته هیڅ اعتبار نشته، لأنّ الهبة لا تفسد بالشروط الفاسدة و نظیره العمری والرقبی، فافهم﴿۲﴾. والله اعلم بالصواب

## په چل کاغذ باندې د هبې په لیکلو سره ملکیت نه ثابتیږي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې یو سړی کلاله دی، د هغه وارثان یوازې څلور وراره ګان او درې ورېرې دي، په دغو وارثانو کې یو وراره په درواغه د ملکیت ټول کاغذونه په خپل نوم کړي، کله چې یې تره خبر شو؛ نو سمدستي یې تره ته وویل: چې ما جعلي کاغذونه ټول لرې کړي، ځمکه او هر څه ستا خپل دي؛ بیا وراره کوشش وکړ او په حکومت کې یې ټول کاغذونه په خپل نوم کړه او تره یې په مکمل ډول تری وویست، په داسې حال کې چې اوس یې تره مړ شوی، ددې مسئلې شرعي حل څه دی؟

بینوا توجروا

المستفتي: محمد اسماعیل دیروي متعلم دار العلوم حقانیه ۱۴۰۱هـ کال د ربیع الاول میاشت ۱۲ تاریخ

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: قوله والقاف القرابة فلو وهب لذی رحم محرم منه لا یرجع لحدیث الحاکم مرفوعًا إذا کانت الهبة لذی رحم محرم لم یرجع فیها وصححه وقال علی شرط الشیخین. (البحر الرائق ۲۹۴/۷ کتاب الهبة، باب الرجوع فی الهبة)

﴿۲﴾ فی شرح المجلة: أما لو شرط فیها شرط فاسد فالهبة جائزة والشرط باطل...... اجمعت المتون علی جواز العمری وعدم جواز الرقبی لأن العمری هی أن یجعل داره له عمره فإذا مات ترد علیه فهی هبة منجزة شرط فیها شرط فاسد فتصح ویبطل الشرط، والرقبی هی أن تقول إن مت قبلک فهی لک فهی هبة معلقة بخطر لاحتمال موت الموهوب له قبل الواهب. (شرح المجلة ۳: ۳۶۵، ۳۲۲، المادة: ۸۵۴ کتاب الهبة)

**جواب:** که دې تره دغه ورازه د هبې مع القبض لپاره نه وي خاص کړی؛ نو د دروا غو کاغذونو جوړولو سره څوك د ځمکې مالك نه جوړیږي، لأنّ النبی ﷺ نهى عن الغرر﴿١﴾ وقال من عمل عملاً ليس عليه أمرنا فهو ردٌّ (ترجمة الباب ٢٨٧ بخاري لومړی ټوك)﴿٢﴾و فی شرح المجلة ٤٦٢ : تنعقد الهبة بالايجاب والقبول و تتم بالقبض ،﴿٣﴾ و فيه أيضاً ٤٦٤: يلزم اذن الواهب صراحةً أو دلالةً فی القبضِ﴿٤﴾ وهو الموفق.

## په هبه شوي ځمکه کې انتقال تاواني نه دی

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يو سړی د کونډې ښځې سره واده وکړي، د لومړي خاوند څخه يې يوه لور وه، هغه خاوند يې د ډېرې ځمکې مالك و، د هغه په مړينې يې ښځې ته خپله برخه ورسېده. د وخت په تېرېدو دې ښځې دغه ځمکه خپلو وروڼو ته هبه کړه او هغوی پرې قبضه وکړه؛ خو په څه وجه دغه ځمکه د وروڼو د نوم نه پاتې شوه. (ب) دغه ښځې د بل خاوند نه د مهر غوښتنه وکړه، خاوند د مهر ادا کولو نه انکار وکړ. په ښځې د ډېر درد او تکليف له امله د مرګ څپه راغله او هغه مړه شوه- نکاح هم فسخ نه شوه، آيا خاوند ته

---

﴿١﴾ وفی مشكٰوة المصابيح: عن أبی هريرة قال نهى رسول اللّٰه ﷺ عن بيع الحصاة وعن بيع الغرر. (مشكٰوة المصابيح ٢٤٧، باب المنهى عنها من البيوع، الفصل الأول)

﴿٢﴾ (صحيح البخارى ١: ٢٨٧ كتاب البيوع، باب النجش...... ومن عمل عملا ليس عليه أمرنا فهو رد)

﴿٣﴾ (شرح المجلة ٣: ٣٤٣، المادة ٨٣٧، الفصل الأول فی بيان المسائل المتعلقة بركن الهبة)

﴿٤﴾ (شرح المجلة ٣: ٣٥٣، المادة ٨٤٢، الفصل الأول فی بيان المسائل المتعلقة بركن الهبة)

د ښځې په دغه هبه شوي ځمکه کې کومه برخه رسیږي او که نه؟ بینوا توجروا
المستفتي: محمد اختر جان ضلع راولپنډي ۱۹۶۹م کال، لسمه میاشت ۲۰ تاریخ

**جواب:** هبه خو په ایجاب - قبول او قبضې کولو پوره کیږي. ﴿۱﴾ د انتقال (په نوم کولو) په نه شتون کې شرعي هبې ته هیڅ زیان نه رسیږي او دغه ځمکه د ورونو ملکیت دی (عند وجود شرائط صحة الهبة) ﴿۲﴾ د خاوند ددې ځمکې سره هیڅ تړاو نشته. اګر که نکاح نه وي فسخه شوې. وهو الموفق.

## هبه کوونکی د خپلوانو د هبې څخه رجوع نه شي کولای

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې یو سړی خپله ځمکه د دوو لورګانو تر منځ ووېشي، د بیلګې په ډول څلور جریبه ځمکه مشرې لور ته ورکړي او څلور جریبه ځمکه کشرې لور ته د امضاء سره ورکړي. څه وخت وروسته د مشرې لور څخه ځمکه اخلي او کشرې لور ته یې د جمعې په ورځ د ټولو خلکو په وړاندې هبه کوي. اوس د دواړو لورګانو په دې باندې جنګ دی. مشره وایي چې زما سره د پلار د لاس امضاء کړی خط دی چې ځمکه یې ماته راکړې او کشره لور یې وایي د جمعې په ورځ د دومره خلکو په وړاندې مې پلار د خپل زوړ خط څخه رجوع کړې وه او ټوله ځمکه یې ماته راکړې وه، آیا مشره لور د کشرې لور څخه خپله ځمکه اخیستلای شي او که نه؟ د پلار رجوع یې صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا
المستفتي: عبید الله چترالي ۱۹۷۰م کال، د جون میاشت ۲۲ تاریخ

---

﴿۱﴾ فی شرح المجلة: تنعقد الهبة بالإیجاب والقبول وتتم بالقبض.
(شرح المجلة ۳: ۳۴۴، المادة ۸۳۷، الفصل الأول في بیان المسائل المتعلقة برکن الهبة)
﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفي: وشرائط صحتها في الواهب العقل والبلوغ والملک......
وشرائط صحتها في الموهوب ان یکون مقبوضا غیر مشاع ممیزا غیر مشغول.
(الدر المختار ۴: ۵۶۷، کتاب الهبة)

**جواب**: که پلار د بشلو وروسته لور ته شرعي قبضه ورکړې وي بيا د پلار رجوع نه صحيح کيږي، کشره لور يوازې د خپلې برخې مالکه ده. قال فی الهداية ٣: ٣٧٤: وان وهب هبةً لذی رحمٍ محرمٍ منهُ لم يرجع فيها لقوله عليه السلام اذا كانت الهبةُ لـذی رحمٍ محرمٍ لم يرجع فيها﴿١﴾رواه البيهقی والـدار قطـنی والحـاكم﴿٢﴾و بمعنـاه فی البحر﴿٣﴾والنهر والفتح والبدائع و ردالمحتار وغيره فليراجع الی كتب الفقه. فقط

## امام ته د ورکړل شوې ځمکې حکم

**سوال**: د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يو مولوي صاحب ته د پلار نيکه نه يوه داسې ځمکه پاتې ده چې هغوی ته يې قوم د امامتی له امله ورکړې وه، اوس مهال د قوم او مولوي صاحب تر منځ شخړه پېښه شوې، مولوي صاحب ورته وايي چې دا ځمکه را ته د پلار او نيکه نه په ميراث کې راپاتې ده او قوم يې وايي چې دا مو ږ ستا نيکه ته د امامتی له امله ورکړې وه، ددې سره - سره به مو هغه ته مياشتينۍ تنخا هم ورکوله. په داسې حال کې چې د يوې ډلې سره هم شاهدان نشته، مهرباني وکړئ په شرعي مسئلې مو پوه کړئ. بينوا توجروا

المستفتي آفتاب الدين د تخت بهايي ضلع مردان اوسيدونکی ١٤٩٠ هـ کال،

د رجب مياشت ١٥ تاريخ

---

﴿١﴾ (الهداية ٣: ٢٩٠، كتاب الهبة ،باب ما يصح رجوعه ومالا يصح)

﴿١﴾ قال العلامة أبو الفضل أحمد بن علی العسقلانی: حديث إذا كانت الهبة لذی رحم محرم لم يرجع فيها، رواه الحاكم والدارقطنی والبيهقی من طريق الحسن عن سمرة بهذا. (الدراية فی تخريج أحاديث الهداية ٣: ٢٩٠، كتاب الهبة)

﴿٣﴾وفی البحر الرائق: قوله والقاف القرابة فلو وهب لذی رحم محرم منه لا يرجع لحديث الحاكم مرفوعًا إذا كانت الهبة لذی رحم محرم لم يرجع فيها. (البحر الرائق ٧: ٢٩٣، كتاب الهبة، باب الرجوع فی الهبة)(ومثله فی فتح القدير ٧: ٥٠٣، باب الرجوع فی الهبة، والبدائع ٥: ١٩٠، باب الرجوع، وردالمحتار ٣: ٥٧٨، باب الرجوع فی الهبة)

**جواب:** په مخکنیو زمانو کې چې به امام ته کومې ځمکې ورکول کېدې په عاريت نه، بلکې د تملیك او هبې په نیت ورکول کېدې، ﴿۱﴾ ځکه چې هغوی دا اعتماد کولو چې د همېش لپاره به دا سرې زموږ امام وي، د همدې له امله موږ مخکې ويلي دي چې هبه په فاسدو شرطونو سره نه فاسدېږي، بلکې فاسد شرط خپله باطل وي، ﴿۲﴾ ددې له امله دغه ځمکه د امام او د هغه سره د نورو وارثانو شريکه ځمکه ده، قوم هيڅکله نه شي کولای چې په ظلم دغه ځمکه د مولوي صاحب څخه واخلي. فقط

## مهر خپل ورور ته هبه کول روا دي

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې زما د خور نکاح زما په وړوکوالي کې زما ترونو له چا سره کړې وه، د هغه وخت مناسب مهر يې ورته ټاکلى و، که اوس زما خور دغه مهر ماته هبه کړي؛ نو آيا د دغه مهر اخيستل زما لپاره روا دي او که ناروا؟ په داسې حال کې چې زه خپله د ديني علم زده کړيال يم او کله - کله جهادي مينه هم راباندې غالبه شي بيا جهاد ته ځم، اميد لرم چې په ځواب به مو ډېر زر ونازوئ. بينوا توجروا

المستفتي: مرسلين ضلع بنو، دوسلي ډاکخانه د ولي کلي اوسېدونکی، ۱۹۸۷ م کال، اتمه مياشت ۳۰ تاريخ

**جواب:** که دا روپۍ قيمت نه، بلکې مهر وي؛ نو د ښځې لپاره يې اخيستل، هبه کول او هر ډول کارول يې روا دي، ځکه چې دا يې مالکه ده او مالك خپل مال هر ډول کارولای شي. ﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: وتتم الهبة بالقبض الكامل.

(الدرالمختار ۴: ۵۶۹، كتاب الهبة)

﴿۲﴾ وأيضا قال: وحكمها أنها لا تبطل بالشروط الفاسدة فهبة عبد على أن يعتقه تصح ويبطل الشرط.

(الدرالمختار ۴: ۵۶۷، كتاب الهبة)

﴿۳﴾ وفي المرقاة: وعن أبي حرة الرقاشي عن عمه قال قال رسول الله ﷺ ألا لا تظلموا، ألا لا يحل مال امرئ إلا بطيب نفس أي بأمر أو رضا منه.

(مرقاة المفاتيح ۶: ۱۱۸، باب الغصب والعارية)

## د هبه کوونکي اوچاته چې هبه شوې مرینه یې د رجوع څخه مانع ده

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید پنځوس کاله وړاندې یو څه ځمکه زما پلار ته هبه کړې وه، د هغه وروسته یې زامنو هم دغه ځمکه په خپله خوښه زما سره پاتې کړه او س مهال د هغه لمسیو په زوره دغه ځمکه په خپل نوم کړې؛ نو اوس د دغه هبه شوي ځمکې د پیداوار څخه ګټه اخیستل د دوی لپاره روا دي او که ناروا؟ د هغوی لمونځونه، روژې او حجونه قبول دي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ۱۹۷۴م کال، ۱۱ میاشت ۱۷ تاریخ

**جواب:** په شرط ددې چې ربښتیا او ثابت وي، د زید د لمسیانو لپاره ددې ځمکې اخیستل ناروا دي، **لأنّ الهبةَ تلزمُ بالموتِ كما في الدرالمختار: ويمنع الرجوع فيها حروفٌ (دمع خزقة) والميمُ موتُ أحــد العاقـدين،** هامش رد المحتار ۴: ۵۱۵،۵۱۶، ﴿۱﴾ ددې له امله د زید د لمسیانو لپاره ددې ځمکې د پیداوار نه ګټه اخیستل ناروا دي ﴿۲﴾ وهوالموفق.

## په پوره ډول قبضې نه ورکولو له امله هبه نه منل کیږي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زما پلار پنځوس کاله وړاندې د خپلې ځمکې څخه څه برخه د خپلې ښځې په نوم ولیکل او څه نوره ځمکه یې د نورو بچیانو په نوم ولیکل، یو زوی او یوه لور یې بې برخې پرېښودل، پاتې ځمکه یې په خپل ژوند کې ټولو وارثانو ته هبه کړه؛ خو دا ډېره لږه ځمکه وه او په دې کې یې د خپلې ښځې هبه شوې ځمکه یو خوا ته پرېښوده،

﴿۱﴾ (الدر المختار ۳: ۷۶، ۵۷۳، باب الرجوع في الهبة، كتاب الهبة)

﴿۲﴾ وفي المرقاة: عن أبي حرة الرقاشي عن عمّه قال قال رسول الله ﷺ ألا لا تظلموا، ألا لا يحل مال امرئ إلا بطيب نفس أي بأمر أو رضا منه.

(مرقاة المفاتيح ۶: ۱۰۸، باب الغصب والعارية)

د مرګ نه مخکې د بوډا والي په وخت يې دغه ځمکه د خپل بل زوی په نوم کړه، اوس په ټوله شريکې ځمکه هغه تصرف کوي او له پيداوار څخه يې ګټه اخلي اوس چې کله د ځمکې د وېشلو وخت رارسېدلی، د کاغذونو د کتلو وروسته پورتنۍ صورت مخې ته راغی، يو ورور او يوه خور دواړه د خپل درېيم ورور څخه غوښتنه کوي او وايي کومه ځمکه چې پلار د عمر په پای کې ستا په نوم هبه کړې، هغه مونږ ته ووېشه: درېيم ورور يې انکار کوي، اوس مهال ټوله ځمکه د دويم ورور په ولکه کې ده او په وخت باندې زمونږ پلار درېيم ورور ته قبضه نه وه ورکړې، اوس مونږ ستاسو څخه ددې مسئلې شرعي حل غواړو. بينوا توجروا

المستفتي حکيم هارون شنکياري هزاره ۱۴۰۱ هـ کال. ربيع الاول مياشت ۲۹ تاريخ

**جواب**: که پلار دغه ځينو وراثانو ته ځمکه هبه کړې وي؛ خو شرعي قبضه يې ورباندې نه وي کړې، داسې هبې ته هيڅ اعتبار نشته، كما في رد المحتار ۴: ۵۱۱، فحيث علمت أنه ظاهر الرواية و أنّه نصّ عليه محمدٌ و رووهُ عنْ أبي حيفةَ رحمه الله ظهر أنه الذى عليه العمل﴿۱﴾ که پلار د مالك کېدو په نيت ورکړې وي بيا يې هبه صحيح ده. لما في التكملة ۲: ۴۶۱، اعلمْ أنّ التمليك يكونُ في معنى الهبة و يتمُّ بالقبضِ و اذا عرى عنِ القبضِ والتسليمِ اختلفَ العلماءُ فيه، فقيلَ يجوزُ وقيلَ لا يجوزُ قياساً على الهبة و اكثر المشائخِ على أنّه يجوزُ بدونِ التسليمِ و أنّه غير الهبة﴿۲﴾. وهوالموفق.

## د معمر انسان د عمری ځمکې هبه کول

**سوال**: ددين عالمان په دې اړه څه وايي چې ورونو د شريکې ځمکې د وېشلو

﴿۱﴾ (ردالمحتار ۴: ۵۷۰ كتاب الهبة)

﴿۲﴾ (تكملة ردالمحتار ۲: ۳۸۶ مطلب في معنى التمليك)

پر مهال دوه کناله ځمکه خپلې مور ته ورکړه، زموږ مور دغه ځمکه يو ديني عالم ته ورکړه، دغه عالم د صدقې په نيت زموږ مور ته درې سوه روپۍ ورکړې، په داسې حال کې چې دغه عالم زموږ د مور لمسی دی، زموږ مور ده ته په دې نيت ځمکه ورکړې وه چې دی خپله ورځنۍ اړتيا وربانديې پوره کړي د هبې په نيت نه او زموږ مور ته دعاګانې وکړي، د همدې له امله موږ وايو چې د هغې د مرګ وروسته دغه ځمکه بېرته موږ ته حواله کړي، آيا د دغه عالم لپاره ددې ځمکې نه ګټه اخيستل روا دي؟ په داسې حال کې چې دغه عالم زموږ د مور د مرينې وروسته په زرګونه روپۍ ددې پسې خيرات کړي بينوا توجروا

المستفتي: حاجي محمد صاحب مدرس اعلى مدرسه نظاميه ميرانشاه شمالي وزيرستان

**جواب:** په ظاهره دا معامله د عمرى هبه ده، د تصريح سره سم د فقهي او حديثو د روايتونو مطابق ددې معمر له (مور) دايمي ملکيت ګرځېدلی دی، ﴿۱﴾ او ددې معمر له (مور) لمسي يا لمسی ته هبه کول صحيح او ناقابل د رجوع دي ﴿۲﴾. وهو الموفق.

## د ځمکې په هبه کولو کې د بلې ځمکې ورکولو شرط لګول

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يوې حقيقي خور خپله ځمکه دوه ورونو ته د امضاء وروسته ورکړه، په حکومتي کاغذونو کې دا وينا ثابته ده، دواړو ورونو د هبې

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجيم: قوله وصح العمرى للمعمرله حال حياته ولورثته بعده وهى أن يجعل داره له عمره، فإذا مات يرد عليه لحديث الشيخين مرفوعًا العمرى لمن وهبت له. (البحر الرائق ۷: ۲۹۶، ۲۹۷ کتاب الهبة، قبيل کتاب الإجارة)

﴿۲﴾ قال العلامة المرغيناني: وإن وهب هبة لذى رحم محرم منه لم يرجع فيها لقوله عليه السلام إذا كانت الهبة لذى رحم محرم لم يرجع فيها. (الهداية ۳: ۲۹۰ کتاب الهبة، باب مايصح رجوعه ومالايصح)

پر مهال دا اقرار وکړ چې د موهوبه ځمکې په بدل کې به مورږ څه ځمکه خپلې خورکې ته ورکوو، د وخت په تېرېدو حکومت د دواړو ورونو نه دا ځمکه واخیسته او په پنجاب کې یې ددې په بدل کې نوره ځمکه ورکړه، خور یې د پنجاب په ځمکه دعوه وکړه چې په دې کې زما برخه ده، آیا خور یې د خپلې هبه شوې ځمکې څخه رجوع کولای شي او په بدل والا ځمکه کې یې برخه جوړېږي او که نه؟ په جواب ورکولو به ډېر زیات خوښ شم. بینوا توجروا

المستفتي: صاحبزاده عبد القیوم ډاکخانه توپی ضلع مردان ۱۹۸۲م جولائي ۵ تاریخ

**جواب:** ددې بدلې اندازه نامعلومه ده او فاسد شرط دی. ددې له امله د بښخې هبه صحیح او نافذه ده. دا فاسد شرط خپله ساقط دی هیڅ اعتبار نه لري. کما فی شرح التنویر علی هامش رد المحتار ۴: ۵۰۹ و حکمها انها لا تبطل بالشرط الفاسد ..... و یبطل الشرط ﴿۱﴾ په ورونو یې لازمه نه ده چې خامخا به خور ته ددې ځمکې په بدل کې نوره ځمکه ورکوي وهوالموفق

## د هبې د پوره کېدو لپاره قبول او قبضه ضروري ده

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې ماته مې پلار یو ځای کور په کال ۱۹۷۳م کې هبه کړ و، دغه وخت کور کې کرایه دار اوسېدو، زمونږ د پلار په امر دوه – درې میاشتې وروسته زمونږ مشر ورور ممتاز دې کور ته لاړ. څه وخت وروسته زما دوه واړه ورونه دې کور ته راغلل. بیا څه وخت وروسته زما وار راغی او زه دې کور ته راغلم. د کرایه دار روپې به زمونږ پلار

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش رد المحتار ۴: ۵۶۷ کتاب الهبة)

وفی الهندیة: قال أصحابنا جمیعًا إذا وهب هبة وشرط فیها شرطًا فاسدًا فالهبة جائزة والشرط باطل.

(فتاوی هندیة ۴: ۳۹۶، الباب الثامن فی حکم الشرط فی الهبة)

خپله په خپلو ارتیاوو کې مصرفولې، اوس سوال دا دی چې آیا زموږ د پلار دا هبه صحیح ده او که نه؟ غواړم چې جواب راته د کاغذ پر مخ د لیك په دول راکړئ: بینوا توجروا

المستفتي: عمر دراز ضلع بنو

**جواب:** که په لیکل شوي صورت کې قبول او قبضه دواړه په یقیني دول ثابت وي؛ نو هبه صحیح ده، که قبول او قبضه په یقیني دلیل سره نه وي ثابته؛ نو هبې ته یې هیڅ اعتبار نشته. کما فی شرح التنویر: وشرائط صحتها فی الموهوب أنْ یکونَ مقبوضاً غیر مشاعٍ ممیزاً غیر مشغولٍ و رکنها هوالایجاب والقبول کما سیجیئ(هامش ردالمحتار۵: ۶۸۸)﴿۱﴾وهوالموفق.

## په ترکه کې د وېش نه وړاندې تخارج روا او هبه ناروا ده

**سوال:** مایقول العلماء الکرامُ فی المسئلة الآتیة: مات رجلٌ و بقی منه العقار وغیره و وهب بعض الورثة الی بعضه حصةَ نفسه قبل القبضِ بعد تعین الحصص، فهل یصحُ هذه الهبةُ فی المنقول وغیر المنقول أمْ یصحُ فی غیر المنقول دون المنقولِ أوْ بالعکسِ؟ بینوا توجروا

المستفتي: سید صفوة الله بلوچستاني

**جواب:** اعلمْ أنّ بعض الورثة اذا اخذ شیئاً معیناً من الترکة و یدع الباقي

﴿۱﴾(الدرالمختار ۴: ۵۶۷ کتاب الهبة)

وفی الهندیة: وأما رکنها فقول الواهب وهبت...... والقبول شرط ثبوت الملک للموهوب له...... وأما شرائطها فمنها أن یکون الموهوب مقبوضا حتی لا یثبت الملک للموهوب له قبل القبض.

(فتاوٰی هندیة ۴: ۳۷۴، کتاب الهبة، الباب الأول)

لسائر الورثة فهذا جائزٌ و يقال له التخارج صرح بجوازه فی جمیع کتب الفقه فلیراجع الی ابواب الصلح «۱» و اما الهبة فجائزٌ بعد التقسیم صرح بـه فی هبة کتب الفقهِ «۲» و لا حاجةَ الی نقل العبارات لکن لا بـد انْ یکـونَ التقسیمُ باذن الورثة . فقط

## د بچیانو خپل پلار ته ورکړې تنخا د چا ده؟

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وايي چې د زيد يو څو زامن دي، په ځينو يې ښه تعليمونه کړي دي او ښه تنخاګانې هم اخلي، د خپل پلار سره په يو شريك کور کې د ژوند شيې او ورځې سبا کوي. اوس سوال دا دی چې آيا دغه تنخاګانې به د پلار وي او که د زامنو؟ زموږ په ځای کې ددې مسئلې په اړه عالمان د يو بل سره اختلاف لري. بينوا توجروا

المستفتي مولانا حاجي محمد صاحب مدرس اعلی مدرسه نظاميه ميرانشاه

۱۹۸۲م نومبر ۲ تاريخ

**جواب:** که بچيانو دغه تنخا پلار ته د هبې او تمليك په نيت ورکړې وي؛ نو پلار به

---

«۱» قال العلامة العینی: واذا كانت التركة بين ورثة فاخرجوا أحدهم منها بمال أعطوه إياه والتركة عقار أو عروض جاز...... لأنه أمكن تصحيحه بيعا...... وفيه اى وفى جواز التخارج اثر عثمان رضى الله تعالى عنه فإنه صالح تماضر الأشجعية امراة عبد الرحمن بن عوف رضى الله تعالى عنه عن ربع ثمنها على ثمانين الف دينار.

(البناية على الهداية ۱۲: ۳۶۰ باب الصلح فى الدين، فصل فى التخارج)

«۲» قال العلامة الحصكفى: (وهب إثنان دارًا لواحدصح) لعدم الشيوع (وبقلبه) لكبيرين (لا) عنده للشيوع فيما يحتمل القسمة، أما مالا يحتمله كالبيت فيصح اتفاقا.

(الدرالمختار ۴: ۵۷۳ قبيل باب الرجوع فى الهبة)

شرعي مالك دی. ﴿۱﴾ که پلار ته يې اباحة ورکړې وي؛ نو پلار به يې ساتندوی وي مالك به يې نه وي. والمعتبر نية الدافع دون الآخذ كما فى التكملة ۱ : ۳۵۹ : القول لدافع المال لا للآخذ ﴿۲﴾﴿۳﴾. وهو الموفق.

## د نيکه لپاره د خپل لمسي ښځې ته په مهر کې ځمکه ورکول

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې ستار خان د خپل لمسي اجمير ښځې ته په مهر کې اته مرلې ځمکه ورکړه، په داسې حال کې چې د اجمير د ورونو ښځو ته يې هيڅ هم نه دي ورکړي. آيا دا پردی حق وهل دي او که نه؟

بينوا توجروا

المستفتي: حاجي فيض الله خان جهانګيره ۱۹۸۲م ۷ مياشت ۱۲ تاريخ

**جواب:** دغه نيکه چې د لمسي ښځې ته په مهر کې کومه ځمکه ورکړې ده هغه صحيح او نافذه ده؛ خو د بچيانو او لمسيانو تر منځ په بې ځايه فرق کولو سره به يې په اخرت کې پوښتنه کيږي؛ خو په دنيا کې يې حکم دا دی

﴿۱﴾ فى شرح المجلة: يملك الموهوب له الموهوب بالقبض المراد بالقبض القبض الكامل...... والقبض الكامل فيما يحتمل القسمة بالقسمة.

(شرح المجلة ۳: ۳۸۱، المادة ۸۶۱ الباب الثالث فى بيان أحكام الهبة)

وفى الهندية: ولا يتم حكم الهبة إلا مقبوضه...... والقبض الذى يتعلق به تمام الهبة وثبوت حكمها القبض بإذن المالك والإذن تارةً يثبت نصًا وصريحًا وتارةً يثبت دلالةً.

(فتاوى هندية ۴: ۳۷۷ كتاب الهبة، الباب الثانى فيما يجوز من الهبة ومالايجوز)

﴿۲﴾ وفى تكملة ردالمحتار :القول للدافع لأنه أعلم بجهة الدفع.

(تكملة ردالمحتار ۱ : ۳۹۱، مطلب واقعة الفتوى...... فروع)

﴿۳﴾ تنخواہیں تنخواہ دار بیٹوں ہی کی ہیں، لکونها حاصلة بكسبهم الذى مستقلون فيه.

(مفتى سيف الله حقانى)

چې هبه او بل څوك يې مالك کړځول دواړه صحيح دي. ونظيره ما في رد المحتار ٢: ٤٩١ ، قوله ولا رجوع للأب الخ، أى لو أدى الأب المهر من مال نفسه لا رجوع على ابنه الصغير﴿١﴾وفي الهندية ٤: ٣٩٧ ، رجلٌ وهبَ في صحته كل المال للولد جاز في القضاء و يكون آثماً فيما صنع﴿٢﴾ كذا في فتاوى قاضي خان﴿٣﴾.والله اعلم

## د ټول مال وېشلو وروسته نوي پيدا شوي بچي د يو ورور په برخه کې شريکول

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يو سړي خپله ټوله ځمکه په خپلو بچيانو ووېشل، دده د وفات وروسته خداى پاك بل بچى ورکړ، سره له دې چې خپلوانو ورته ډېر وويل: چې خداى پاك به بل اولاد درکړي؛ نو اوس ټوله ځمکه مه وېشه! خو پلار يې د مرينې پر مهال يې دا وصيت کړى ؤ چې که زما بل اولاد پيدا شي؛ نو هغه به د فلانى (زوی) په برخه کې شريك وي. آيا ددې نوي زېږېدونکي ماشوم برخه ددې نورو ورونو سره شته او که نه؟بينوا توجروا

المستفتي: محمد کريم مدرسه صوفى آباد ډاکخانه کوټها تحصيل صوابى

**جواب:** کله چې پلار د ټولو ورونو تر منځ خپل مال ووېشلو او هر ورور ورباندې قبضه هم وکړه؛ نو د ټولو هبه تامه وګرځېده. په دې کې بيا رجوع نه صحيح کېږي ،في الدرالمختار: وتتم الهبةُ بالقبضِ الكاملِ الخ (هامش رد المحتار ٤: ٥١٠)﴿٤﴾و بمعناه في جميع كتب الفتاوى﴿٥﴾ و فيه أيضاً والقافُ

﴿١﴾ (ردالمحتار ٢: ٣٨٨ مطلب في ضمان الولي المهر)

﴿٢﴾ (فتاوى هنديه ٤: ٣٩١ الباب السادس في الهبة للصغير)

﴿٣﴾ (قاضي خان على هامش الهندية ٣: ٢٧٩ فصل في هبة الوالد لولده والهبة للصغير)

﴿٤﴾(الدرالمختار ٤: ٥٦٩ كتاب الهبة)

﴿٥﴾ في شرح المجلة: وتتم الهبة إذا قبض الموهوب له في مجلس الهبة المال الموهوب.

(شرح المجلة ٣: ٣٥٣ المادة ٨٤١)

القرابةُ فلو وهب لذی رحمٍ محرمٍ منه نسباً ولوْ ذمیا أو مستأمناً لا یرجعُ ، (هامش رد المحتار ۴: ۵۱۸)﴿۱﴾

کوم ماشوم چې د هبې وروسته پیدا شي، په وېشل شوي مال کې یې هیڅ برخه نشته. دغه راز پلار چې کومه خبره کړې (چې دا ماشوم به د فلاني په مال کې شریك وي) د هغې هیڅ اعتبار نشته. لأنه رجوع فی بعض الموهوبِ و هو لا یصحُّ لوجود القرابةِ المحرمةِ کما مرَّ﴿۲﴾وهوالموفق

## د وېش وروسته ورور ته د هبه شوي ځمکې څخه رجوع کول

**سوال**: د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې د زید خور (چې هوښیاره او بالغه ده) د پلار نه پاتې شوی میراث په خپله خوښه د شاهدانو په وړاندې خپل ورور ته هبه کړ. اوس یې ورور (زید) په خپله موهوبه ځمکه واکمن دی، د زید خور په خپله خبره اوس پښېمانه ده. آیا په شریعت کې ددې رجوع ته اعتبار شته او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم...

**جواب**: که یقیني دا هبه د تقسیم وروسته شوې وي، رجوع نه شي کولای، که داسې نه وي بیا رجوع کولای شي. و فی الدر المختار : و تتم الهبة بالقبض الکامل فی محوزٍ مفرغٍ مقسومٍ و مشاعٍ لا یبقی منتفعاً به بعد أنْ یقسمَ ، وقال بعد اسطرٍ : ولو سلمه شائعاً لا یملکه فلا ینفذ تصرفه فیه، انتهی مختصراً ، (و فی ردالمختار ۴: ۷۰۳) قوله ولو سلمه شائعاً الخ قال فی الفتاوی الخیریةِ : ولا یفید الملك فی ظاهر الروایة ، قال الزیلعی ولو سلمه شائعاً لا یملکه حتیٰ لا ینفذَ

﴿۱﴾ (الدرالمختار ۴: ۵۷۸ باب الرجوع فی الهبة)

﴿۲﴾ قال العلامة المرغیناني :وإن وهب هبة لذی رحم محرم منه لم یرجع فیها لقوله علیه السلام إذا کانت الهبة لذی رحم محرم لم یرجع فیها.

(الهدایة ۳: ۲۹۰ کتاب الهبة، باب ما یصح رجوعه وما لا یصح)

تصرفه فيكون مضموناً عليه ، و ينفذ فيه تصرف الواهب ذكره الطحاوی و قاضيخان ، وروی عن ابن رستم مثله و ذكر عصام أنها تفيد الملك و به أخذ بعض المشائخ الخ و مع افادتها للملك عند هذا البعض أجمع الكل على أنّ للواهب استردادها من الموهوب له ولو كان ذا رحمٍ محرمٍ من الواهب الخ «۱» . وهو الموفق

## د روغتيا پر مهال هر سړی د خپل مال ښتنن جوړل روا دي

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يو سړی خپل ټول مال د داسې سړي په نوم کوي چې د مرګ وروسته د هغه وارث نه جوړيږي. دا ددې له امله چې په ژوند کې يې دده ډېر خدمت کړی وي. نور وارثان هم پرې خفه نه دي، اوس سوال دا دی چې آيا د نورو وارثانو څخه اجازه غوښتل لازمي دي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: ظهور شاه اکوړه خټک تحصيل نوشهره ۱۹۸۵م / ۷/ ۱۸

**جواب:** د روغتيا پرمهال خپل مال د هر چا په نوم کول روا دي، وارث يې وي او که نه وي، ټول مال ورکوي او که نيم مال ورکوي. وارثان يې خوشحاله وي او که خفه. ددې هيڅ اعتبار نشته «۲». وهو الموفق

---

«۱» (ردالمحتار مع الدر المختار ۴: ۵۷۰ كتاب الهبة)

«۲» قال العلامة وهبة الزحيلي: والهبة مشروعة مندوب إليها لقوله تعالى: فان طبن لكم عن شيئ منه نفسا فكلوه هنيئاً مريئاً...... وانعقد الإجماع على استحباب الهبة بجميع أنواعها، قال الله تعالى: وتعاونوا على البر والتقوى، وهي للأب افضل...... واتفق الأئمة على أن الهبة تصح بالإيجاب والقبول والقبض. (الفقه الإسلامي وادلته ۵: ۳۹۸۱، ۳۹۸۲ كتاب الهبة، المبحث الأول)

وقال العلامة المرغيناني: الهبة عقد مشروع...... (بقيه حاشيه اګلے صفحه پر)

## د مرګي حاله انسان هبه نه صحيح کيږي

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يو سړي د مرګ پرمهال خپل ټول مال خپلې ښځې او يوې لور ته د ميراث په ډول ورووېشلو، په داسې حال کې چې ځينې وارثان يې د وېش پرمهال نه وو، ځينې يې نابالغه وو، د پلار د مړينې وروسته يې نابالغه ماشومان هم بالغان شول، اوس دا نابالغه ماشومان چې د وېش پرمهال نه وو د خپلې برخې د ميراث دعوه کوي. د پلار په وېش خفه دي او لور يې د پلار په وېش خوښه ده. آيا ددې وړوکي ماشوم د يو ځل وېش وروسته د دويم ځل وېش غوښتنې حق لري او که نه؟

بينوا توجروا

المستفتي: محمد نواز خان ۱۹۷۶م/۱۰/۱

**جواب:** په ډاګه دي وي چې دا تقسيم ميراث نه بلکې هبه ده، د مړينې پرمهال چاته په هبه باندې څه شی ورکول هغه وخت نه صحيح کيږي چې وارثان يې پرې خوش نه وي، په ياد صورت کې نابالغ د رضا اهليت نه لري، ددې له امله يې هبه او تقسيم نه صحيح کيږي. په ټولو وارثانو (ښځه، زامن او لورګانو) به له سره وېشل کيږي. کما في الهداية ۴: ۶۵۵، و لا يجوز لوارثه الا أن يجيزها الورثة ﴿۱﴾واهبةُ من المريض للوارث في هذا نظيره الوصية﴿۲﴾و بمعناه في جميع كتب الفتاوى﴿۳﴾.وهو الموفق

(بقيه حاشيه) لقوله عليه السلام تهادوا تحابوا، وعلى ذلك العقد الإجماع وتصح بالإيجاب والقبول والقبض أما الإيجاب والقبول فلأنه عقد، والعقد ينعقد بالإيجاب والقبول والقبض لابد منه لثبوت الملك. (الهداية ۳:۲۸۳ كتاب الهبة)

﴿۱﴾ (الهداية ۴:۶۵۵ كتاب الوصايا)

﴿۲﴾ في مجمع الأنهر: الهبة والصدقة من المريض لوارثه نظير الوصية لأنه وصية حكما حتى تعتبر من الثلث. (مجمع الأنهر ۴:۴۲۳ كتاب الوصايا)

﴿۳﴾ قال العلامة سليم رستم باز: إذا وهب..... (بقيه حاشيه اګلے صفحه پر)

## د موهوب له مړینه د هبې څخه رجوع منع کوي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وايي چې زما پلار یو تره درلود چې نوم یې محمد یونس ؤ، زموږ د پلار تره زموږ تره ته یوه لور ورکړه، کله چې محمد یونس مړ شو، زموږ تره د خپل خسر په کور کې د هغه د بچیانو سره ژوند تېرولو، د محمد یونس نورې څلور لورګانې وې چې هغوی خپله ټوله ځمکه زموږ ددې تره په نوم کړه، زموږ د تره د مرګ وروسته ځمکه زموږ د پلار نوم ته انتقال شوه.

دغه ښځو (چې د محمد یونس لورګانې دي) زموږ پلار ته وویل چې ته ددې ځمکې ځینې برخه خرڅه کړه او په موږ یې مصرف کړه، زموږ پلار ورته وویل چې دا خو زما د ورور خپل حق دی، ددې خبرې په اورېدو ښځو وویل چې زموږ ځمکه وه بېرته یې موږ ته وسپاره؛

زموږ پلار ورته وویل چې دا ځمکه خو اوس زما په نوم ده، هغوی دوسیه (مقدمه) جوړه کړه او عدالت ته یې وښوده، کله چې هغوی په عدالت کې ملامتې شوې؛ نو په ځینو سپینږیرو یې صلح کول غوښتل، اوس مهال زموږ پلار هم مړ شوی او ځمکه زموږ په نوم ده. آیا اوس دا ښځې د ځمکې د غوښتلو حق لري او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ۱۹۷۵م /جون/ ۹

**جواب:** دهغه وخت نه چې دا ځمکه د امین الحق په نوم شوه، اوس دا ښځې په دې ځمکه کې

---

(بقیه حاشیه) واحد فی مرض موته شیئاً لأحد ورثته وبعد وفاته لم یجز سائر الورثة لا تصح تلک الهبة أصلا لأن الهبة فی مرض الموت وصیة ولا وصیة للوارث (خانیة) ولکن لو اجاز الورثة هبة المریض بعد موته صحت.

(شرح المجلة ۴۸۳ المادة: ۸۷۹، الفصل الثانی فی هبة المریض)

د یوې لوېشتې حق هم نه لري، په خاصه توګه بیا چې امین الحق (موهوب له) خپله مړ شوی هم وي، لأن الموت یمنع الرجوع کما صرح به جمیع الفقهاء فلیراجع الی باب الهبة ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## بدل د هبه کوونکي او هبه شوي مرګ د رجوع څخه منع کوي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید خپله تړوله ځمکه عمر ته هبه کړه او هغه ورته بدل هم ورکړ او س زید او عمر دواړه مړه شوي دي، دبرش کاله وروسته د زید اولاد دعوه کوي او د عمر د وارثانو څخه د خپل پلار هبه شوې ځمکه اخلي، آیا د دوی لپاره ددې ځمکې غوښتل روا دي او که ناروا؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي کابل استاذ غزګي چارسده ۱۹۷۲م/اتمه میاشت ۱۲ تاریخ

**جواب:** د بدل ورکولو او مرګ پېښېدو وروسته په هبه کې رجوع نه صحیح کیږي، فی الدرالمختار: و یمنع الرجوع فیها حروفُ دمع خزقهٍ (الی أنْ قال) والمیم موت أحد العاقدینِ بعد التسلیمِ والعین العوضُ. ﴿۲﴾ (بحذف یسیرٍ) و بمعناه فی جمیع کتب الفتاوی ﴿۳﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ وفی تکملة ردالمحتار: اعلم أن التملیک یکون فی معنی الهبة ویتم بالقبض وإذا عری عن القبض والتسلیم اختلف العلماء فیه، فقیل یجوز وقیل لا یجوز قیاسا علی الهبة وأکثر المشائخ علی أنه یجوز بدون التسلیم وأنه غیر الهبة.
(تکملة ردالمحتار ۲:۳۸٦ مطلب فی معنی التملیک)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: و یمنع الرجوع فیها حروف دمع خزقه ...... والمیم موت أحد العاقدین بعد التسلیم.
(الدرالمختار ۳:۵۷٦ کتاب الهبة، باب الرجوع فی الهبة)

﴿۳﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۳:۵۷٦ باب الرجوع فی الهبة)

﴿۴﴾ وفی الهندیة: أما العوارض المانعة من الرجوع فأنواع ...... منها موت الواهب ...... ومنها العوض. کذا فی البدائع.
(فتاوی هندیة ۴:۳۸٦ کتاب الهبة، الباب الخامس فی الرجوع فی الهبة الخ)

## په ژوند کښې میراث وېشل او فاسق زوی پرېښودل

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید څو بچیان لري یو یې بکر نومېږي، ټول زامن یې له پلاره خوشحاله دي، یوازې بکر دی چې هر وخت له پلار سره ظلم کوي او خفه کوي یې. زید په خپل ژوند کې دا اراده لري چې نورو بچیانو ته د هغوی برخې ورکړي؛ خو عمر ته یې نه ورکوي. هر وخت وایي چې زما دا زوی په میراث کې هیڅ برخه نه لري. آیا پلار دا حق لري چې یو زوی له میراثه بې برخې پرېږدي او که نه؟ که پلار دا حق لري نو د پلار د مرګ وروسته اوس آیا بکر د دعوې حق لري چې ماته مې خپله څمکه حق راکړئ او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مصباح الله مردان د دارالعلوم حقانیه زده کوونکی ۱۹۷۵م د اپریل میاشت ۲۰ تاریخ

**جواب:** په دې شرط چې رښتیا او ثابته وي؛ نو یقیناً زید دا حق لري، کمافی الهندیة ۴: ۳۹۷ ولو کان ولده فاسقاً و أراد أنْ یصرفَ ماله الی وجوه الخیرِ و یحرمه عنِ المیراثِ هذا خیرٌ من ترکه ﴿۱﴾ کذا فی الخلاصةِ ﴿۲﴾ د تملیک وروسته څو بکر د دعوې حق بیخي نه لري. وهو الموفق

## د ازاد ماشوم هبه کول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې د بالغ یا نابالغ ماشوم هبه کول روا دي او که ناروا؟ ماشوم ورور وي او که زوی وي، د دې دواړو ترمنځ څه فرق شته او که نه؟ په شرعي حکم مو خبر کړئ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الرؤف خان امان کوټ دیر

﴿۱﴾ (فتاوی هندیة ۴: ۳۹۱ کتاب الهبة، الباب السادس فی الهبة للصغیر)

﴿۲﴾ (خلاصة الفتاوی ۴: ۴۰۰ کتاب الهبة، جنس آخر فی الهبة من الصغیر)

**جواب:** د ازاد انسان هبه کول په هیڅ صورت نه روا کیږي، کما فی الهندیة ۱: ۲۸۷ ﴿۱﴾وهو الموفق

## د دوه کسانو شریکه ځمکه یو کس ته هبه کول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې موږ د غلام محمد زامن هر یو محمد کریم او محمد نعیم دا اقرار کوو چې زموږ خادم چې محبوب الرحمن نومیږي، هغه ته د خپلې ځمکې یوه معینه برخه ددې لپاره چې دی ورباندې خپل کور جوړ کړي هبه کړ، زموږ نه وروسته نور اولاد هیڅ حق نه لري چې د محبوب الرحمن څخه په زور او زیاتي دا ځمکه واخلي، موږ د خدای په لاره کې دا ځمکه هغه ته بخشش کړه. ددې په اړه شرعي حکم څه دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: محبوب الرحمن اله ډهنډ ملا کنډ ۱۹۸۴م/ ۴/ ۱۲/

**جواب:** په دې شرط چې ربښتیا او ثابت وي دا هبه صحیح او نافذه ده، کما فی شرح التنویر علی هامش رد المحتار ۴: ۵۱۴، وهب اثنان داراً لواحد صحّ لعدمِ الشیوعِ﴿۲﴾وهو الموفق

## په ژوند کې د خورګانو په خوښه ټول مال ورونو ته هبه کول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې د یو سړي دوه زامن او پنځه لورګانې دي، دا ټولې بالغې وي، اوس دا لورګانې خپل پلار ته وایي چې پلار جانه‌امونږ ټولې خویندې په دې خوښ یو چې دا ټوله ځمکه او ابادي زموږ

﴿۱﴾وفی الهندیة: ومنها ان یکون مالا متقوما فلا تجوز هبة ما لیس بمال أصلا کالحر والمیتة والدم.

(فتاوی هندیة ۴: ۳۷۴ کتاب الهبة، الباب الاول فی تفسیر الهبة الخ)

﴿۲﴾(الدر المختار ۴: ۵۷۴ کتاب الهبة)

وفی الهندیة: اذا وهب اثنان من رجل دارا فإنه یصح بالاجماع کذا فی المضمرات والمفسد هو الشیوع المقارن لا الشیوع الطارئ.

(فتاوی هندیة ۴: ۳۷۸ کتاب الهبة، الباب الثانی فیما یجوز من الهبة الخ)

د ورونو په نوم کړې؛ پلار يې هم ټوله ابادي د خپلو زامنو په نوم کړه، آيا په دې باندې خو به په آخرت کې د پلار نيوکه نه کيږي؟ او دا انتقال د شريعت له مخې روا دی او که ناروا؟ بينوا توجروا

المستفتي: غلام رسول سپين کالوني صوابی ۱۹۶۹م/۲/ ۴/

**جواب:** په ياد صورت کې که چانه ضرر رسول مقصد نه وي، ددې له امله دا هبه قضاءً او ديانةً دواړو طريقو سره روا ده، قال في الهندية ۴: ۳۹۷ و روی المعلى عن أبي يوسف رحمه الله أنه لا بأس به اذا لم يقصد به الاضرار﴿۱﴾و قال الله تعالى﴿وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ﴾﴿۲﴾وهو الموفق.

## د تمليک په صورت کې مال يوازې د مملک له حق دی

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې وزير د خپلې ځمکې څه برخه خپل زوی اول شاه ته ورکړه؛ خو دغه ځمکه د ډېر وخت نه د اول شاه په نوم وه، آيا اوس دغه ځمکه د اول شاه د مړينې وروسته دده وارثانو لکه: زامنو او لورګانو حق دی او که ورونه-خويندې يې هم پکښې برخه لري؟

بينوا توجروا

المستفتي: مسلم نوښهره ۱۴۳۰ هـ/ ۲/ ۱/

﴿۱﴾(فتاوی هندية ۴: ۳۹۱ کتاب الهبة، الباب السادس في الهبة الصغير)

وقال العلامة الحصكفي: وفي الخانية لا بأس بتفضيل بعض الأولاد في المحبة لأنها عمل القلب وكذا في العطايا إن لم يقصد به الإضرار وإن قصده سوى بينهم يعطى البنت كالإبن عند الثاني وعليه الفتوى ولو وهب في صحته كل المال للولد جاز وأثم. (الدر المختار ۴: ۵۴۳ کتاب الهبة)

﴿۲﴾(سورة الحشر آيت: ۹)

**جواب**: که پلار دا ځمکه د تمليك په ډول خپل زوی ته ورکړې وي؛ نو دا د اول شاه ځمکه ده بل هيڅوك دده سره شريك نشته. **لوجود سبب الملك فى حقه دون غيره**﴿١﴾والله اعلم بالصواب.

## قانوني تمليک شرعي هبه ده

**سوال**: د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يو کس اوس مړ شوی دی خپله يوه لور يې د بې شماره دنيا مالکه پرېښوده؛ خو قبضه يې لا نه ده پرې کړې، تر اوسه پورې ددې ځمکې قبضه د مړي پسې ده. آيا دا تمليك صحيح دی او که نه؟ که صحيح نه وي په دې باندې ځينې اولاد دعوه لري چې پلار چاته قبضه نه وه ورکړې، آيا د دوی دا دعوه صحيح ده؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: خطيب عبد الأحد د صوابی کلابټ اوسېدونکی ١٩٨٥م/ ٧/ ١/

**جواب**: کله چې پلار دا دنيا لور ته بې قبضې پرېښوده؛ نو شرعاً داسې تمليك هم نه دی صحيح، ځکه چې قانوني تمليك خو د شرعي هبې يو ډول دی، په هبه کې قبضه ورکول شرط دي. ﴿٢﴾والله أعلم بالصواب.

---

﴿١﴾قال العلامة الحصكفي: وحكمها ثبوت الملك للموهوب له. (الدرالمختار ٣:٥٦٧ كتاب الهبة)

وفى تكملة ردالمحتار: اعلم أن التمليك يكون فى معنى الهبة ويتم بالقبض وإذا عرى عن القبض والتسليم اختلف العلماء فيه، فقيل يجوز وقيل لا يجوز قياسًا على الهبة، وأكثر المشائخ على أنه يجوز بدون التسليم وأنه غير الهبة. (تكملة ردالمحتار ٢:٣٨٦ مطلب فى معنى التمليك)

﴿٢﴾ قال العلامة المرغيناني: وتصح بالايجاب والقبول والقبض.
(الهداية ٣:٢٨٣ كتاب الهبة)

وفى شرح المجلة: تنعقد الهبة بالإيجاب والقبول وتتم بالقبض..... واعلم أن المراد بالقبض الذى تتم به الهبة هو القبض الكامل.
(شرح المجلة ٣:٣٤٤، ٣٤٥، المادة٨٣٧)

## د اولادونو تر منځ په هبه کې تفصیل

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې د یو سړي اوه زامن دي. د ځینو څخه د خفګان له امله هغه په خپل ژوند کې وایي چې دا تول ځمکه مې په دې څلورو زامنو وېشم، آیا شرعاً دی دا حق لري چې ځینې زامن د میراث څخه بې برخې پاتې کړي؟ بینوا توجروا

المستفتي حافظ محمد ایوب دار العلوم حقانیه اکوړه خټك ١٩٨٧م/ ٩/ ٦/

**جواب:** دا کړنه د فتوی له مخې روا خو د تقوی له مخې بیا ناروا ده، لحدیث اعدلوا فی اولادکم (رواه مسلمٌ) ﴿١﴾ داسې کړنه د اولاد تر منځ بې اتفاقي او د دشمنی ریښې پخوي. حکومت هم د داسې دوسیو د واپس کولو حکم ورکوي. وهو الموفق.

## نامعلومه شی هبه کول (هبة المشاع) فاسد دي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې د سیف علي (مرحوم) درې بچیان دي. د پلار څخه پاتې شوی میراث درې کناله ځمکه د هغوی تولو ترمنځ شریکه وه. د هر یوه برخه بېله - بېله نه وه. د سیف علي دوه لورګانو خپلې نامعلومې ځمکې د خپل ورور په نوم د شاهدانو په وړاندې هبه کړې. بیا یې ورور د خویندو په شتون کې دغه ځمکه خپلې بنځې ته هبه کړه.

﴿١﴾ (الصحیح المسلم ٢: ٣٦ باب کراهة تفضیل بعض الأولاد فی الهبة)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاری: ولو وهب جمیع ماله لابنه جاز فی القضاء وهو اثم نص عن محمد هکذا فی العیون.

(خلاصة الفتاوی ٣: ٤٠٠ کتاب الهبة، قبیل الفصل الثانی)

آیا دا هبه صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: حاجي عبد الديان مدرس دار العلوم چترال ۱۹۷۲م/٦/ ۲۵/

**خواب:** په یاد صورت کې د مشاع له املـه دا هبه فاسده ده، ددې لـه املـه هبه کوونکی د رجوع حق لري او د ورور لپاره یې تصرفات ناروا دي. (صرح به فی رد المحتار ۴: ۵۰۹، ۵۱۰) ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## د پلار له خوا په هبه شوي شي کې رجوع نه صحیح کیږي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې یو سړي په خپل ژوند کې په خپلو پنځو بچیانو میراث ووېشلو او هغوی تولو په خپلو برخو کې تصرف هم وکړ، اوس پلار په زوره یوه برخه غواړي او خرڅوي یې: نو آیا دا اخیستل او بیا خرڅول روا دي او که ناروا؟ که پلار دا ځمکه واخلي؛ نو د پلار د مړینې وروسته به دا ځمکه د چا وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي عبد الواحد ډهکي چارسده ... ۱۹۷۰م /د مئ میاشت/ ۱۳/

**جواب:** د پلار لپاره په هبه کې رجوع نه صحیح کیږي، دا ځمکه یې د دغو زامنو حق دي، د هغه خرڅولو ته هیڅ اعتبار نشته. وفی الهدایة ۳: ۳۷۴: و ان وهب هبةً لذی رحمٍ محرمٍ منهُ لم یرجع فیها لقوله علیه الصلوة والسلامُ :

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وتتم الهبة بالقبض الکامل فی محوز مفرغ مقسوم ومشاع لا یبقی منتفعا به بعد أن یقسم وقال بعد أسطر: ولو سلمه شائعا لا یملکه فلا ینفذ تصرفه فیه.

وقال العلامة ابن عابدین: (قوله ولو سلمه شائعا الخ، قال فی الفتاوی الخیریة: ولا تفید الملک فی ظاهر الروایة...... وذکر عصام أنها تفید الملک وبه أخذ بعض المشائخ الخ ومع إفادتها للملک عند هذا البعض أجمع الکل علی أن للواهب استردادها من الموهوب له ولو کان ذارحم محرم من الواهب الخ.

(ردالمحتار مع الدر المختار ۴: ۵۷۰ کتاب الهبة)

اذا كانت الهبةُ لذى رحمٍ محرمٍ منه لم يرجع فيها«۱» و هكذا فى جميع كتب الفقهِ «۲» وهو الموفق.

## د هبې د صحيح كېدو دپاره د هبه كوونكي رضا ضروري ده

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې د يو سړي ښځې دويمه نكاح كړې، د لومړۍ نكاح څخه يې دوه لورگانې دي. دويمه نكاح يې د غلام محمد سره وكړه. د هغه څخه يې يو زوى نور محمد پيدا شوى دى، اوس غلام محمد مړ شوى دى. د هغه زوى (نور محمد) په چل او دروغو د پلار ځمكه د هغه له لورې ځان ته هبه ولېكل او ليكلي يې دي چې د هغه نور اولاد نشته، په داسې حال كې چې د مور مهر يې هم اوه كناله ځمكه ده. آيا دا هبه صحيح ده او كه نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الحكيم پته سلطان پنډى گهيب اټك .....۱۴۰۳ هـ/ شعبان/ ۲۸/

**جواب:** كه چيرې دا چل او دروغ په شاهدى سره ثابت شي؛ نو ددې هبې هيڅ اعتبار نشته. يدل عليه مافى شرح المجلة ۸۶۰، ۴۷۲، يلزم فى الهبة رضا الواهب«۳» فافهم.

---

«۱» (الهداية ۳: ۲۹۰ كتاب الهبة، باب ما يصح رجوعه وما لايصح)

«۲» قال العلامة ابن نجيم: قوله والقاف القرابة فلو وهب لذى رحم محرم منه لا يرجع لحديث الحاكم مرفوعا إذا كانت الهبة لذى رحم محرم لم يرجع فيها وصححه وقال على شرط الشيخين.

(البحر الرائق ۷: ۲۹۲ كتاب الهبة، باب الرجوع فى الهبة)

«۳» قال العلامة سليم رستم باز: يلزم فى الهبة رضا الواهب فلاتصح الهبة التى وقعت بالجبر والإكراه.

(شرح المجلة ۴۷۲ المادة: ۸۶۰ كتاب الهبة، الباب الثانى فى شرائط الهبة)

وفى الخانية: إن الرضا شرط جواز الهبة.

(فتاوى خانية على هامش الهندية ۳: ۲۸۱ فصل فى هبة المرأة مهرها)

## د شریکانو ځمکه یو کس ته هبه کول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وايي چې زید د شاهدانو په وړاندې یوه شاړه ځمکه عمر ته ورکړه، د زید سره په کور کې دده وړوکی ورور هم ؤ، عمر ورته وویل: زه ستا د ځمکې هبه نه قبلوم، ځکه چې ستا سره دي په کور کې ورور هم شریك دی بیا به هغه دعوه کوي چې په دې ځمکه کې خو زما برخه هم ده. دویمه دا چې یقیني د هغه برخه خو په دې ځمکه کې شته. که ته خپله برخه هبه کوې؛ نو دې ته هبة المشاع وايي او د هبة المشاع هبه نه صحیح کیږي. زید ورته وویل: زه د خپلو ورونو وکیل یم. په مشوره د الله تعالی په لاره کې تاته دا ځمکه درکوو. عمر په دې ځمکه پنځه کاله خواري وکړه تر دې چې ځمکه ښه آباده شوه، اوس پنځه کاله وروسته چې زید خپله ځمکه داسې اباده ولیده؛ نو خپله یې نیت ورته خراب دی او وايي چې زما ځمکه بیرته ماته راکړه، په داسې حال کې چې دا ځمکه دده ده؛ خو ولکه یې وربانديې نشته، د دیر د نواب خخه راپاتې ځمکه ده، اوس د زید لپاره ددې ځمکې اخیستل څنګه دي؟ او عمر د خپل کښت د خوارۍ حق لري او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۳۹۹ هـ / رمضان المبارك / ۴/

**جواب:** که دا ځمکه د زید مملوکه نه، بلکې قبضه وي؛ نو د زید له خوا نه هبه صحیح کیږي او نه هم رجوع فی الهبه صحیح کیږي. بلکې د موات پر مهال خو عمر ددې ځمکې ابادوونکی دی او هم دی یې مالك دی، که په دې ځمکه باندې د زید ملکیت

﴿۱﴾ فی شرح المجلة: ومنها أی من الشروط التی ترجع إلی الموهوب أن یکون مملو کا فلا تجوز هبة المباحات، لأن تملیک ما لیس بمملوک محال.

(شرح المجلة ۳: ۳۷۳ المادة: ۸۵۷، الباب الثانی فی بیان شرائط الهبة)

﴿۲﴾ فی شرح المجلة: إذا أحیا شخص أرضا من الأراضی الموات بالإذن السلطانی صار مالکا لها..... بدلیل التعبیر بلام الملک فی الحدیث..... (بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

منل شوی او په دلیل سره ثابت وي بیا یې که د نورو شریکانو څخه اجازه غوښتلې وي هبه یې صحیح کیږي، لصحة هبة ما فوق الواحد الی الواحد کما فی شرح التنویر﴿۱﴾وغیره﴿۲﴾که عمر یې له ثابتولو څخه عاجزه شي بیا چې په کښت او ونو باندې څومره لګښت شوی وي هغه به له زید نه اخلي (ماخوذ از کتاب الأموال من کتب الفقه و رد المحتار ۴)﴿۳﴾وهو الموفق.

## بې له څمکې د ونې هبه کول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې د غلام سید په ولکه کې د چارمغزو (غوزانو) یوه ونه وه، ښایسته محمد پرې دعوه کوي چې دا ونه مې تاته په ګانه (رهن) کې درکړې وه نه په بیع قطعي سره، د غلام سید سره یو خط دی چې په هغې کې د ښایسته محمد څخه د دې ونې د اخیستلو په اړه لیکل شوي دي، د دې سره-سره یو شاهد یې هم درلود، کله چې ښایسته محمد د غلام سید له لوري خط او شاهد ولیدلو؛ نو ویل یې: چې کله ستا په اړه پلانی سړی شاهدي ادا کوي؛ نو دا ونه مې تاته بخشش (هبه) کړه، د غلام سید د مرګ وروسته دغه سړي بیا د غلام سید په زوی زیارت ګل باندې د رهن دعوه وکړه، اوس د زیارت ګل سره د ونې د بخششي یو خط شته؛ خو د بیع قطعي هغه شاهد انکار کوي، تاسو مهرباني وکړئ د شرعي حکم څخه مو خبر کړئ ترڅو مسئله په اسانه توګه حل شي، او دا هم

(بقیه حاشیه) وهو قوله علیه الصلوٰة والسلام: من أحیا أرضا میتة فهی له.

(شرح المجلة ۲۰۴:۳ المادة: ۱۲۷۲، الفصل الخامس فی إحیاء الموات)

﴿۱﴾وفی شرح التنویر: وهب اثنان دارا لواحد صح لعدم الشیوع.

(الدرالمختار ۵۷۳:۴ کتاب الهبة)

﴿۲﴾قال العلامة المرغینانی: وإذا وهب اثنان من واحد دارا جاز. (الهدایة ۲۸۸:۳ کتاب الهبة)

﴿۳﴾وقال العلامة الحصکفی: ومن بنی أو غرس فی أرض غیره بغیر إذنه أمر بالقلع والرد وللمالک أن یضمن له قیمة بناء أو شجر أمر بقلعه أی مستحق القلع. (الدرالمختار ۱۳۷:۵، کتاب الغصب)

راته ښيئ چې په شريعت کې د څه شي د بخشش (هبې) شاهدان وي؛ نو هغه

منل کيږي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي مولوي محمد خان د امير جعفر خان د جومات امام کلی ډهني مردان

....۱۳۹۲ هـ/ ربيع الثاني /۱۵

**جواب:** په ياد صورت کې که ونه د ښايسته محمد په ځمکه کې وي؛ نو د ونې هبه کول صحيح دي او د شاهدی ادا کولو وروسته دا ونه د غلام محمد د زوی زيارت ګل مملوکه ده. که دا ونه د غلام سيد په ځمکه کې نه وي بيا يې هبه نه صحيح کيږي. في الدر المختار: ولا تصح هبة لبنٍ في ضرعٍ و صوفٍ على غنمٍ و نخلٍ في أرضٍ. وفي رد المحتار ۴: ۵۱۲، و أما نحو النخلِ في الأرضِ لو كانَ كلُّ واحدٍ منهما لشخصٍ فوهب صاحب النخلِ نخلاً كلّه لصاحب الأرضِ أو عكسه فانّ الهبة تصحّ ﴿۱﴾ فقط.

**يادونه:** دبيع د دعوې په صورت کې مدعى عليه ته قسم ورکول روا دي ﴿۲﴾ وهو الموفق.

## د اجارې ځمکه هبه کول

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې بنده يو څه ځمکه خپل زوی ته هبه کړې او دغه ياده ځمکه مې د څو کالو راهيسې يو سړي ته په اجاره ورکړې. اوس هم يو څو کاله پاتې دي او زوی مې غواړي چې په ياده ځمکه خپله ولکه راولي، اجاره دار لرې کول غواړي، په دې اړه راته يو شرعي حل وښيئ! ځکه چې اجارې والا وايي چې تر اوسه څو په اجاره کې يو څو کاله وخت پاتې دی. بينوا توجروا

المستفتي: حاجي باز محمد دوکاندار دير بازار .... ۱۹۸۷ م/ ۶/ ۲۵/

﴿۱﴾ (ردالمحتار مع الدر المختار ۴: ۵۷۱ كتاب الهبة)

﴿۲﴾ في شرح المجلة: وإذا ثبت المدعى دعواه بالبينة حكم الحاكم بذلك وإن لم يثبت يبقى له حق اليمين فإن طلبه كلف الحاكم المدعى عليه اليمين.

(شرح المجلة ۲: ۱۰۷، المادة: ۱۸۱۸)

**جواب:** دا هبه نه صحیح کیږي، دا زوی دي ددې ځمکې مالك نه دی، یدل علیه ما فی الکاملیة ۱۸۱ : سئلت عن رجلٍ وهب لابنه الصغیرِ داراً فیها ساکنٌ باجرٍ هل تجوزُ هذه الهبةُ فالجواب أنها لا تجوزُ﴿۱﴾قال فی الهندیةِ : رجلٌ وهبَ داراً لابنه الصغیرِ فیها ساکنٌ باجرٍ قال یعنی محمد رحمه الله لا تجوزُ﴿۲﴾وهو الموفق.

## یوازې په چیک کې نوم لیکلو سره هبه نه صحیح کیږي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې د بنده دوه زامن دي او دواړه بنه کار کوي او تنخا پلار ته ورکوي، بنه زیاتې روپۍ جمع شوي، پلار یې څه ځمکه پرې واخیسته او څه ځمکې یې له خلکو په ګانه (ګرو) کې له ځانه سره کېښودې، ددې ځمکو او ګرو پرمهال یې په ټولو چیکونو کې د خپل یو زوی نوم ولیکلو، د پلار د مرګ وروسته د دواړو وروڼو تر منځ شخړه پیښه شوه، د کوم ورور نوم چې په چیکونو کې لیکل شوی دی هغه دعوه لري چې دا هر څه زما خپل دي، ځکه چې زما نوم پرې لیکل شوی دی، د پلار له لورې په چیک کې د نوم لیکلو پرته بل هیڅ دلیل نه لري چې پلار دا ځمکه ده ته ورکړې وي، بلکې پلار خو مو دا اقرار کړی دی چې دا اخیستل شوې ځمکه ستاسو دواړو تر منځ شریکه ده، زموږ تر منځ تاسو شرعي فیصله وکړئ؛ بینوا توجروا

المستفتي: ماسټر محمد زاهد ډاکخانه بټګرام

---

﴿۱﴾(فتاوی کاملیة ۱۸۱، کتاب الهبة)

﴿۲﴾(الفتاوی الهندیة ۴: ۳۹۲، الباب السادس فی الهبة للصغیر)

وقال العلامة ابن عابدین: وفی المنتقی عند محمد رجل وهب دارا لابنه الصغیر وفیها ساکن باجر قال لا یجوز، ولو کان بغیر أجر أو کان فیها یعنی الواهب فالهبة جائزة کذا فی التاتارخانیة. (منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ۷: ۲۸۸، کتاب الهبة)

**جواب:** تر کومه چې هغه (وی چې پلار بې په چیکونو کې نوم لیکلی د پلار له لوري د شاهدانو په وړاندې د روغتیا په حالت کې هبه یا بل څه ثابت نه کړي؛ نو دا ټول ځمکه به د دواړو تر منځ شریکه وي. ﴿۱﴾فقط

## دوه زامنو ته په شریکه هبه کول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید مړ شو، دده وارثان خالد، شاهد او عمران وو، پلار په ژوند کې عمران ته د هغه برخه ورکړه بیا یې ورته وویل چې ته زما له میراثه بې برخې یې، اوس د زید د مړینې وروسته دواړو ورونو عمران ته وویل چې د پلار د منقوله او غیر منقوله دواړو مالونو مالکان موږ یو، که دا دواړه ورونه سوګند وکړي چې موږ ته پلار دا ځمکه هبه کړې ایا شرعاً داسې کول روا دي او که ناروا؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ... ۱۴۰۴ هـ/ ربیع الاول/ ۱۶/

**جواب:** د پلار دې هبې ته هیڅ اعتبار نشته، لما فی شرح التنویر علی هامش رد المحتار ۴: ۵۱۴: وهب اثنان داراً لواحدٍ صحَّ لعدمِ الشیوعِ وبقلبه لکبیرینِ لا عنده للشیوعِ فیما یحتمل القسمة﴿۲﴾وهو الموفق.

﴿۱﴾قال العلامة محمد خالد الأتاسی: فلو ادعت ورثة المیت أنه وهب أحد ورثته ماله الفلانی أو أبرأ ذمته من مال له علیه...... فی حال المرض وهی الحالة التی یتعلق بها حق الورثة فی ترکته بقولهم إنا لا نجیز هذا التصرف...... وادعی الوارث الذی وقعت له هذه التصرفات أنه صحیح بقوله إنه صدر منه فی حال صحته فالقول قول الورثة ولو برهنا ترجح بینة وقوعها حال الصحة. (شرح المجلة ۵: ۲۹۱، المادة:۱۷۵۵)

﴿۲﴾(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۴: ۵۷۳ قبیل باب الرجوع فی الهبة)

وفی شرح المجلة: وقالوا: لو وهب...... (بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

## د عذر بغیر د دوه زامنو تر منځ فرق کول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وايي چې یو کس دا فکر لري چې زه خپل ټول مال د زامنو یا یو زوی په نوم کړم، ایا په شریعت کې داسې عمل ګناه ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم.... ۱۹۹۰م/۸/۱۱/

**جواب** ومنه الصدقُ والصوابُ: د پلار لپاره د زامنو او لورګانو تر منځ بې وجې فرق کول ګناه ده، که زوی یې معذور، بچه دار وي او یا هم زیات قرض دار وي بیا یو زوی ته په بل باندې برتري ورکولو کې ګناه نشته. (هندیة)﴿۱﴾

وهوالموفق

(بقیه حاشیه) اثنان دارا لواحد صح لعدم الشیوع وبقلبه بأن وهب واحد من اثنین لا تصح عند الإمام للشیوع.

(شرح المجلة ۳: ۳۷۸ المادة: ۸٦۰، الباب الثاني في بیان شرائط الهبة)

﴿۱﴾وفي الهندیة: ولو وهب رجل شیئا لأولاده في الصحة وأراد تفضیل البعض على البعض..... عن أبي حنیفة رحمه الله تعالی لا بأس به إذا كان التفضیل لزیادة فضل له في الدین وإن كان سواء یكره، وروى المعلى عن أبي یوسف رحمه الله تعالى انه لا بأس به إذا لم یقصد به الإضرار وإن قصد به الإضرار سوى بینهم ...... ولو كان الولد مشتغلا بالعلم لا بالكسب فلا بأس بان یفضله على غیره.

(فتاوى هندیة ٤: ۳۹۱، الباب السادس في الهبة للصغیر)

قال العلامة ابن نجیم: یكره تفضیل بعض الأولاد على البعض في الهبة حالة الصحة إلا لزیادة فضل له في الدین وإن وهب ماله كله لواحد جاز قضاء وهو آثم كذا في المحیط.

(البحر الرائق ۷: ۲۸۸ كتاب الهبة)

## د مرګ په حالانو کې وارثانو ته د هبه کولو حکم

**سوال** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زینور شاه په کال ۱۹۵۴/ ۹/ ۴/ کې په حکومتي بانه دا لیکل کړي و، درې کناله ځمکه او ځای چې زما خپل ملکیت دی، په خپله رضا یې خپلې ښځې او لور ته چې زرین تاجه نومیږي ورکوم. مالکانه حقوق، قبضه او مالیه هر څه د دوی په ذمه دي. اوس د پلار د مرګ وروسته د هغه یو زوی د یادې ځمکې د اخیستلو کوشش کوي، بل زوی یې وایي: چې زمونږ پلار دا ځمکه چانه ورکړې ده او س مونږ د هیڅ شي غوښتنه هم نه شو کولای، په دې باندې مونږ شرعي شاهدان هم لرو او امضاګانې یې د وثیقې پرمخ لیکل شوې دي، اوس سوال دا دی چې د یادې ځمکې په زوره اخیستل روا دي او که ناروا؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الله کوه نور راولپنډی

**ځواب** که زینور شاه د ځمکې وېش کړی وي، د هر یوه برخه یې جدا - جدا کړې وي او هر یو قبضه هم پرې کړې وي؛ نو هبه یې صحیح او نافذه ده.﴿۱﴾ په دې شرط چې دا هبه او تملیک په مرض الموت کې نه وي شوی.﴿۲﴾ فی الهدایة وغیرها: ولا یجوز الهبة فیما تقسم الا محوزة مقسومة الخ (۲۸۵)﴿۳﴾

وهو الموفق

---

﴿۱﴾فی شرح المجلة: یملک الموهوب له الموهوب بالقبض المراد بالقبض القبض الکامل...... والقبض الکامل فیما یحتمل القسمة بالقسمة.

(شرح المجلة ۳: ۳۸۱ المادة ۸۶۱، الباب الثالث فی بیان أحکام الهبة)

﴿۲﴾ وأیضا فیها: إذا وهب أحد فی مرض موته شیئا لأحد ورثته وبعد وفاته لم تجز الورثة الباقون لا تصح تلک الهبة.

(شرح المجلة ۳: ۴۰۳، المادة: ۸۷۹، الفصل الثانی فی هبة المریض)

﴿۳﴾ (الهدایة ۳: ۲۸۵، کتاب الهبة)

# كتاب الوديعة

قال النبی صلی اللّٰہ علیه وسلّم
من أودع وديعة فلا ضمان عليه.
(ابن حبان)

# كتاب الوديعة

قال النبيُّ صلى اللهُ عليه وسلمَ : من أودعَ وديعةً فلاضمانَ عليهِ.(ابن حبان)

## د مودع د ورکېدو په صورت کې د وديعت حکم

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يو طالب د شپږو کالو راهيسې زما سره ځينې کتابونه امانت ايښي دي، ددې وروسته مي هغه طالب بيا بيخي نه دی ليدلی، زما يو ملګری ډېره غوښتنه کوي چې دغه کتابونه ماته راوسپاره؛ ايا زما لپاره د امانت کتابونو بل چا ته ورکول روا دي او که ناروا؟ بينواتوجروا

المستفتي: محمد رؤف خان د هائی مکتب سر ښوونکی

منډوه ضلع کرک ۱۹۸۲/ اکتوبر/ ۱۵

**جواب:** معلومه خبره ده چې د امانت ايښودونکی ورك (مفقود) دی، له ده سره به د نورو ورکو په څېر کړنه تر سره کيږي. هغه دا چې کله دده د ورکېدو اويا کاله پوره ﴿۱﴾ شي اويا هم د وخت حاکم دده د مرګ فيصله وکړي بيا به ارث او وصيت جاري کيږي، ﴿۲﴾ د دې امانت د خرابېدو پر مهال بايد امانت

---

﴿۱﴾ په سراجي کې دې چې فتوی په (تسعون سنة) نوي کالو ده (مفتي سيف الله حقاني)

﴿۲﴾وقال العلّامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ: ولايستحقّ ماأوصى له اذامات الموصى بل يوقف قسطهُ إلى موت أقرانهِ في بلدهِ على المذهب. (الدرالمختار)

وقال ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ:(قولهُ على المذهب)وقيل يقدّربتسعين سنةً.....وقيل بمائة،وقيل بمائةوعشرين ،واختار المتأخرون ستّين سنةً،واختارابن الهمام سبعين لقولهِ عليه الصلاة والسلام أعمارأمّتي مابين ستّين الى سبعين فكانت المنتهى غالباً.

(ردّالمحتار ۳: ۳۶۲،كتاب المفقود)

خرڅ شي او څښتن ته بې پیسې ورکړي؛ خو دې عزته خلکو د امانت سائل ډېر غوره دي، وأصل المسئلة فی شرح المجلة ۴۳۵، ۷۸۵؍﴿۱﴾ فلیراجعْ والله اعلم بالصواب.

## په ودیعت کې ایښودل شوي کتابونه چاته عاریةً ورکول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وايي چې د یو کس سره مولوي صاحب کتابونه ایښي دي، د تلو پرمهال یې د کور څښتن ته یوازې دومره ویلي ؤ چې زما کتابونه وساته؛ زه چې راغلم خپل کتابونه به درنه یوسم. خو اوس دوه درېش کاله پوره شوه چې نه مولوي صاحب شته او نه هم د مولوي صاحب د خپلوانو څه درک شته. کتابونه هم خرابېږي، ایا مولوي صاحب دا اختیار لري چې دا کتابونه چاته د دې لپاره ورکړي چې علم پرې زده کړي او که نه؟ که دا شرط ورسره ولګوي چې که مولوي صاحب راغلو؛ نو کتابونه به بېرته واپس کوي؛ ایا دا شرط لګول روا دي؟ مهرباني وکړئ مسئله راته د شریعت په رڼا کې روښانه کړئ! بینوا توجروا

المستفتي: سخاوت شاه تور ډهیر صوابی ۱۳۹۶ هـ؍ شعبان؍ ۳؍

**جواب:** که د کتابونو د خرابېدو وېره وي بیا دې کتابونه خرڅ کړي او قیمت دې له ځانه سره خوندي کړي، کما فی الهندیة ۴: ۳۴۴ و فی فتاوی ابی اللیث رحمه الله اذاکانت الودیعةُ شیئاً یخافُ علیه الفسادُ و صاحبُ الودیعة غائباً فان رفع الأمرُ الی القاضی حتی یبیعه جازَ وهو الأولیٰ؛ وان لَمْ یرفعْ (الی أنْ قـال) وانْ لَمْ یکن فی البلد قاض باعها وحفظَ ثمنها لصاحبها، کذافی الوهاج﴿۲﴾ وبمعناه فی شرح

﴿۱﴾ وفی شرح المجلّة: إذاکان صاحب الودیعة غائباغیبة منقطعة بحیث لم یعلم موتهٗ ولاحیاتهٗ یحفظها المستودع الی أن یعلم موت صاحبها أوحیاتهٗ وانّما اذاکانت الودیعة ممّا یفسد بالمکث یبیعها المستودع بإذن الحاکم ویحفظ ثمنها أمانة عندهٗ لکن اذالم یبعها ففسدت بالمکث لایضمن. (شرح المجلّة ۳:۲۵۵، المادة:۷۸۵، الفصل الثانی فی أحکام الودیعة)

﴿۲﴾ (فتاوی هندیة ۴:۳۴۴ الباب الرابع فیمایکون تضیعًا للودیعة الخ، کتاب الودیعة)

المجلة ۴۳۵ ﴿۱﴾ په عاریت باندې چانه امانت کتابونه ورکول نه دي صحیح،
کما صرحوا به أنّ المودَع لا یودع وهو واضحٌ ﴿۲﴾ وهو الموفق.

## د امانت ایښودونکي د مړینې وروسته په ودیعت باندې داسې څه اخیستل چې وارثانو ته یې ګټه وي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې د زید امانت له بکر سره ؤ، زید مړ شو؛ نو بکر به امانت چاته ورکوي؟ د زید په وارثانو کې دده مور، ښځه او څلور بچي دي او په یوه باندې مو باور نشته. بکر دا فکر لري چې د امانت په روپو باندې د زید کورنۍ ته داسې یو شی واخلي چې ټول کور ترې ګټه واخلي، د بېلګې په توګه که هغوی ته روپۍ ورکول شي؛ نو زموږ دا یقین دی چې روپۍ به هسې بې ځایه لاړې شي. بینوا توجروا

المستفتي: فضل الهی پېښور ۱۹۸۹م /اګست /۳۰/

**جواب:** که د مړي ټول وارثان بالغان وي؛ نو د هغوی په اجازه ګټور شی اخیستل روا دي،

﴿۱﴾ قال العلّامة سلیم رستم باز رحمه الله تعالیٰ: اذا کان صاحب الودیعة غائبًا غیبةً منقطعةً بحیث لا یعلم موتهُ ولا حیاتهُ یحفظها المستودِع الی أن یعلم موت صاحبها أمّا إذا کانت الودیعة ممّا یفسد بالمکث یبیعها المستودع بإذن الحاکم ویحفظ ثمنها أمانةً عندهُ.

(شرح المجلّة لسلیم رستم باز رحمه الله تعالیٰ ۴۳۵، المادة ۷۸۵)

﴿۲﴾ وفی شرح المجلّة لسلیم رستم باز: لیس للمستودع إیداع الودیعة عند آخر بدون إذن. (شرح المجلّة ۴۳۸، المادة ۷۹۵)

وفی الهندیة: والودیعة لا تودع ولا تعار ولا تؤاجر ولا ترهن وإن فعل شیئًا منها ضمن.

(فتاوی هندیة ۴: ۳۳۸ کتاب الودیعة، الباب الأول)

د هغوى بې اجازې څه شي اخيستل ناروا دي، ﴿۱﴾ځکه چې څښتن ته د امانت سپارل ضروري دي، في الهندية ۴: ۳۵۶ اذا مات رب الوديعة فالوارث خصمٌ في طلب الوديعة﴿۲﴾، که غالب يقين دا وي چې که مالَ ورکړم؛ نو بې ځايه به ترې لاړ شي، بيا به يې د ځنخويشت کلني وړاندې نه ورکوي ﴿۳﴾ سره له دې هم په امانت کې تصرف کول په هيڅ صورت نه روا کيږي فقط وهو الموفق.

## د امانت مال په امانت ورکوونکي مصرفول

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يو طالب خپل استاذ ته يو سل لس روپۍ امانت ورکړي وې، د وخت په تېرېدو طالب ناروغ شو، استاذ يې د ده لپاره په يو سل شل روپۍ موټر کرايه کړ، بيا يې ددې طالب لپاره څنده هم وکړه او هغه يې خپل وطن ته ولېږولو، بدبختانه چې د هغه وخت پوره ؤ؛ نو مړ شو، اوس ددې امانت ورکول د استاذ لپاره لازم دي او که څه وکړي؟

بينوا توجروا

المستفتي: مولوي عنايت ګل ارمړ پايان

---

﴿۱﴾ وفي الهندية: والوديعة لاتودع ولاتعار ولاتؤاجر ولاترهن وإن فعل شيئاًمنها ضمن. (فتاوى هندية۴: ۳۳۸ كتاب الوديعة،الباب الأول)

﴿۲﴾ (فتاوى هندية۴: ۳۵۴ كتاب الوديعة،الباب السابع في ردّالوديعة)

وفي شرح المجلّة لسليم رستم باز رحمه الله تعالى: إذامات المودع تسلم الوديعة لوارثه. (شرح المجلّة ۳۴۶،المادة۸۰۲)

﴿۳﴾ وفي الهداية: إذابلغ الغلام غير رشيدلم يسلّم إليه ماله حتّى يبلغ خمساًوعشرين سنةًفإذابلغ خمساًوعشرين سنةً يسلّم إليه ماله.وإن لم يؤنس منه الرشد،وقالالايدفع اليه ماله أبداحتّى يؤنس رشده.

(الهداية: ۳: ۳۵۳،كتاب الحجر)

**جواب**: بنه خبره دا ده چې تول کرایه له چندي څخه ورکړي، که چنده دومره کمه وي چې نه پوره کیږي بیا دې د امانت له روپو څخه پوره کړي ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## په امانت کې بې اجازې لاس وهنه کول

**سوال**: د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې موږ یو سړي ته د چیني (بورې) د تجارت لپاره روپۍ ورکړې وې، هغه د بورې پر ځای سلاح واخیسته او په پښنه کې تول اسلحه وسوځېده او اور بې واخیست، ایا د امانت په روپو کې د هغه لپاره دا ډول لاس وهنه روا ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مستري شرین دوله پخه غلام پېښور ۱۹۸۲م / دسمبر / ۶/

**جواب**: که په امانت کې بې اجازې لاس وهنه وشي او تاوان پېښ شي، تاوان به یې ورکوي (شامي ﴿۲﴾، شرح المجلة ﴿۳﴾ وغیره) وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامة فخر الدين الزيلعي رحمه الله تعالى: وعلى هذا لومات بعض الرفقة في السفر فباعوا قماشه وعدته وجهزوه بثمنه وردّوا البقية إلى الورثة أو أغمي عليه فأنفقوا عليه من ماله لم يضمنوا استحسانا، وروى أن جماعة من أصحاب محمد حجوا فمات واحد منهم واخذوا ما كان معه فباعوه فلمّا وصلوا إلى محمد سألهم فذكروا له ذلك فقال لو لم تفعلوا ذلك لم تكونوا الفقهاء، والله يعلم المفسد من المصلح.

(تبيين الحقائق ۳:۲۵ قبيل كتاب العتاق)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وكذا لو خلطها المودع بجنسها أو بغيره بماله أو مال آخر بغير إذن المالك بحيث لا تتميّز ضمنها لاستهلاكه بالخلط وإذا تعدّى عليها فلبس ثوبها أو ركب دابتها أو أخذ بعضها ثم ردّ عينه إلى يده حتّى زال التعدّى زال ما يؤدي إلى الضمان إذا لم يكن من نيّته العود إليه. (الدر المختار مختصراً ۴: ۵۵۴، ۵۵۵ كتاب الايداع)

﴿۳﴾ قال العلامة سليم رستم باز رحمه الله تعالى: ...... (بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

## په ګډوډ مال کې حج کول - زکات ادا کول او مالک ته یې بېرته سپارل

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې یو سړي د بل په دکان کې مزدوري کوله، د دکان په روپو کې یې خیانت وکړ. د هغې وروسته یې خپل تجارت پیل کړ، اوس دا سړی په دغه روپو کې حج کولای شي او که نه؟

**بینوا توجروا**

**المستفتي:** مولانا اسید الله صاحب دامت برکاتهم العالیة...

۱۹۸۶م / ستمبر / ۲/

**جواب:** (۱) کېدای شي دې خیانت کوونکي د غلا مال د نور پاک مال سره یو ځای کړی وي او بیا یې مالک شوی وي، دا ګټې ده په خپل ملکیت کې ترلاسه کړې دي، په دې روپو باندې حج او زکات ادا کول روا دي. ﴿۱﴾(۲) په پټه طریقه دې د

---

(بقیه حاشیه) کما أنه یسوغ للمستودع استعمال الودیعة بإذن صاحبها فله أن یؤجرها أو یعیرها لآخر وأن یرهنها أیضاً، أما الواجر ها أو أعارها لآخر أو رهنها بدون إذن صاحبها فهلکت أو نقصت قیمتها فی ید المستأجر أو المستعیر أو المرتهن فإنه یضمن.

(شرح المجلة ۳۳۹ المادة ۷۹۲، الفصل الثانی فی أحکام الودیعة وضمانها)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالی: ولو خلط السلطان المال المغصوب بماله ملکه فتجب الزکاة فیه ویورث عنه لأنّ الخلط استهلاک إذا لم یمکن تمیزه عند أبی حنیفة رحمه الله تعالی وقوله أرفق إذ قلّما یخلو مال عن غصب وهذا إذا کان له مال غیر ما استهلکه بالخلط منفصل عنه یوفی دینه وإلا فلا زکاة کما لو کان الکل خبیثاً.

(الدر المختار ۲: ۲۷ کتاب الزکاة، قبیل مطلب فی التصدق من المال الحرام)

وفی الهندیة: ویجتهد فی تحصیل نفقة حلال فإنّه لایقبل الحج بالنفقة الحرام مع أنه یسقط الفرض معها. (فتاوی هندیة ۱: ۲۲۰ کتاب الحج، الباب الأوّل فی تفسیر الحج الخ)

خیانت مال په اندازه د هغه په مال کې ورشریك کړي او داسې نورې طریقې هم شته... ﴿۱﴾وهو الموفق .

**د دویم امانت دار شخه د لومړي امانتدار په ملګرتیا د امانت بې ځایه کېدل**

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید د بیلګې په توګه عمر ته اوولس سوه دیرش روپۍ ددې لپاره ورکړې چې په دې باندې ګوړه واخلي؛ عمر د محمود په ملګرتیا پنجاب ته د ګوړې د اخیستو لپاره روان شو، د روانېدو پرمهال زید عمر ته ډېر زیات وویل چې هلکه د پیسو ډېر خیال کوه، داسې نه چې ورکې یې کړې، عمر وویل چې هو! زما څخه به ورکې شي؛ نو پیسې یې محمود ته ورکړې، له بد قسمته د محمود جیب په لاره کې غلو ووهلو . اوس زید وایي چې ماخو روپۍ زید ته ورکړې وې محمود ته مې نه وې ورکړې، زه خپلې روپۍ غواړم، ایا دی بې اوس غوښتلای شي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد ابراهیم ډېره اسماعیل خان... ۱۳۹۷هـ/ جمادی الثانی/ ۲۶/

**جواب:** د محمود څخه د عمر د ملګرتیا له امله دا روپۍ ورکې شوي دي، ددې له امله په یوه باندې هم تاوان لازم نه دی، کما فی شرح المجلة ۴۳۸ ( ثم اعلمْ أنَّ المستودعَ الأوَّل انما یضمنُ اذا أودع الودیعةَ وهلکت بعد أنْ فارقها و أما قبله فلا ضمان علی أحد لأنَّ الثانی قبض المالَ منْ ید أمینٍ کما مـرَّ ، والأوَّلُ لایکونُ بالدفع ضمیناً ما لمْ یفارقْ لحضور رأیه فاذا فارقَ ترك الحفظَ

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالی: ویبرأ برده ولو بغیر علم المالك في البزازیة: غصب دراهم إنسان من کیسه ثم ردها فیه بلاعلمه بریٔ وکذا لو سلمه إلیه بجهة اخری کهبة أو ایداع أو شراء.

(الدر المختار ۶: ۱۸۲، کتاب الغصب مطلب في رد المغصوب الخ)

وفی شرح المجلة: "وکذا یبرأ برد العین من غیر علم المالك بأن سلمهٔ إلیه بجهة اخری اووهبة لهٔ أو اطعمه إیاه فاکلهٔ والمالك لایدری انهٔ ملکهٔ او نحو ذلك من تسلیم بایداع اوشراء. (شرح المجلة ۳: ۲۱۳، المادة ۸۹۰)

اللازم بالتزامه فيضمن بتركه . مجمع الأنهر.﴿١﴾وهو الموفق .

## د هندوانو په مال کې خيانت او هندوستان ته د تلو وروسته د دوی د مالونو حکم

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې د هند او پاکستان د تقسيم نه وړاندې زيد په کوم ځای کې کار کولو، هلته ځينې هندوانو هم کار کولو چې د مسلمانانو سره يې نږدې اړيکې درلودې. کله چې د دواړو هېوادونو د جلا کېدو وروسته هغوی هندوستان ته لاړل: نو هغوی څه مال د زيد سره د امانت په توګه کېښود؛ خو زيد په غلطۍ سره هغې کې خيانت وکړ، اوس زيد ته دا معلومات نشته چې دا هندوان چېرته او کوم ځای اوسيږي، ايا زيد دا روپۍ د الله تعالی په لاره کې مصرفولای شي او که نه؟ او که بله طريقه يې وي هغه راته وليکئ چې موږ يې عملي کړو. بينوا توجروا

المستفتي: غلام رباني د اټک ښار

**جواب:** د کافر لپاره خيرات کول د پيسو ضايع کول دي،﴿٢﴾دا مال ته بو داسې مهاجر مسلمان ته ورکړه چې شيان يې په هندوستان کې پاتې وي. يا يې په غريبانانو او طالبانو باندې له دې چې د ثواب نيت وکړي ورېې کړه، ځکه چې غريبانان د بيت المال اصلي مصرف دي او دا هم د بيت المال حق دی. ﴿٣﴾-وهو الموفق .

---

﴿١﴾ (شرح المجلّة ٣٣٨،المادة ٧٩٠)

وقال العلّامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ:ولايضمن مودع المودع فيضمن الأوّل فقط إن هلكت بعدمفارقته وإن قبلهالاضمان.(الدرالمختار ٤:٥٥٧، كتاب الايداع)

﴿٢﴾و قال العلامة محمد عمر النسفي رحمه الله تعالىٰ " وورد أيضاجعل الإيمان شرطا لصحة الأعمال كما في قوله تعالىٰ: ومن يعمل من الصلحت من ذكرأوانثى و هومؤمن.

(شرح العقائد: ص ٩٢، الإيمان لا يزيد ولا ينقص)

﴿٣﴾قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ" و مصرف الجزية و الخراج و مال التغلبي و هديتهم للإمام و ما أخذ منهم بلا حرب و منه تركة ذمي و ما أخذه عاشر منهم مصالحنا، خبر مصرف كسد الثغور و كفاية العلماء و المتعلمين و به يدخل طلبة العلم".

(الدر المختار ٣:٣٠٦، باب العشر و الخراج و الجزية، مطلب في مصارف بيت المال)

## د امانت ساتونکي څخه د مال په ضایع کېدو تاوان اخيستل

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يو کس بل ته د کتاب ورکولو پرمهال ووايي چې کتاب درکوم؛ خو ساتنه يې درباندې لازمه ده او بيا به يې زما ترکوره هم ته را رسوې! څه وخت وروسته دی ووايي چې هغه کتاب خو له ما نه ورك شوی دی. خپل ټول شيان يې به ساتلي او زما کتاب ترې ورك شو، حال دا چې د تلو پرمهال مې ورته ډېر زيات وويل چې د کتاب ساتنه درباندې فرض ده او هغه ورك کړ، ايا اوس هغه ددې کتاب ضامن دی او که نه؟ مهرباني وکړئ مسئله راته روښانه کړئ! بينوا توجروا

المستفتي: رحيم الله باچا صاحب اضاخېل بالا ... ۱۹۷۵ م / جولائي / ۳/

**جواب:** ترکله پورې چې د امين خيانت ثابت نه وي، په هغه باندې تاوان نشته، كما فى الدرالمختار على هامش رد المحتار ۴: ۴۹۴: و هى أمانةٌ فلا تضمنُ بالهلاك الا اذا كانت الوديعةُ بأجرٍ .... مطلقاً .... واشتراط الضمان على الأمينِ باطلٌ﴿۱﴾ به يفتى بحذف يسيرٍ ، دا مودع امين ته سوګند ورکولای شي. لأنه منكر الضمان﴿۲﴾ وهوالموفق .

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار ۳: ۱۵۵ كتاب الإيداع)

وفى شرح المجلة: الوديعة أمانة فإذا هلكت بلا تعد من المستودع وبدون صنعه وتقصيره لا يلزم الضمان وإذا كان الإيداع بأجرة فهلكت أوضاعت بسبب يمكن التحرز عنه لزم المستودع ضمانها...... أن الوديعة بأجر مضمونة اتفاقاً.

(شرح المجلة ۳: ۲۲۲،۲۲۳ كتاب الوديعة، المادة ۷۷۷)

﴿۲﴾ فى شرح المجلة: ادعى ردّ الوديعة لصاحبها أوهلاكها بلاتعدٍ ولا تقصير يصدق بيمينه. (شرح المجلة ۳: ۲۸۹ كتاب الوديعة، المادة: ۸۰۰)

# كتاب العارية

إنّ النبىّ صلى الله عليه وسلّم
استعار دروعًا من صفوان.
(أبو داؤد)

# كتاب العارية

انَّ النبی صلی الله علیه وسلم استعارَ دروعاً من صفوانَ (ابو داؤد)

## د معير په عاريت ورکړې ځمکه کې د مستعير د ګڼول شوي ونو کاټول

**سوال:** د دین عالمان په دې اره څه وايي چې زید نوي (۹۰) کاله وړاندې د عمر په ځمکه عاریةً د چارمغزو (غوزانو) یوه ونه کرلې وه. اوس عمر غواړي چې د زید څخه د ونې نیم چارمغز د خپلې ځمکې په بدل کې واخلي. زید ورته وايي چې نوي (۹۰) کاله کیږي تا زما څخه د ځمکې په بدل کې چارمغز وانه خیستل؛ نو اوس یوه دانه هم نه درکوم. په دې باندې د دواړو تر منځ اختلاف جوړ شو، مهرباني وکړئ ځواب زر راولېږئ چې د دوی دواړو تر منځ اختلاف ختم شي. بینوا توجروا

المستفتي: مولوي امیر محمد صاحب اباد نګریل ډاکخانه ضلع دیر ۱۹۲۹ م/ ستمبر/ ۲۳

**جواب:** د عمر لپاره په شریعت کې روا دي چې دا ونه له خپلې ځمکې وباسي، ځکه چې دا عاریت دی. قال رسول الله ﷺ (للغارس المستعیر) انتَ مضارٌ فقال للأنصاری اذهبْ فاقطعْ نخله( رواه ابوداؤدَ )﴿۱﴾وفی الدرالمختارِ (ولو أعارَ أرضاً للبناءِ والغرسِ صحَّ وله أنْ یرجعَ متی شاءَ ویکلفه قلعها الخ)﴿۲﴾فقط وهوالموفق .

## د نابالغه ورور مال چاته عاريةً ورکول

**سوال:** ددین عالمان په دې اره څه وايي چې یوعالم وفات شوی، په میراث کې

﴿۱﴾(سنن أبی داؤد۲: ۵۱۲ کتاب القضاء، باب من القضاء)

﴿۲﴾(الدّر المختار۴: ۵۲۳ کتاب العارية)

و فی الهداية : واذااستعار أرضا لیبنی فیها او لیغرس جاز و للمعیر أن یرجع فیها و یکلّفه قلع البناء و الغرس .(الهداية ۳: ۲۸۱ کتاب العارية)

ترې کتابونه پاتې دي، د هغه بالغ او نابالغه اولاد شته، مشر زوی يې د کور د غړو سر پرست دی، که څوك يې د مشر زوی څخه عاريتاً د مطالعې لپاره کوم کتاب واخلي؛ نو د مشر زوی يې اختيار لري او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: سلطان محمد مانکئ ضلع صوابی ۱۹۸۹ م / نومبر / ۷/

**جواب**: کله چې د نابالغه ماشومانو مال پلار بې اجازې نه شي مصرفولای؛ نو ورور خو يې په طريق اولی نه شي مصرفولای. كما فى شرح المجلة ص ۴۶۱ : ليس للأبِ اعارةُ مالِ طفله لعدمِ البدلِ كالقاضى والوصى (تنوير وشرحه للعلائى)﴿۱﴾ دغه راز شريك هم خپل شريكي مال چاته عاريتاً نه شي ورکولای، فى شرح المجلةِ ص ۶۰۸ : حصةُ أحد الشريكينِ فى حكم الوديعةِ فى يد الآخرِ فاذا أودع أحدهما المال المشترك عند آخر بدونِ اذنٍ فتلفَ كان ضامناً حصةَ شريكه و كذا لو أعارَ أوْ آجرَ أو رهنَ﴿۲﴾ وهو الموفق

## له زوی نه د هبه شوي يا عاريت څمکې واپس اخيستل

**سوال**: د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يو سړی درې زامن لري او د خلکو په وړاندې دا شاهدي اداکوي چې زما ټول مال دې په څلورو برخو ووېشل شي، درې برخې دې زما د درې زامنو او يو دې زما وي. څه وخت وروسته دغه سړی

---

﴿۱﴾(شرح المجلّة لسليم رستم باز ا ۳۶۱،المادة ۸۳۲)

و فى الهندية :ذكر شمس الأئمة فى أول شرح الوكالة ......وهل له أن يعير مال ولده؟ بعض المتاخرين من مشايخنا قالوا له ذلک و عامة المشائخ على أن ليس له ذلک.

(فتاوى هنديه ۴: ۳۶۲ كتاب العارية ،الباب التاسع فى المتفرقات)

﴿۲﴾( شرح المجلّة ۶۰۸،المادة ۱۰۸۷ )

د خپل اقرار څخه واوړي؛ نو د هغه دې انکار ته اعتبار شته او که نه؟ ددې وروسته ددې سړي بل زوی هم پیدا شي، ایا هغه ماشوم به د پلار ۴/۱ برخه کې شریك وي او که د درې واړه ورونو په برخو کې به شریك وي؟ د دلایلو په رڼا کې راته مسئله روښانه کړئ. بینوا توجروا

المستفتي: عبد الواحد الیان کورونه چارسده ۱۹۷۰م/جون/۱۱

**جواب:** که پلار څمکه د تملیك په ډول ورکړې او ورونو یې وېشلې وي؛ نو په دې صورت کې د پلار رجوع نه صحیح کیږي، صرح به الفقهاء لحدیث اذا کانت الهبة لذی رحم محرم لا یرجع فیها (فلیراجع الی الهدایة﴿۱﴾ وغیرها﴿۲﴾) ددې سړي د مرګ وروسته به ټول وارثان په ۴/۱ کې شریك وي، که د وېش وروسته یې هر زوی ته د عاریت په نیت ورکړې وي؛ نو بیا په هغې کې رجوع صحیح ده. ﴿۳﴾ څکه چې زموږ په نزد په (مشاع) بې تقسیمه څمکه کې هبه نه صحیح کیږي. في الدر المختار : لا تتم بالقبض فیما یقسم ولو وهبه لشریکه ولوسلمه شائعاً لا یملکه الخ﴿۴﴾ وبمعناه في جمیع

﴿۱﴾ قال العلامة المرغیناني رحمه الله تعالی :و ان وهب لذی رحم محرم منه لم یرجع فیها، لقوله علیه السّلام إذا کانت الهبة لذی رحم محرم لم یرجع فیها.
(الهدایة ۳: ۲۹۰ ،کتاب الهبة ،باب ما یصح رجوعه و مالا یصح)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم رحمه الله تعالی:قوله و القاف القرابة فلو وهب لذی رحم محرم منه لا یرجع لحدیث الحاکم مرفوعًاإذا کانت الهبة لذی رحم محرم لم یرجع فیها.
(البحر الرّائق ۷: ۲۹۳،کتاب الهبة ،باب الرجوع فی الهبة)

﴿۳﴾ و فی الهندیة :و للمعیر أن یرجع فیها أطلق أووقت.
(فتاوی هندیة ۴: ۳۷۰ الباب السابع فی استرداد العاریة )

﴿۴﴾( الدرالمختار ۴: ۵۷۰ کتاب الهبة)

كتب الفروع(۱) وهو الموفق .

## په عاریت کې د رجوع کولو وروسته به مستعیر خپلې ونې پرې کوي

**سوال:** د دين عالمان په دې اره څه وايي چې زمونږ د تېره زمانو زمونږ په ځمکه کې بې اجازې څه ونې کرلي دي، دغه ونو زمونږ کښت ته تاوان هم رسولی او زمونږ له کوره بې شمال (هوا) هم منع کړې دی، اوس دوی نه خپلې ونې پرې کوي او نه هم موږ ته د ځمکې په بدل کې قیمت راکوي، په شریعت کې زمونږ لپاره څه کول پکار دي؟ بینوا توجروا

المستفتي کلرك شاه نوشهره کینټ ۱۴۰۲ هـ / رمضان المبارك /۹/

**جواب** په دې مستعیر باندې ضروري ده چې خپلې ونې کاټ کړي، كما في شرح المجلة ۴۶۰: استعارة الأراضي لغرس الأشجارِ والبناءِ عليها صحيحةٌ ولكن للمعيرِ أن يرجع عنِ الاعارةِ متى شاءَ فاذا رجع لزمَ المستعير قلع الأشجارِ و رفعِ البناءِ(۲) وهو الموفق .

---

(۱) و في جامع الفصولين "هبة المشاع فيما لا يحتمل القسمة تجوز من شريكه و من غيره و فيما يحتملها لم تجز لامن شريكه و لا من أجنبي.

(جامع الفصولين ص ۳۲ الفصل الحادی و الثلاثون في مسائل الشيوع)

(۲)(شرح المجلة لسليم رستم باز رحمه الله تعالى ۴۶۰، المادة ۸۳۱).

وقال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالى "واذا استعار ارضا ليبني فيها اوليغرس جاز و للمعير ان يرجع فيها ويكلّفه قلع البناء و الغرس .

(الهداية ۳: ۲۸۱: كتاب العارية)

## په مستعاره ځمکه کې کرل شوي ځمکې د مستعير دي

**سوال:** د دين عالمان په دې اره څه وايي چې زيد د اوبو والا ځمکه درلوده، د هغې سره د عمر باراني ځمکه هم نژدې وه، د نن نه دېرش کاله وړاندې زيد د عمر په خوښه د خپلو ځمکو د اوبه کولو پرمهال دده ځينې ځمکه اوبه کوله، ددې وروسته زيد په دغه ځمکه د عمر په خوښه ځينې ونې هم وکرلې، اوس چې کله ونې غټې شوې؛ نو عمر وايي: چې ځمکه زما ده. ددې له امله ونې هم زما دي، په داسې حال کې چې زيد خپله اقرار کوي: ځمکه د عمر ده؛ خو ونې زما خپلې دي، ځکه چې دا خو ما خپله د هغه په خوښه کرلي دي، ده ولې هغه وخت زه نه منع کولم، اوس به دا ونې د زيد وي او که د عمر؟ بينوا توجروا

المستفتي: حافظ دل نثار حضرو اټک، ۱۹۸۵م / ۴ / ۲۳ /

**جواب:** که دا اعاره او استعاره منل شوې وي؛نو دا ټولې ونې دزيد دي.﴿۱﴾ که نه نو عمر ته به اجر مثل ورکوي.﴿۲﴾وهو الموفق

---

﴿۱﴾وفي الهندية:وحكمها ملك المنفعة للمستعير بغير عوض.

(فتاوى هنديه۴: ۳۶۳كتاب العارية،الباب الأول)

وفي شرح المجلة:استعارة الأرض لغرس الأشجار والبناء عليها صحيحة لكن للمعير أن يرجع عن الإعارة متى شاء فإذا رجع لزم المستعير قلع الأشجار ورفع البناء.

(شرح المجلة۶۰۴: المادة۱۸۳۱،الفصل الثاني في حكم العارية)

﴿۲﴾قال العلامة محمد كامل الطرابلسیؒ"ولو زرع أرض الغير بغير إذنه يعتبر العرف فإن العرف الغلة أنصافا أو أرباعا اعتبر وإلا فالخارج للزارع وعليه أجر مثل الأرض.

(فتاوى كاملية۲۰۹،كتاب الغصب)

# کتاب اللقطة

قال النبی

صلی اللّٰہ علیہ وسلّم

من التقط شیئًا فلیعرفه سنةً.

(دار قطنی)

# كتاب اللقطة

قال النبى صلى الله عليه وسلمَ من التقط شيئا فليعرفه سنةً (دار قطنى)

## د لقطې شهرت او موده يې:

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يو كس د زيات يا كم قيمت والا شى پيدا كړي، د اعلانولو وروسته دي څومره وخت له ځانه سره وساتي، د وخت د ختمېدو وروسته بايد له دغو شيانو سره څه وشي؟ په خپل ضرورت كې دي راولي او كه خيرات يې كړي؟ كه خپله يې په كار راولي او وروسته يې څښتن پيدا شي؛ نو كاروونكى به يې ذمه دار وي او كه نه؟ كه پيدا كوونكى يې د دوه مياشتې اعلانولو وروسته خرڅ كړي او بل شى پرې واخلي؛ نو د اخيستونكي لپاره يې كارول څنګه دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الستار بلوچى د دارالعلوم حقانيه زده كوونكى،

۱۴۰۱ هـ / ربيع الثاني / ۴ /

**جواب:** د لقط د شهرت او تعريف لپاره د مفتى به قول په بناء كومه خاصه موده نه ده ټاكل شوې، بلكې دومره اندازه شهرت يې ضروري دى چې د پيدا كوونكي يې دا يقين شي چې مالك يې نور لټون پسې نه كوي، وفى الدرالمختار: وعـرّف أى نادى عليها حيثُ وجدها و فى المجامع الى أنْ صاحبها لا يطلبها أوْ أنّها تفسدُ انْ بقيتْ كالأطعمة ونقلَ فى ردالمحتارعنِ المضمراتِ والجوهرةِ وعليه الفتوى﴿۱﴾ددې وروسته كه دا سړى خپله غريب وي بيا دې خپله استعمال كړي، كه شتمن وي بيا دې

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردّالمحتار ۳: ۳۵۰ كتاب اللقطة)

وفى الهندية: ويعرّف الملتقط اللقطة فى الأسواق والشوارع مدّة يغلب على ظنّه أن صاحبها لا يطلبها بعد ذلك هو الصحيح كذا فى مجمع البحرين. (فتاوى هندية ۲: ۲۸۹ كتاب اللقطة)

صدقه كړي، كه مالك يې معلوم شو او په ثواب خوښ نه وي بيا به د هغه په خبر شي او يا هم قيمت وركوي، ﴿١﴾ اخيستونكي لپاره يې استعمال ناروا دى كه د خاصې مودې وروسته خرڅ شوى وي فقط

## د سيند د راوړيو لرګو نيولو حكم

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي: كه يو سړى په سيند كې راغلي لرګي ونيسي؛ نو ددې په اړه شرعي حكم څه دى؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم، ۱۹۷۶م /۳/۲۵/

**جواب:** څرګنده دې وي كه دا بوټي لږ (شئ تافه) وي، بيا يې د نيوونكي لپاره هر ډول ګټه اخيستل روا دي، كما فى حديث جابرٍ ﷺ قال رخص لنا رسول الله ﷺ فى العصا والسوط والحبل وأشباهه يلتقطه الرجل ينتفع به (رواه ابو داؤد)﴿١﴾.

كه دا لرګي قيمتي وي بيا به د لقطې حكم لري. كما فى رد المحتار ۳: ۴۴۶ وذكر فى شرح الوهبانية ظابطاً وهو أنّ ما لا يسرع اليه الفساد ولا يعتاد رميه كحطبٍ وخشبٍ فهو لقطةٌ انْ كانت له قيمةٌ ولو جمعه من أماكنَ متفرقةٍ فى الصحيح﴿٢﴾.

---

﴿١﴾ قال العلامة الحصكفى: فينتفع الرافع بها لو فقيرا وإلا تصدق بها على فقير فإن جاء مالكها بعد التصدق خير بين إجازة فعله ولو بعد هلاكها وله ثوابها أو تضمينه.

(الدرالمختار مختصراً ۳: ۳۵۱، كتاب اللقطة)

﴿٢﴾ (مشكوة المصابيح ۲۶۲ باب اللقطة)

﴿۳﴾ (ردّالمحتار ۳: ۳۵۳، مطلب فيمن وجد حطبا فى نهر أو وجد جوزا)

وفى الخانية: حطب وجد فى الماء إن لم يكن له قيمة فهو حلال لمن أخذه وإن كانت له قيمة يكون لقطة. (الفتاوى الخانية على هامش الهندية ۳: ۳۹۰، كتاب اللقطة)

**یادونه:** څرګنده دي وي چې دا د مملوکه لرګو حکم لري، د غیر مملوکه لرګو نیول روا او استعمال یې هم روا دی ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## د لقطې د بوټانو حکم

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زما سره یو ځای دوه کسان ناست وو. له هغوی نه د ماشومانو بوټونه پاتې شول. ما اخوا دېخوا ډېر ورپسې وکتل؛ خو پیدا مې نه کړه. هغه بوټونه مې کور ته راوړه. اوس راته معلومه شوه چې کور ته یې راوړل بېده نه دي، تاسو مهرباني وکړئ د شرعي مسئلې نه مو خبر کړئ چې مور او پلار مې هم پکښې وننه نیول شي بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**جواب:** تاسو دا نه دي لیکلي چې دا بوټونه اوس هم شته او که ختم شوي دي، په هر حال چې وي اوس که تاسو غریبانان یئ: نو دا بوټونه خپله استعمال کړئ او که شتمن یئ بیا یې بل چاته ورکړئ یا یې قیمت خیرات کړئ؛ ﴿۲﴾ وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله المسلمون شركاء في ثلاث) أي شركة إباحةٍ لا شركة ملكٍ، فمن سبق إلى شيء من ذلك في وعاء أو غيره وأحرز فهو أحق به وهو ملك له دون من سواه يجوز له تمليكه بجميع وجوه التمليك...... حطب في ملك رجل ليس لأحد أن يحطبه بغير إذنه وإن كان غير ملك فلا بأس به.

(ردالمحتار ۵: ۳۱۲،۳۱۳، فصل الشرب)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفي: فينتفع الرافع بها لو فقيرا وإلا تصدق بها على فقير ولو على أصله وفرعه وعرسه. (الدر المختار ۳: ۳۵۱، كتاب اللقطة)

وقال العلامة المرغيناني: وإن كان الملتقط غنيا لم يجز له أن ينتفع بها..... وإن كان الملتقط فقيرًا فلا بأس بأن ينتفع بها.

(الهداية ۲: ۶۱۷، كتاب اللقطة)

## د جامو څخه د نامعلوم سړي په نامه چیک راوتل او بیا د هغې کارول

**سوال:** د دین عالمان په دې اره څه وایي چې ما د یوه سړي څخه جامې واخیستلې، د هغه په جیب کې یو زوړ چیك و چې د برق والا یو نوم (اسماعیل) ورباندې لیکل شوی ؤ؛ خو د برق والا په څلوېښت زره کسانو کې ددې هیڅ درك نه کیږي چې دی به کوم ځای اوسیږي؟ په دې اره مو ستاسو خدمت ته دا عرض پایه ورِاندې کړه تر څو تاسو راته د مسئلې حل وښیئ چې ایا زما لپاره ددې جامو کارول روا دي او که نارو؟ بینوا توجروا

المستفتي: شاه محمد مطبخي رائ وند ..... ۱۳۹۸ هـ / شوال / ۲۷ /

**جواب:** دا جامې د لقطې حکم نه لري، لعدم رفع الشيئ الضائع ههنا. په یقیني توګه بې د امانت او ودیعت څخه شمېرل هم د ظاهر خلاف دي، لأنَّ الظاهرَ التصرف الجائز، بلکې د امانت کېدو شبه پکې شته چې واجب الرعایة نه ده. لأنَّ الاجتنابَ عنِ الشبهاتِ عصيرٌ في عصرنا كما صرح به في الأشباه والنظائرِ﴿۱﴾ ډېر احتیاط په دې کې دی چې ددې سره باید دلقطې په څېر چلند وشي، یعنې شتمن دې خیرات کړي او غریب دې په خپل کار کې راولي. ونظيره ما في الهندية (۲: ۳۲۰ كتاب اللقطة) رجلٌ غريبٌ مات في دار رجلٍ وليس له وارثٌ معروفٌ وخلف معه خمسة دراهم وصاحب الدار فقيرٌ لم يكن له أنْ يتصدقَ بهذا المال على نفسه لأنه ليس بمنزله اللقطة﴿۲﴾.

وفي رد المحتار ۳: ۴۴۶ كتاب اللقطة في البحرِ عنِ الخلاصةِ والواجيةِ مات

---

﴿۱﴾ وفي الأشباه والنظائر: ليس زماننا زمان اجتناب الشبهات كما فيه من الخانية والتجنيس.

(الأشباه والنظائر ۲۸۷ كتاب الحظر والإباحة)

﴿۲﴾ (فتاوى هندية ۲: ۲۹۰، كتاب اللقطة)

غریبٌ .... فله أنْ یتصدقَ علی نفسه انْ کانَ فقیراً کاللقطةِ وفی الخانیةِ لیس له ذلك لأنه لیس کاللقطةِ قال فی البحرِ والأوّلُ اثبتُ وصرَّحَ به فی المحیطِ﴿۱﴾. انتهی

قلتُ والوجه لما اکتفی الصرف علی نفسه عند کونِ الشیئ أمانةً حقیقةً فیکون الانتفاءُ بأولی عند کونه أمانة شبهة . وهو الموفق

---

﴿۱﴾(ردّالمحتار ۳:۳۵۲،کتاب اللقطة)

# کتاب الغصب

قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلّم
ألا لا تظلموا ! ألا لا یحلّ مال امرئ
إلا بطیب نفس منه.

(البیهقی)

# كتاب الغصب

قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلمَ ألا لا تظلموا ! ألا لا يحلُّ مال امرئٍ الا بطيب نفسٍ منه (دار قطنی)

## غصب په شرعي شهادت سره ثابتول ضروري دي

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې فضل حسين ولد ګل او محب الله ولد علي په محمد رحيم او نوشاد باندې د ځمکې د غصب دعوه لري، دا ځمکه د شاه جهان نواب د زماني څخه دوی په زوره اخيستې ده، کله چې شاه جهان ته دوسيه ورسېده؛ نو مقابل لوری به د شريعت فيصلې منلو ته نه تيارېدلو، ددې له امله شاه جهان دغه ځمکه مدعيانو ته وسپارل، تر درې کښتونو پورې دغه ځمکه مدعيانو وکرله، درې کاله وروسته نوابي حکومت ختم شو، سمدستي پرې مدعى عليهم خلکو حمله وکړه او ځمکه يې په خپله ولکه کې راوستل، تر دې وخته هم د دوی په ولکه کې ده، په عدالت کې فيصله روانه ده؛ خو لا حل يې نه دی معلوم. تاسو مو د شرعي مسئلې نه خبر کړئ بينوا توجروا

المستفتي محمد علي ديروي .... ۱۴۰۱ هـ /صفر المظفر / ۱۵ /

**جواب:** په ياد صورت کې دي دويمه ډله غصب په شرعي شهادت سره ثابت کړي او يا دي لومړی ډلې ته سوګند ورکړي، لحديث: البينة على المدعى واليمين على من أنكرَ ﴿۱﴾ پاتې شو د فيصلې خبره دا به هغه وخت کوو چې تاسو دواړې ډلې زموږ مجلس ته ځانونه حاضر کړئ. وهو الموفق

﴿۱﴾ وفي المشكوة: وجاء في رواية البيهقي باسنادحسن أوصحيح زيادة عن ابن عباس مرفوعًالكن البيّنة على المدّعى واليمين على من انكر.

(مشكوة المصابيح ۳۲۶ باب الأقضية والشهادات)

وفي الهندية: فإن صحت الدعوى سأل المدّعى عليه عنهافإن اقرّاوانكرفبرهن المدّعى قضى عليه والاحلف بطلبه.

(فتاوی هنديّة۴: ۱۳، كتاب الدعوى:الباب الثالث في اليمين)

## په مسلمانانو باندې له غاصبه د مغصوب منه د حق غوښتنه ضروري ده

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې زما درې ورونه دي، زما ټول حقونه يې راڅخه غصب کړي دي، پلار مي هم له هغوی سره دی، زما هيڅ ګناه نشته، نور خو پرېږده هغه څه چې مي په خپل لاس ګټلي، له هغو يې هم بې برخې کړی يم، اوس زما لپاره څه کول پکار دي؟

بينوا توجروا

المستفتي: عباس دکاندار جليان

**جواب:** په ټولو مسلمانانو باندې لازم دي چې د پلار او ورونو څخه ستا د حق مال غوښتنه وکړي. ﴿۱﴾وهو الموفق

---

﴿۱﴾ وفي المشكوة: "عن ابى سعيد الخدرى عن رسول الله ﷺ قال: من رأى منكم منكرًا فليغيّره بيده فإن لم يستطع فبلسانه فإن لم يستطع فبقلبه وذلك أضعف الإيمان.....وعن ابى بكر الصديق رضى الله عنه.....فإنّى سمعت رسول الله ﷺ يقول إنّ النّاس إذا رأوا منكرًا فلم يغيّروه يوشك أن يعمّهم الله بعقابه.

(مشكوة المصابيح ۴۳٦، كتاب الأدب،باب الأمر بالمعروف)

وقال الملاعلى القارى رحمه الله تعالى: ثمّ اعلم انّهٗ إذا كان المنكر حرامًا وجب الزجر عنه،وإذا كان مكروهًا ندب......وشرطهما أن لايؤدى إلى الفتنة كما علم من الحديث وأن يظنّ قبولهٗ........قال النووى رحمه الله تعالى فى شرح المسلم: قولهٗ فليغيّره بيده هو أمر إيجاب،وقد تطابق على وجوبه الكتاب والسنّة وإجماع الأمّة وهو أيضًا من النّصيحة الّتى هى الدين......فمن وجب عليه وفعله ولم يمتثل المخاطب فلاعتب بعد ذلك عليه لكونه أدّى ما عليه وما عليه أن يقبل منه وهو فرض كفاية ومن تمكّن منه وتركه بلاعذر أثم.

(مرقاة المفاتيح: ۹: ۳۲۸، ۳۲۹ كتاب الأدب،باب الأمر بالمعروف،الفصل الأوّل)

## غاصب د ولکې راوستو او لاس وهنې له امله د مغصوب شي مالک نه جوړيږي

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې ايا کوم غاصب په ولکې راوستو او لاس وهنې سره د څه شي مالک جوړېدلای شي؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ... ۱۴۰۲ هـ/ جمادى الثانى / ۱۸/

**جواب:** د شرعي اصولو پر بنسټ هغه څوک چې د شي مالک نه وي، په ولکې او لاس وهنې سره يې مالک نه جوړيږي. په شريعت کې د ملکيت لپاره ولکه او لاس وهنه شرط نه ده، اګر که تر سلو کالو پورې د غاصب په لاس کې وي؛ ﴿۱﴾ خو دومره ده چې ولکه لرونکي ته به ظالم او غاصب ضرور وايو. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## مغصوبه ځمکه ځيله نه اخيستل او بل هم ترې منع کول

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې ځينو خلکو ديوې ښځې ځمکه په

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: اعلم أنّ أسباب الملك ثلاثة ناقل كبيع وهبة وخلافة كإرث وإصالة وهو الاستيلاء حقيقةً بوضع اليد أو حكمًا بالتهيئة كنصب شبكة لصيد. (الدر المختار ٥: ٣٢٩ كتاب الصيد)

وقال العلّامة سليم رستم باز رحمه الله تعالى: أسباب التملّك ثلاثة: الأوّل الناقل للملك من مالك إلى مالك آخر كالبيع والهبة، والثانى أن يخلف واحد الآخر كالإرث، والثالث إحراز شئ مباح لا مالك له.

(شرح المجلّة ٦٧٩، المادة ١٢٤٨، الفصل الثالى فى كيفيّة استملاك الأشياء المباحة)

﴿۲﴾ وفى مجموعة قواعد الفقه: الغصب فى اللغة أخذ الشئ ظلمًا مالًا كان أو غيره، وفى الشرع أخذ مال متقوّم محترم بلا إذن مالكه بلا خفية ويقال للآخذ غاصب.

(مجموعة قواعد الفقه ٤٠٠، الرسالة الرابعة: التعريفات الفقهيّة)

زوره نيولي، هغوی خپله بېول مړه شوي؛ خو بچيان يې اوس ژوندي دي او ښځه خپله ژوندی ده، په ولکه لرونکو خلکو کې يو کس وايي چې ماته ددې ښځې کومه برخه رارسيږي هغه دې نه ورکوم؛ خو نور ورونه يې دومره ورته غوسه کيږي چې د مرګ اختارونه هم ورکوي، اوس ددغې مقبوضه ځمکې د تر لاسه کولو لپاره شرعي حکم څه دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: قاري فضل احمد صاحب موضع بيکا خيل تحصيل صوابی مردان .... ۱۹۸۴/ مئ/ ۵/

**جواب:** په شرط ددې چې رښتيا او ثابت وي؛ نو دغه ياد ولکه لرونکي (مقبوضين) خلك ظالمان دي، په دوی لازم دي چې خپله هم پردی حق وروسپاري او نور هم له داسې کارونو منع کوي ﴿۱﴾وهو الموفق

**د حکومت د عامو ګټو لپاره د خلکو ملکيتي ځمکې بغير له بدل ورکولو اخيستل**

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې ايا اسلامي حکومت د چا خپله ملکيتي ځمکه د عامه ګټو لپاره د چا نه په زوره او بې بدله اخيستلای شي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: احمد دين جهنګ .... ۱۹۹۳/ اګست/ ۱۶/

---

﴿۱﴾ وفی شرح المجلّة: يلزم ردّ المغصوب عيناً وتسليمهٗ إلى صاحبه فى مكان الغصب إن كان موجوداً...... أمّالزوم عين المغصوب فلقوله عليه الصلوٰة والسّلام: على اليدما اخذت حتّى ترد ولقوله عليه الصلوٰة والسلام :لايحلّ لأحدكم ان ياخذمال اخيه لاعبًا ولاجادًّا وإن اخذه فليردّهٗ عليه.

(شرح المجلّة۳:۲ ۴۱، المادة ۸۹۰،الفصل الأوّل فی بيان احكام الغصب)

وقال العلّامة المرغينانى رحمه الله تعالیٰ:"وعلى الغاصب ردّالعين المغصوبة معناه مادام قائمًا.

(الهداية۳:۳۷۳ كتاب الغصب)

**جواب:** دعامه ګټو دخوندي ساتلو په نيت به دځمکې بدل ضرور ورکوي. ﴿۱﴾ د بدل پرته د مملوکه ځمکې اخيستل د هيچا لپاره روا نه دي. ﴿۲﴾ والله أعلمُ

## مغصوبه ځمکې څخه د ګټو اخيستلو او تاوان حکم

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې:

(۱) حاجي دين او محمد دين د احمد خېلو د کلي او سېدونکي زموږ په کلي دلو خېلو کې ځمکه اخيستې وه، په دې کې يې پنځلس کاله ځمکه په موږ خرڅه کړه. د دوی له لورې څلور (وزير اعظم، محمد عمر، بهادر او فضل الرحيم) دهقانان وو. دا دهقانان د ځمکې د پلورلو وروسته ماته راغلل چې په دې ځمکې موږ تاته ګټه درکوو او ځمکه موږ ته راکړه! ما ورته انکار ورکړ. اوس تقريباً لس کاله (د ۱۹۷۷ نه تر ۱۹۸۷ پورې) هغوی ماته د ځمکې يوه خاشه ګټه نه ده راکړې او نه يې ماته د ځمکې قبضه راکړې. ايا زه د دې لسو کالو د ځمکې د پيداوار حق لرم چې غوښتنه يې وکړم او که نه؟

---

﴿۱﴾ نظيرهٔ مافی الدرّالمختار: وباع القاضی عليه طعامه وفاقًا علی الصحيح وفی السراج: لوخاف الإمام علی اهل بلد الهلاک أخذ الطعام من المحتکرين وفرّق عليهم فإذا وجدوا سعةً ردّوا مثله. (الدّر المختار)

وقال العلّامة ابن عابدين رحمه الله تعالیٰ "(قوله وباع القاضی عليه طعامه) ای إذا امتنع باعهٔ جبرًا عليه، قال فی الهداية: وهل يبيع القاضی علی المحتکر طعامهٔ بغير رضاه قيل هو علی اختلاف عرف فی بيع مال المديون وقيل يبيع بالاتفاق لأنّ اباحنيفة يری الحجر للفع ضررٍ عامٍ وهذا کذلک.

(الدّرالمختار مع ردّالمحتار ۵: ۲۸۲، ۲۸۳ کتاب الکراهية: فصل فی البيع)

﴿۲﴾ قال العلّامة ابن عابدين رحمه الله تعالیٰ: ليس للامام أن يخرج شيئًا من يد احدٍ الّا بحق ثابت معروف. (ردّالمحتار ۳: ۲۸۱ مطلب ليس للامام أن يخرج شيئًا الخ)

(۲) ایا په شریعت کې زه دا حق لرم چې خپله دغه مملوکه ځمکه له هغوی نه واخلم، په داسې حال کې چې هغوی اوس هم پرې ولکه لري؟

(۳) ایا زه دا حق لرم چې دغه ځمکه وکرم او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: حاجي محمد هاشم دلو خېل لکي مروت، بنو .... ۱۹۸۷م/اکتوبر/۱۰/

**جواب**: په داګه دي وي چې د یادي ځمکې د ګټو تاوان به نه اخیستل کیږي؛ خو کومه ځمکه چې د استغلال لپاره وي، د اجارې لپاره څرخه شوې وي، د هغې د ګټو تاوان به ورکوي، كما في شرح التنوير ۵: ۱۸۰ : أوْ معداً أی أعده صاحبٌ للاستغلال بأنْ بناه لذلك أوْ اشتراه لذلك﴿۱﴾وهو الموفق

## په دلایلو او شواهدو ثابته شوې غصب ځمکه به مالک ته ورکول کیږي

**سوال**: د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې شل کاله وړاندې د حکیم خان په ولکه کې یوه ځمکه وه، زه د عذر له امله د خپل وطن څخه لرې ځای ته مسافر شوم، ما د بنو اریکو ساتلو له امله د خپل تره زامنو لکه هر یو: محمد جان، سید احمد جان او ملك ګجر ته دغه یاده ځمکه پرېښوده؛ خو بدبختانه زما د مسافری نه وروسته اوس لس کاله وشو چې دغه یاد خلك مي خپله پلرنۍ ځمکه نه را خوشې کوي، په داسې حال کې چې زه شاهدان

﴿۱﴾ وفی شرح المجلة "انّ منافع الغصب غیر مضمونة الّا فی الوقف ومال الیتیم والمعدّ للاستغلال. (شرح المجلة ۴۳۶:المادة ۵۰۷)

﴿۲﴾ (الدر المختار ۵: ۱۲۶، کتاب الغصب)

وقال العلّامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: منافع الغصب غیر مضمونة استوفاها أو عطّلها فإنها غیر مضمونة عندنا إلّا أن یکون المغصوب وقفاً أو مال یتیم أو معدّاً للاستغلال. (الفتاوی تنقیح الحامدیة: ۲: ۱۷۳ "کتاب الغصب")

هم لرم، ستاسو نه په درننبت هیله کوو چې د شرعي مسئلې څخه مو خبر کړئ! بینوا توجروا

المستفتي: مولوي حکیم خان ملا کنډ ....۱۴۰۳ هـ / ربیع الثاني / ۱۰/

**جواب:** که ددې ځمکې غصب په شهادت سره ثابت وي؛ نو شرعي مالك ته به سپارل کیږي. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د کښت په میراثي ځمکه د یو ورور ولګه او بل بې برخې پرېښودل یا کښت نه ورکول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زموږ پلار شل کاله کیږي چې وفات شوی او موږ څلور ورونه (غلام زکریا، حاجي محمد اسمعیل، حاجي طالب محمود او عبد الله جان) ترې پاتي یو، زموږ د وروتو په اتفاقي مشوره به یاده ځمکه زموږ مشر ورور کرل او موږ درې ورونو ته به یې څه ناڅه شی راکولو، اوس شاوخوا لس کاله کیږي چې په زوره یې په خپل واك کې راویستي

﴿۱﴾قال العلامة المرغیناني رحمه الله :وعلی الغاصب ردّ العین المغصوبة معناه مادام قائماً لقوله علیه السلام: "علی الید ما أخذت حتی تردّ" وقال علیه السلام: "لایحلّ لأحد أن یأخذ متاع أخیه لاعباً ولا جاداً فإن أخذه فلیردّه علیه.

(الهدایة۳: ۳۷۳، کتاب الغصب)

وقال العلامة وهبة الزحیلي رحمه الله: اتفق الفقهاء علی أنه یجب ردّ العین المغصوبة إلی صاحبها حال قیامها ووجودها بذاتها لقوله علیه الصلوة والسلام: "علی الید ما أخذت حتی تؤدیه لایأخذنّ أحدکم متاع أخیه جاداً ولا لاعباً، وإذا أخذ أحدکم عصا أخیه فلیردّها علیه.

(الفقه الإسلامي وأدلّته ۶: ۴۸۰۰: الفصل السابع: الغصب والإتلاف، المطلب الثاني: أحکام الغصب)

او موږ ته یوه دانه غنم هم نه راکوي، ددې وروړ په اړه موږ ته شرعي حکم څه دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: حاجي محمد اسمعیل ... ۱۹۸۶م / فروري / ۱۵/

**جواب:** په شرط ددې چې رښتیا او ثابت وي، د پورته مضمون له مخې په مشر وروړ لازم دي چې په یاده ځمکه کې خپلو ورونو ته خپله برخه «۱» او پیداوار ورکړي، «۲» کنه نو د حرام خوري او غصب سختې سزا ته دي ځان تیار کړي، «۳» والمسئلةُ من الواضحات فلا حاجةَ الى نقلِ العباراتِ ، وهو الموفق

## د حکومت لپاره د مالک د اجازې پرته په ځمکه ابادي کول

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يو سړي د کور د جوړولو په نيت څه ځمکه ځان ته واخيسته، وړاندې له دې چې سړی پرې خپل کور جوړ کړي، د صوبه سرحد حکومت د مالك د اجازې پرته ابادي ورباندې پيل کړه،

---

«۱» قال العلّامة المرغيناني رحمه الله :وعلى الغاصب ردّالعين المغصوبة،معناه مادام قائمًالقوله عليه السلام: "على اليدماأخذت حتّى ترد"وقال عليه السلام:"لايحلّ لأحدان يأخذمتاع أخيه لاعبًاولاجادًافإن اخذهُ فليردّهُ عليه.

(الهداية ٣: ٣٧٣ كتاب الغصب)

«۲» فى الهنديّة:وسئل شيخ الإسلام عطاء بن حمزة عمّن زرع أرض انسان ببذرنفسه بغيراذن صاحب الأرض، هل لصاحب الأرض أن يطالبهُ بحصة الأرض؟ قال: نعمإ إن جرى العرف فى تلك القرية أنّهم يزرعون الأرض بثلث الخارج أوربعه أونصفه أوبشى مقدرشائع يجب ذلك القدر الذى جرى به العرف.

(الفتاوى الهندية ٥: ١٢٢، الباب العاشرفى زراعة الأرض المغصوبة)

«۳» عن سعيدبن زيد قال سمعت النبى ﷺ يقول :من اخذشبرًامن الأرض ظلمًافإنّه يطوّقهُ يوم القيامة من سبع أرضين.

(صحيح المسلم ٢: ٣٣ كتاب المساقاة والمزارعة،باب تحريم الظلم الخ)

ایا په اسلام کې داسې کارونه روا دي او که ناروا؟ بینوا توجروا

المستفتي: ډاکټر فضل معبود محله شیخان اکوړه خټک .... ۱۴۰۵ هـ / رمضان/ ۲۸/

**جواب:** تر کله پورې چې اسلامي قانون نه وي پلې شوی؛ نو په پردیو بې ثبوته ځمکو تعمیرونه جوړول ظلم «۱» او د خلکو څخه په زوره د ځمکې اخیستل ناروا دي.

## د غاصب په مرینې د غصب شوې ځمکې حکم

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې څه وخت وړاندې یو سړي د دوه ښځو نه په چل باندې د ځمکې په بدل کې اوه سوه روپۍ ګانه (ګرو، ښځو ته ورکړي وې، د خط د لیکلو پر مهال یې د ګرو پر ځای بیع لیکلې وه، کله چې ددې دواړو ښځو زامن غټ شول او سړي ته یې دده د ګرو روپۍ ورکولې؛ نو هغوی ته معلومه شوه چې زموږ سره خو یې چل کړی دی او د ګرو پر ځای یې بیع لیکلې ده. د دواړو ښځو زامنو د سپین روبو په جرګه دغه ځمکه له یاد سړي څخه واخیسته، له بد قسمته دوه ورځې لا نه وې پوره شوې چې دغه یاد سړی مړ شو او دده زامنو بیا په دغه ځمکه قبضه وکړه. اوس زموږ په اړه شرعي فیصله څه ده؟په داسې حال کې چې موږ شاهدان هم لرو. بینوا توجروا

المستفتي: بخت علي شاه ضلع هزاره .... ۱۹۶۹ م / اپریل / ۵/

---

«۱» قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ليس للامام أن يخرج شيئاً من يد أحد إلا بحق ثابت معروف. (ردّ المحتار ۳: ۲۸۱ مطلب ليس للإمام أن يخرج شيئاً الخ)

وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: إذا كان فعل الإمام مبنيًّا على المصلحة فيما يتعلق بالأمور العامّة لم ينفذ أمره شرعًا إلا إذا وافقهُ فإن خالفهُ لم ينفذ، ولهذا قال الإمام ابويوسف رحمه الله في "كتاب الخراج" من باب إحياء الموات وليس للإمام أن يخرج شيئًا من يد أحد إلا بحق ثابت معروف.

(الأشباه والنظائر ۱۲۳، القاعدة الخامسة: تصرف الإمام على الرعيّة منوط بالمصلحة)

**جواب:** ددې مړي په پاتې شوو بچیانو فرض ده چې پردی مال خپل حق دار ته ورسوي، قال رسول الله ﷺ من أخذ شبراً من الأرضِ ظلماً فانه يطوقه يوم القيمةِ من سبع أرضينَ . متفقٌ عليه «۱» فقط .

## د یو قوم په ملکیتي ونو د بل قوم قبضه کول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې د یو کلي سره خواته په دشته کې وابنه او بوټي راتوکیږي چې وخت په وخت ترې نږدې کلی ګټه اخلي، او س د یو بل کلي خلک راځي او غواړي چې دغه بوټي په خپله ولکه کې راولي، په دې اړه شرعي حکم څه دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد البصیر کوهاټي

**جواب:** ددې کلیوالو خلکو په همدې ځمکه ولکه ثابته ده، د مخالفې ډلې لپاره ددې ځمکې د قدرتي پیداوار نه ګټه اخیستل د اثبات نه وړاندې ناروا ده، کما فی تنقیح الفتاوی الحامدیةِ ۱: ۱۲۱ ، لا ينزعُ شيءٌ من يدِ أحدٍ الا بحقٍ «۲» وهو الموفق.

---

«۱» (صحیح المسلم ۲: ۳۳، کتاب المساقاة والمزارعة، باب تحریم الظلم وغصب الأرض)

وقال العلامة وهبة الزحیلی رحمه الله تعالی: ثبت تحریم الغصب فی القرآن والسنّة والإجماع، أمّا القرآن فقول الله تعالی: يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَأْكُلُوٓاْ أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ. (النساء ۴/ ۲۹)

وأمّا السنّة فقوله علیه السلام: إنّ دماء کم وأموالکم حرام علیکم کحرمة یومکم هذا فی شهرکم هذا فی بلدکم هذا .(الفقه الإسلامی وأدلته ۴: ۴۷۸۶ " الفصل السابع: الغصب والإتلاف، المطلب الأوّل: تحریم الغصب")

«۲» (فتاوی تنقیح الحامدیّة ۱: ۱۲۱، کتاب الوقف)......(بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

## د غصب شوي ځمکې د کښت او پيداوار حکم

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې زيد د عمر ځمکه په زوره کري، اوس پيداوار ښه راپورته شوی هم دی، د شريعت له مخې د دې کښت اصلي حقدار څوک دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: حاجي نواز خان بيګو خېل لکی مروت

**جواب:** دا ټول پيداوار د زيد دی، زيد به د تخم په اندازه خپل مال واخلي، پاتې نور به صدقه کړي، که د کښت له امله د ځمکې په قيمت کې کمی راغلی وي، دا کمي به زيد پوره کوي، (مأخوذ من الهندية ٥: ٣٠٣)﴿١﴾خو عمر ته هم اختيا ر دی چې کښت همدا اوس لرې کوي او که د څه وخت لپاره اجاره ورسره کوي، (مأخوذ من الهندية ٥: ١٦٠)﴿٢﴾فقط وهو الموفق .

---

(بقيه حاشيه) وقال العلّامة ابن عابدين رحمه اللّٰه تعالىٰ :إنّ وضع اليدو التصرف من أقوى مايستدلّ به على الملك..... وليس للإمام أن يخرج شيئًامن يدأحدالّا بحق ثابت معروف.

(ردّالمحتار ٣: ٢٨١ "كتاب الجهاد، مطلب :ليس للإمام أن يخرج شيئًا الخ")

﴿١﴾ وفي الهنديّة :وعلى المزارع أن يرفع من الخارج مقدارأجرعمله وثيرانه وبذره ويتصدّق بالباقي كمافي الغصب..... فإن علم انّه زرعهاغصبًابان اقرّالزارع عندالزرع انّه يزرعهالنفسه لاعلى المزارعة يكون غاصبًاويكون الخارج له وعليه نقصان الأرض.

(فتاوىٰ هنديّة ص ٢٧٢. ٢٧٣، ج ٥ "الباب الثالث و العشرون في زراعة الأراضي بغيرعقد")

﴿٢﴾ وفي الهنديّة: غصب من آخرارضًافزرعهافلصاحبهاأن ياخذالأرض ويأمر الغاصب بقلع الزرع تفريغًالملكه..... وللمالک أن يرجع على الغاصب..... (بقيه حاشيه اگلے صفحه پر)

## د غصب په ځمکه کې د خدايي شنو ونو او لاسي كرل شويو ونو حكم

**سوال:** د دین عالمان په دې اره څه وايي چې د زيد ځمكه عمر په زوره نيولي، د زید د پیا - پیا غوښتني سره اوس هم عمر انکار کوي او ځمكه نه ورکوي؛ خو د نورو ورونو او ملګرو په ذريعه د عمر څخه ياده ځمکه زید ته په لاس ورغله؛ خو په دې ځمکه کې د غصب سره سمدستي عمر څه ونې هم کرلي وي، اوس دغه ونې د چا دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: شفيع الله د جهانګيري اوسپدونکی ۱۴۰۳ هـ / ربيع الثاني / ۲۳ /

**جواب:** خدايي تو کېدلې ونې د ځمکې د څښتن دي، (شرح المجلة) ﴿۱﴾او په لاسي لګول شويو ونو کې به د ځمکې څښتن ته د ځمکې کرايه ورکوي، دا هغه وخت که بې اجازې يې لګولي وي. ﴿۲﴾وهو الموفق.

---

(بقيه حاشيه) بنقصان الأرض إن نقصت الأرض بسبب الزراعة.....وسئل شيخ الإسلام عطاء بن حمزة عمّن زرع أرض انسان ببذرنفسه بغيرإذن صاحب الأرض هل لصاحب الأرض أن يطالبه بحصّة الأرض؟ قال: نعم إن جرى في تلك القرية أنهم يزرعون الأرض بثلث الخارج أوربعه أونصفه أو بشي مقدّرشائع يجب ذلك القدر.

(فتاوى هنديّة ٥: ١٣٣، ١٣٤ "الباب العاشرفي زراعة الأرض المغصوبة)

﴿١﴾قال العلامةسليم رستم باز"الأشجار النابتة بلاغرس في ملك احد هي ملكه ليس لآخران يحتطب منها إلا بإذنه.

(شرح المجلة٦٧٨ المادة ١٢٤٣، الباب الرابع في شركة الإباحة)

﴿٢﴾وقال العلامة محمد كامل الطرابلسي"ولو زرع أرض الغيربغير إذنه يعتبر العرف فإن اقتسموا الغلة أنصافا أو أرباعا اعتبروإلا فالخارج للزارع وعليه أجر مثل الأرض.

(فتاوى كاملية ٣٠٩، كتاب الغصب)

## پوازۍ په انتقال سره پردی سړی د ځمکې مالک نه جوړیږي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وايي چې زید د خپل ورور سره شریکي ځمکه واخیسته؛ خو د شراکت له امله یې ځمکه د خپل ورور په نوم کړه، اوس زید غواړي چې خپله برخه ځمکه له خپل ورور نه بېله کړي؛ خو عمر بهانې کوي او د ځمکې نه ورکولو ته چل کوي. ایا په شریعت کې زید د خپل ورور عمر سره په دې ځمکه کې برخه لري او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: حافظ رحمت دین کلی ډهوك دنوال تحصیل پنډی گهیپ ضلع کیملپور ۱۹۲۹م/۵/۱۹/

**جواب:** په شرط د دې چې رښتیا او ثابت وي، په عمر باندې ضروري دي چې د خپل ورور برخه ورکړي. قال اللّٰهُ تعالی: وَلَا تَأْكُلُوٓا۟ أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ ﴿۱﴾ وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم: لا يحلُّ مال امرئٍ مسلمٍ الا عنْ طيبِ قلبه﴿۲﴾فقط وهو الموفق.

## غصب شوې ځمکه د مالك حق دی

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وايي چې حکومت زما په ځمکه کې یوه

﴿۱﴾(سورة النساء: آیت ۲۹)

﴿۲﴾وفی المشکوة "عن ابی حرة الرقاشی عن عمه قال قال رسول الله ﷺ الا لا تظلموا، الالا یحل مال امری إلا بطیب نفسٍ منه".

(مشکوة المصابیح ۲۵۵ باب الغصب والعاریة)

وعن ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ......الا إنّ الله حرّم علیکم دماء کم وأموالکم کحرمة یومکم هذا فی بلدکم هذا فی شهر کم هذا.

(الصحیح البخاری ۲: ۶۳۲ کتاب المغازی، باب حجة الوداع)

کلا (قلعه) جوړه کړې وه، اوس حکومت دغه ځمکه پرې ایښې؛ خو یو پردي قوم پرې د شراکت دعوه کړې، ایا د شریعت له مخې دغه ځمکه ماته رسیږي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الرزاق کوهستاني ۱۹۷۵م/جون/۲/

**ځواب** په شرط ددې چې ربښتیا او ثابت وي ځمکه به د پخواني مالك وي، د تول قوم شریکي به نه وي. لأنّ الغصبَ لیس من أسبابِ الملك ، هذا عند الجمهورِ و أمّا عندَ أبي حنیفةَ رحمه الله فلعدمِ زوالِ الیدِ المحقةِ فی العقارِ كما فی رد المحتارِ ۵: ۱۶۲﴿۱﴾فتكون للمالك السابق بلا ریبٍ . وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله بإثبات ید مبطلة)...... وذكر الزاهدی أنه علی ضربین ما هو موجب للضمان فیشترط له إزالة الید وما هو موجب للرد فیشترط له إثبات الید؛ه كغصب العقار فانه موجب للرد دون الضمان عندهما.

(رد المحتار ۵:۱۲۵، كتاب الغصب)

وأیضا : والفتوی علی قول الإمام من أن الغصب لایتحقق فی العقار.

(ردالمحتار ۵: ۱۳۱ كتاب الغصب)

وقال العلامة طاهر بن عبد الرشید: وفی مختصر القدوری الغصب فعل فی العین حتی لا یتحقق غصب العقار عند أبی حنیفة وأبی یوسف رحمهما الله تعالی.

(خلاصة الفتاوی ۴:۲۶۹، كتاب الغصب)

قال النبی صلی اللہ علیہ وسلّم

لیس علی المستعیر غیر المغلّ ضمان

ولا علی المستودع غیر المغلّ ضمان.

(دار قطنی)

# کتاب الضمان

قال النبي صلى الله عليه وسلمَ ليسَ على المستعيرِ غير المغل ضمانٌ و لا على المستودعِ غير المغلّ ضمانٌ . (دار قطنی)

## د قاچاق مال په نیولو د خبر ورکوونکي د ضمان حکم

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې یو سړی قاچاقبر دی، د هغه بوره ونیول شوه، په یو سړي یې دعوه وکړه چې تا حکومت ته زما په اړه خبر ورکړی دی، ماته به زما د مال تاوان راکوې: ایا چا چې حکومت ته خبر ورکړی دی په هغه باندې تاوان شته؟ بینوا توجروا!

المستفتي: قاري حسین احمد **۱۹۷۵** م/ دسمبر / ۶/

**ځواب:** په شرط ددې چې رښتیا او ثابت وي، په کوم هېواد کې چې اسلامي حکومت نه وي، د هغوی قانون منل واجب نه دی. د همدې له امله تاجر کولای شي چې د داسې خبر ورکوونکي څخه د مال تاوان واخلي، کما فی تنقیح فتاوی الحامدیة ۲: ۱۸۸ ((اذا سعی الی السلطان بغیرِ حقٍّ لا ضمانَ علی الساعی فی قولِ أبي حنیفة و أبي یوسفَ رحمهما الله خلافاً لمحمدٍ رحمه الله ، والفتوی علی قولِ محمدٍ رحمه الله فی زماننا زجراً لهمْ و صیانةً لأموالِ النـــاسِ ، ذخیرة )) ﴿۱﴾ وهو الموفق .

## د ورک شوو شیانو وکیل ته. د تاوان او خیانت په ګمان سوګند ورکول

**سوال:** ددین عالمان په دې اړه څه وایي چې ما یو سړي ته یو شی ورکړ چې سبا

﴿۱﴾ (تنقیح الحامدیة ۲: ۱۸۰، قبیل کتاب الشفعة)

وفی شرح الوقایة: وکذا الوسعی بغیر حق عندمحمد زجرًا له وبه یفتی وعندأبی حنیفة وأبی یوسف رحمهما الله تعالی لایضمن الساعی. (شرح الوقایة ۴۶۴: ۳ قبیل کتاب الشفعة)

به دا شی فلاني سړي ته سپارې؛ کله چې مي سبا تړې وپوښتل چې هغه شی دې څه کړ؟ ده راته په جواب کې کړه: چې هغه خو رانه ورك شوی دی، ایا اوس زه دا حق لرم چې له ده نه دهغه شي غوښتنه وکړم او که نه؟بینوا توجروا

المستفتي: عرفان او نعمان خیر اباد نوښار ، ١٩٨٣م / مئ / ١ /

**جواب**: که یقیني ستا په دې سړي دا گمان وي چې له ده به ورك شوی وي؛ نو په هغه باندې د هیڅ شي تاوان نشته. که ستا دا یقین وي چې دې سړي په لاس باندې دا شی ضایع کړی او سمه ساتنه یې نه ده کړې، بیا ته اختیار لرې چې هغه ته سوگند ورکړې، (شرح المجلة﴿١﴾، شامي﴿٢﴾)- وهو الموفق .

## که ټیکه دار د پمپ د کندلو لپاره بمونه راوړي او ونیول شي؛ نو مالك یې ذمه دار نه دی

**سوال**: د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې یو سړي د مالك نه د یو پمپ د کیندلو لپاره بمونه راوړه، ناڅاپه سړی او بمونه دواړه حکومت ونیول، تر یوې میاشتې پورې د حکومت په کور کې زنداني ؤ، اوس چې کله راخلاص شو؛ نو مالك ته وایي چې زه ستا په کار کې بندي شوی یم، زما ټول اووه زره (٧٠٠٠) روپۍ خرچه شوې ده، دا به ته راکوې! ایا په شریعت کې دا سړی حق لري چې ددې روپو غوښتنه وکړي؟ بینوا توجروا

المستفتي: گل محمد خان ترناب ١٣٩٦هـ / ذو القعده / ١٠ /

---

﴿١﴾ وفی شرح المجلّة :المال الذی قبضه الوکیل بالبیع والشراء وإیفاء الدین واستیفائه وقبض العین من جهة الوکالة فی حکم الودیعة فی یده فإذا تلف بلا تعدّ ولا تقصیر لایلزم الضمان.

(شرح المجلّة ٢:٤٣٢:المادة ١٤٦٣،الفصل الأوّل فی بیان أحکام الوکالة العمومیة)

﴿٢﴾ قال العلّامة الحصکفی رحمه الله تعالیٰ :فإن ادّعی الوکیل هلاکه أو دفعه لموکّله صدق الوکیل بحلفه.

(الدرّالمختار ٤:٤٦٠،"کتاب الوکالة،باب الوکالة بالخصومة والقبض")

**جواب:** دا ټيکه دار هيڅ حق نه لري چې له چانه (۷۰۰۰) زره روپۍ په زوره واخلي، لأنَّ المظلومَ لا يظلمُ ﴿۱﴾ وهو الموفق .

## د شريکي ګودام په چوکيدار باندې د غلا شوو شيانو حکم

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې په يو ځای کې ګڼ خلك خپل شيان ږدي او د هغې چوکيدار هم شته؛ نو که دداسې ځای نه څه ورك شي ايا په چوکيدار به يې تاوان لازم وي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولانا عبد الحليم صاحب ديروي، استاذ دار العلوم حقانيه اکوړه خټك ۱۴۰۱ هـ/ ربيع الأول/ ۱۰/

**جواب:** په ياد صورت کې په چوکيدار باندې تاوان نشته، لما فى شرح المجلة ۳۴۶ : استوجرَ رجلاً لحفظِ خانَ أوْ حوانيتَ فضاعَ شيئٌ قيلَ يضمنُ لوْ ضاعَ من خارجِ الحجرةِ و قيلَ لا فى الصحيحِ وبه يفتى ، لأنه اجيرٌ خاصٌ، ولوْ ضاعَ منْ داخلها فانْ نقب اللصُّ فلا يضمنُ الحارسُ فى الأصحِّ ﴿۲﴾ انتهى بحذف يسيرٍ .

**يادونه:** په مستاجر باندې هم تاوان نشته. ﴿۳﴾ وهو الموفق .

---

﴿۱﴾ وفى مجموعة قواعدالفقه :المظلوم له أن يدفع الظلم عن نفسه بماقدرعليه ولكن ليس له أن يظلم غيره. (مجموعة قواعدالفقه ۱۲۴، قاعده ۳۳۲)

﴿۲﴾ (شرح المجلّة لسليم رستم بازرحمه الله تعالى: ص ۳۲۹، المادة: ۶۱۰)

﴿۳﴾ قال العلامة سليم رستم بازرحمه الله تعالى: لايلزم الضمان اذاتلف الماجورفى يدالمستاجراوضاع أوطرأعلى قيمته نقصان......مالم يكن بتقصيره اوتعديه أومخالفته لماذونيته.

(شرح المجلّة: ۳۲۲، المادة: ۶۰۱ "الفصل الثانى فى ضمان المستأجر")

**د موټر د چپه کېدو پرمهال د مړو او د مالونو په ضایع کېدو د تاوان حکم**

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید ډاټسن درلوده، بکر یې چلوونکی ؤ، زید بکر ته وویل چې نه به خالد ته هیڅکله موټر د چلولو لپاره نه ورکوې، ځکه چې د چلولو سند نه لري او نه هم هغه موټروان دی. ددې له امله که خالد موټر واخیست او چپه یې کړ؛ نو د تاوان ذمه وار به یې ته یې؟ څو ورځې وروسته خالد ډاټسن چپه کړه چې دوه کسان پکښې مړه او نور زخمیان شول؛ نو ددې مړو دیت به خالد ورکوي او که د موټر مالک؟ او دا قتل خطا دی که قتل سببي؟ دغه راز کوم مالونه چې ضایع شوي د هغو تاوان په چا باندې لازم دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد امیر خان د تل او سېدونکی. تحصیل هنګو کوهاټ
۱۹۸۲م / اکتوبر / ۱۹ /

**جواب:** دا قتل د قتل سببي په څېر دی، په دې کې دده هیڅ ډول لاسي عمل نه ؤ، که پېښه د موټر چلوونکي په قصدي عمل شوې وي؛ نو د هلاک شوو شیانو تاوان به موټروان ورکوي او د انسانانو د وژلو تاوان نه په موټروان شته او نه هم د موټر په اصلي مالک، و نظیره ما فی الهندیة ۶: ۹۶ باب المتفرقات﴿۱﴾ وهو الموفق.

**د نورو خلکو له ځمکې د اوبو په بندولو د تاوان حکم**

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې بکر د پنځوسو کالو راپه دېخوا خپل کښت د هغې ویالې په اوبو خړوبوله چې د زید په ځمکې راتېره شوې وه، زید غواړي چې د اوبو لاره یې بنده کړي او عمر ته وایي چې دا زما

﴿۱﴾ و فی الهندیة :ولو اصطدمت السفینتان إن کان بفعل الراکب والملاح ضمن ولاضمان فی الأنفس وفی المال یضمن الملاح کذافی خزانة المفتیین.

(فتاوی هندیه ۶:۸۸، الباب السابع عشرفی المتفرقات)

ځمکه ده، نو زه نه غواړم چې ستا ځمکې ته اوبه زما په لاره لاړې شي، که په حکومتي کاغذونو کې دي ثابته کړه چې دا عمومي لار ده بیا یې درکولو ته تیار یم، د لټیون وروسته په حکومتي کاغذونو کې د خړوبولو لاره د بکر راوختنه، په دې وخت کې چې زید دعوه پوره کړې او په عمر یې اوبه بندي کړې. یو کال یې پوره شو، اوس به د عمر د ځمکې تاوان زید ورکوي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: ماستر ګل محمد سکنه تجوړي ضلع ډېره ۱۹۸۸م/جون/۱۹/

**جواب:** د هر ظلم فیصله په دنیا کې ناشونې ده، څه اخرت ته هم پرېښودل پکار دي، وفي الهندية ۵: ۴۰۱ أراد سقي أرضه أوْ زرعه عنْ مجرى ماءٍ فمنع الرجل حتّى ضاع الزرع لا يضمنُ كما لو منع الراعي حتى هلك المواشي﴿۱﴾وهو الموفق.

## د کشتۍ د ډېرې سره د ټکر پرمهال د هلاک شوو مالونو د تاوان حکم

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وايي چې یو سړی کشتۍ چلوونکی دی، په عامو وختونو کې دده کشتۍ د پرش بوری وزن پوره کوي؛ خو دا ځل هغه شپږ ویشت بورۍ پوره کړې، کله چې کشتۍ د سیند منځ ته ورسېده؛ نو د ډبرې سره یې ټکر وخوړ چې له امله یې شپږویشت واړه بورۍ ډوبې شوې، د کشتۍ چلوونکي سره د مال د مالك دوه مزدوران هم وو، چلوونکي یې د ډېر کوشش وروسته کشتۍ څنډې ته کړه چې دوه بورۍ یې روغې راورسېدې، د سیند په غاړه کشتۍ د څلرویشتو بوریو سره ډوبه شوه، په هغې کې هم پنځلس بورۍ وویستل شوې او نهه بورۍ بیخي ډوبې شوې، ایا په شریعت کې د کشتۍ چلوونکي څه ګناه شته او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: امیر بهادر پیر سباق

---

﴿۱﴾ (فتاوی هندیة۵: ۴۰۱، الباب الثالث فيمايحدثه الإنسان ومايمنع عنه ومايوجب الضمان)

وفي جامع الفصولين: منعهٗ عن سقي زرعه حتّى فسد زرعهٗ لم يضمن.

(جامع الفصولين ۲: ۸۵" الفصل الثالث والثلاثون في أنواع الضمانات الواجبة وكيفيّاتها)

**جواب**: په شرط ددې چې رښتيا او ثابت وي چې کشتۍ يې له ډېرې سره ټکر خوړلی وي بيا يې په چلوونکي تاوان نشته، في الدرالمختار (( و يضمنُ ما هلك بعمله كتخريق الثوب من دقه و زلقِ الحمالِ و غرقِ السفينةِ من مدّه )) قال العلامة الشامي ۵: ۴۳، قيد بالمدِّ لأنها لو غرقتْ من ريحٍ أوْ موجٍ أوْ شيءٍ وقعَ عليها أوْ صدم جبلٍ فهلك ما فيها لا يضمنُ في قولِ الامامِ رحمه الله تعالى فقط (رد المحتارِ ۵: ۴۳﴿۱﴾). وهو الموفق .

## د حاکم په ذريعه چاته د زيان اړولو او تاوان حکم

**سوال**: د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې زيد پرته له شرعي حقه د وخت د حاکم په ذريعه عمر ته زيان ورسولو، ايا زيد د ساعی بالفساد کېدو له امله ددې تاوان ضامن دی او که نه؟ او عمر د شريعت له مخې د مال غوښتنه کولای شي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي عبد الحق بيله تحصيل مانسهره هزاره ... ۱۹۲۹م/ اکتوبر/ ۲۱/

**جواب**: که زيد د ظالم حاکم په واسطه په ناجائزه طريقه د عمر مال هلاك کړی وي؛ نو په زيد باندې تاوان لازم دی، (لما في الأشباه والنظائرِ و شرحه للحموی ۱۲۰ ) قوله الافتاءُ بتضمينِ الساعی قيده قارئُ الهدايةِ بما اذا كان عادة ذلك الظالم أنَّ منْ رفعَ اليه ويقول فيه عنده أنْ يّأخذه منه مالاً مصادرةً يضمن الساعی في هذه الصورةِ ما أخذه الظالم هذا هو المفتى به، أفتى به المتأخرون منْ علمائنا ، انتهى ، وزادَ في السراجيةِ أنْ تكونَ السعاية بغيرِ حقٍّ منْ كلِّ وجهٍ﴿۲﴾ وهو الموفق .

﴿۱﴾ (الدرّالمختارمع ردّالمحتار ۵: ۳۶ "كتاب الإجارة،باب ضمان الأجير")

﴿۲﴾ (غمزعيون البصائرشرح الأشباه والنظائر ۱: ۴۶۷ "القاعدة التاسعة عشرة اذااجتمع المباشروالمتسبب أضيف الحكم إلى المباشر)...... (بقيه حاشيه اگلے صفحه پر)

## د مدرسې د پیسو د غلا په صورت کې په ناظم د تاوان لګولو حکم

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وايي چې زيد د يو ديني مدرسې ناظم دی، د هغه سره د مدرسې د ځينو اړتياوو پوره کولو لپاره څه نغدې روپۍ وي، د مدرسې مدير د ځينو شوونو لپاره هغه ځان ته راوبللو، د مدير صاحب د کور او مدرسې تر منځ پنځه سوه ميله واټن (فاصله) پروت دی، د ناظم صاحب سره د مدير تر کوره چې څومره خرچه او کرايه لګيږي هغه يې له خانه سره په خلته کې اچولې وه، زيد د سفر کولو پرمهال د اودس ماتولو لپاره بيت الخلاء ته لاړ، په موټر باندې کوم غل پېښ شو او دده له بکس څخه يې ټولې روپۍ غلا کړې، اوس به ددې تاوان ذمه دار ناظم وي که مدير که مدرسه او که د ټولو تر منځ به شريکې وي؟ مهرباني وکړئ د شرعي مسئلې په اړه مو خبر کړئ! بينوا توجروا

المستفتي: محمد شفيع صاحب... ۱۹۷۳م/ مارچ/ ۲۳/

**جواب:** که د خلکو تر منځ د سفر پرمهال داسې رواج وي چې پيسې په بکس کې پريږدي؛ نو په زيد باندې هيڅ تاوان نشته، بلکې تاوان به په اداره وي، که داسې رواج نه وي؛ نو بيا به ناظم تاواني وي. لترك الحفظ المعروف كما يدل عليه ما في الحامدية ، والحاصلُ أنَّ العبرة للعرفِ حتى لو ترك الحانوتَ مفتوحاً أوْ علقَ الشبكةَ على بابه و نامَ في النهارِ ليسَ بتضيعٍ و في الليلِ اضاعةٌ . (شرح المجلة ۴۳۳ مخ )﴿۱﴾ وهو الموفق .

(بقيه حاشيه) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: والفتوىٰ على قول محمّدرحمه الله تعالى من ضمان الساعي بغير حق مطلقًاويعزر.

(ردّالمحتار ۳:۵ ۲۱ مطلب في ضمان الساعي، كتاب السرقة")

﴿۱﴾ (شرح المجلّة لسليم رستم بازرحمه الله تعالى ص ۴۳۳،المادة ۷۸۲:"الفصل الثاني في أحكام الوديعة والضمان")

## که څوک مبیعه په پوسټ (ډاکخانه) ولېږي او د نه خوښولو وروسته په لاره کې ضایع شي تاوان به یې په چا وي؟

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید عمر ته د چوغې جوړولو په اړه وویل (په داسې حال کې چې دواړه په بېلا بېلو ځایونو کې استوګن دي) بکر چوغه په پوسټ باندې ولېږله، هغه چوغه د زید نه وه خوښه، زید بیا دغه چوغه د پوسټ په واسطه عمر ته ورولېږله، د پوسټ خلکو چوغه له خلتې وویستله او د هغې په ځای یې یوه عامه ټوټه ورداخله کړه، اوس چې کله بکر ته خپله خلته ملا وېږي؛ هماغه چوغه پکښې نشته. اوس سوال دا دی چې دا چوغه د چا له لاسه ورکه شوه او دا شته ټوټه به د چا وي؟ په یاد دي وي چې د چوغې قیمت هم نه و تاکل شوی. بینوا توجروا

المستفتي: احمد حسن بوکي ګاړ هزاره ... ۱۳۶۹ هـ/ محرم / ۲۹/

**ځواب:** ددې ورک شوي چوغې تاوان په زید باندې نشته، ځکه چې د زید او عمر تر منځ هیڅ کومه بیع قطعي نه ده شوې، همدا راز زید هم نه ده قبضه کړې، أما البیع بالقول فلعدم الایجاب والقبول ولأنّ الواحدَ لا یتولی طرفی البیعِ ، وأما البیع بالتعاطی فلعدمِ التعاطیِ الیٰ زید ولا الا وکیله لأنّ محکمةَ البریدِ وکلاءُ المعطی (بالأجرة) لا وکلاءُ المرسلِ الیه، د زید د نه قبضه کېدو سره بیا هم هغه تاواني کول د قاعدې او قانون خلاف کار دی، ﴿۱﴾ د ثمن د نه ټاکلو له امله هم دا معامله شرعي نه ده. ﴿۲﴾ وهو الموفق .

---

﴿۱﴾ وفی شرح المجلّة: المبیع إذا هلک فی ید البائع قبل أن یقبضه المشتری یکون من مال البائع ولاشی علی المشتری.

(شرح المجلّة ۲: ۲۲۳ ، المادة ۲۹۳، الفصل الخامس فی بیان المواد المترتبة علیٰ هلاک المبیع)

﴿۲﴾ وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالیٰ "وشرط لصحّته معرفة قدرمبیع وثمن ووصف ثمن.

(الدرّالمختار ۴: ۲۳، کتاب البیوع)

## د امانت چرس او افیون د بې ځایه کېدو پرمهال د تاوان حکم

**سوال:** د دین عالمان د چرس او افیونو د اخیستلو او پلورلو په اړه څه وایي؟ که چا د بل سره چرس یا افیون امانت ایښي وي او هغه ورك شي؛ نو تاوان به یې په چا وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: امجد ابو ظبی ... ۱۴۰۱ هـ / ۵ / ۱۳ /

**جواب:** د چرس او افیون تجارت مکروه دی، ﴿۱﴾ که د ساتونکي څخه ورك شي؛ نود نورو امانتونو په څېر دي حکم هم دی چې تاوان وربانديې نشته، ﴿۲﴾ خو که په لاس یې ورك کړه او یا یې بې ځایه کړه بیا به تاوان ورکوي ﴿۳﴾

وهو الموفق.

## د ماشومانو له لاسه د هلاك شوو شیانو د تاوان حکم

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې یو نابالغه هلك د بېلګې په توګه

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وصح بيع غير الخمر ممّامرّ ومفاده صحة بيع الحشيشة والأفيون .قلت وقد سئل ابن نجيم عن بيع الحشيشة هل يجوز؟فكتب لايجوز فيحمل على أن مراده بعدم الجواز عدم الحل "(درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى "ثم إن البيع وإن صح لكنه يكره......(قوله عدم الحل) لقيام المعصية بعينها وذكر ابن الشحنه أنه يؤدب بائعها.

(ردالمحتار ۵: ۳۲۳ كتاب الأشربة)

﴿۲﴾ وفي شرح المجلة: الوديعة أمانة في يد الوديع فإذاهلكت بلا تعد منه وبدون صنعه وتقصيره في الحفظ لايضمن.

(شرح المجلة لسليم رستم باز رحمه الله تعالى ۳۳۱، الفصل الثاني في أحكام الوديعة)

﴿۳﴾ وأيضاً فيه "إذا هلكت الوديعة أو نقصت قيمتها بتعدى المستودع أو بتقصيره لزمه الضمان".

(شرح المجلة ۳۳۲، الفصل الثاني في احكام الوديعة)

د چا مرغۍ غلا کړي بيا يې خرڅه کړي او روپۍ يې هم ورکي کړي، يا د چا کښت خراب کړي، يا بل کوم څناور مړ کړي، يا په هر حال چې وي، چاته مالي يا ځاني تاوان ورسوي، د دغه ماشوم مور او پلار هم ژوندي وي؛ نو د شرعي قانون له مخې دغه ماشوم تاواني کول روا دي او که نه؟ که وي نو مور او پلار به يې نيول کيږي او که خپله دغه ماشوم؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد علي حسن ابدال

**جواب:** کله چې يو نابالغ ماشوم د چا مال يا نور شيان هلاك کړي؛ نو تاوان به يې خپله په دغه ماشوم راځي، نه په مور او پلار باندې، كما في شرح التنوير: وان أتلفوا أى هؤلاءِ المحجورينَ سواءٌ عقلوا أو لا شيئاً مقوماً من مالٍ أو نفسٍ ضمنوا الخ (هامش رد المحتار ۵: ۹۵)﴿۱﴾. وفي الهندية ۵ : ۶۱ : ولا توجبُ هذه المعاني الثلاثةُ الحجر في الأفعال حتى أنَّ ابنَ يومٍ لوانقلبَ على قارورة انسان فكسرها وجب عليها الضمان في الحالِ﴿۲﴾ فافهم، وهوالموفق

## کښت ته د زيان رسوونکو مرغيو حلالول او بيا خوړل

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې زيد د ځمکې مالک دی، د عمر مرغانو دده ځمکې ته پوره زيان اړولی دی، د ځمکې مالک د مرغانو مالك ته څو - څو ځله خبر ورکړی چې مرغان دې درګرځوه؛ عمر به سره له وينا خپل مرغان نه ګرځول، اوس سوال دا دی چې د زيد لپاره په پټه ددې مرغانو حلالول او بيا خوړل روا دي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد سليم او انور عباس ۱۴۰۳ هـ/ شوال / ۲/

﴿۱﴾(الدر المختار على هامش ردّالمحتار ۵: ۱۰۱، كتاب الحجر)

﴿۲﴾(فتاوى هندية ۵: ۵۴، كتاب الحجر، الباب الأول)

**جواب:** که ربښتیا هم مرغان کښت ته داخل شوي وي او مالك یې په زیان هم خبر کړی وي بیا یې وژل روا او خوړل یې ناروا دي. (الهندیة : ۶: ۵۲ مسائل ارسال حمارٍ و کلبٍ)﴿۱﴾وهو الموفق .

## د حلال او حرام مال په ګډوډ کولو کښې د تاوان حکم

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې د پاکستان په بېنکونو کې کار کول څنګه دي؟ څکه چې زما په ګمان بېنکاري نظام سودي نظام دی او تنخا اخیستل یې څه حکم لري؟ او دغه تنخا که د نور پاك او حلال مال سره یو ځای شي بیا څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: خان محمد ضلع قلات ۱۴۰۲ هـ/ محرم/ ۱۹/

**جواب:** په بېنکونو کې کار کول د فقهي قاعدې(تعاون علی المعصیت)له امله حرام دی. قال الله تعالی: ﴿وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾ ﴿۲﴾که د بېنك کوم کاریګر دا مال او نور پاك مال سره شریك کړي؛ نو دی ددې تنخا

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: رجل أرسل حماره فدخل حماره زرع إنسان و أفسده إن أرسله و ساقه الی الزرع بان کان خلفه کان ضامنا ..... ولو کان لرجل کلب عقور یوذی من مرّبه فلأهل البلد أن یقتلوه وإن أتلف یجب علی صاحبه ضمان إن کان تقدم إلیه قبل الإتلاف والافلاشی علیه کالحائط المائل کذافی التبیین.

(فتاوی هندیة ٦: ۵۲ کتاب الجنایات، الباب الثانی عشرفی جنایة البهائم)

﴿۲﴾( سورة المائدة آیت ۲)

وفی المرقاة: عن جابرؓ قال لعن رسول اللهﷺ آکل الربوا وموکله وکاتبه وشاهدیه. قال النووی فیه تصریح بتحریم کتابة المترابین والشهادة علیهما وبتحریم الإعانة علی الباطل.

(مرقاة المفاتیح ۲: ۵۹،باب الربوٰ)

مالك شو، ضمان ورباندې لازم دی ﴿۱﴾ او دا چې مستحق يې نا معلوم دی؛ نو په غريبانانو دې وويشي. ﴿۲﴾وهو الموفق.

**د ناروغه مرغانو د حلالولو له امله په نورو مرغانو د ناروغۍ د تاوان حکم**

**سوال**: د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې د تبليغي ډلې والا د کلي يو جومات ته ورغلل؛ نو دوی د خپل ځان لپاره يوه چرګه حلاله کړه، په دې کې د جومات امام صاحب ورته راغی او وې ويل: چې تاسو ناروغه چرګه حلاله کړې چې له امله يې د کلي ټول چرګان په ناروغۍ اخته شوي او زما هم د درې سوه روپو چرګه مړه شوه، حال دا چې نه موږ ناروغه چرګه حلاله کړې وه او نه مو دا اراده وه چې د کلي چرګان دې ناروغه شي او د جومات امام صاحب وخت په وخت موږ ته اختارونه راکوي او وايي چې د کلي ټول چرګان ستاسو له لاسه په ناروغۍ اخته شوي د هغو ټولو تاوان راکړئ؛ ايا دده لپاره د تاوان غوښتل روا دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: فضل واحد د باجوړ اوسېدونکی ۱۴۰۱ هـ / شوال / ۲۰/

﴿۱﴾وفي الدرالمختار: ولو خلط السلطان المال المغصوب بماله ملكه لأن الخلط استهلاک إذا لم يمكن تميزه عند أبي حنيفةؒ. (الدر المختار)

وقال العلامة ابن عابدينؒ "(قوله لأن الخلط استهلاک) أي بمنزلة أن حق الغير يتعلق بالذمة لا بالأعيان ......لأنانقول انه لما خلطهاملكها وصار مثلها دينا في ذمته لا عينها. (ردالمحتار ۲:۲۷، كتاب الزكاة، قبيل مطلب في التصدق من المال الحرام)

﴿۲﴾قال العلامة ابن عابدينؒ: ويردونها على أربابها إن عرفوهم وإلا تصدقوابها لأن سبيل الكسب الخبيث التصدق إذا تعذر الرد على صاحبه.

(ردالمحتار ۵: ۲۷۳، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

**جواب:** د (لا عدوى) حديث پر اساس په ناروغيو کښې متعدي کېدل نشته، أى على وجه التأثير ﴿۱﴾ که دا خبره ومنل شي بيا هم په داسې غير اختياري کارونو کښې د تاوان لګولو حکم هيڅ امام نه دى کړى. ﴿۲﴾ بهر حال د جومات دا امام په سخته غلطۍ دى. وهو الموفق.

## د بل چا په موټر کښې د قاچاقي مال وړلو له امله د موټر په کېرولو د قاچاقبر نه تاوان اخيستل

**سوال:** د ديس عالمان په دې اړه څه وايي چې وزير محمد څه وخت وړاندې د چمن څخه سوارلي پورته کول او کويټې ته به يې راوړه، هغه د خپل زوړ عادت سره سم څلور نفره په پنځوس روپۍ کرايه کښېنول، چې په هغې کښې يو کس حاجي ګل محمد هم و، حاجي ګل محمد د موټروان په غلا خپل قاچاقي مالونه په موټر کښې ايښي وو. کله چې د موټر د تلاشۍ خاى راورسيد؛ نو د وزير محمد موټر او د قاچاق ټول مال ونيول شو، د وخت په تيرېدو سره وزير محمد

﴿۱﴾ عن ابى هريرة رضى الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: لا عدوى ولا طيرة ولاهامة ولاصفر. (مشكوة المصابيح)

وفى المرقاة: (لاعدوى) ...... إنما أراد بذلك نفى ما كان يعتقده أصحاب الطبيعة فإنهم كانوا يرون العلل المعدية مؤثرة لامحالة فأعلمهم بقوله هذا أن ليس الأمر على مايتوهمون بل هو متعلق بالمشيئة إن شاء كان وإن لم يشاء لم يكن.

(مرقاة المفاتيح ۹:۳ باب الفال والطيرة)

﴿۲﴾ فى درر الحكام: الجواز الشرعى ينافى الضمان...... ويفهم منها أنه لو فعل شخص ماأجيز له فعله شرعًا ونشأ عن فعله هذا ضرر ما فلا يكون ضامنًاللخسارة الناشئة عن ذلك...... المتسبب لايضمن إلا بالتعمد...... كذلك لو احرق شخص أعشابًا جافة فى أرضه فسرت النار إلى شيئ لأحد ما فأحرقته فلا ضمان عليه إلا إذا كان متعديًا بأن كان إحراق الأعشاب فى يوم شديد الريح. (درر الحكام ۱: ۸۱،۸۳، المادة: ۹۱،۹۳)

پنځوس زره جرمانه داخله کړه او خپل موټر یې د حکومت له کوره راوویست، ایا وزیر دا پنځوس زره روپۍ د حاجي ګل محمد څخه اخیستلای شي او که نه؟ ددې له امله چې وزیر محمد ته دا زیان د حاجي ګل محمد د قاچاقي مال له امله اوښتی ؤ. بینوا توجروا

المستفتي: مولوي مطیع الله حقاني چمن بلوچستان ۱۴۰۳ هـ ربیع الثاني /۳۰/

**جواب:** د المظلوم لا یظلمُ ﴿۱﴾ قاعدې له مخې موټروان د حاجي ګل محمد نه تاوان نه شي اخیستلای؛ خو که موټروان منع کړی وي او ده بیا هم په پټه ایښی وي بیا به ددې خیانت له امله د مستاجر تاوان ورکول ضروري وي، کما فی شرح المجلة ۳۲۲: لا یلزم الضمان اذا تلفَ المأجورُ فی ید المستأجر ما لم یکن بتقصیره أو تعدیه أو مخالفته لماذونیته﴿۲﴾ وهو الموفق.

## که څناورو د نورو کښت خراب کړ؛ نو د مالک څخه یې د تاوان اخیستلو حکم

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وايي چې په قرآنکریم کې د داؤد علیه السلام په دور کې یو سړي شکایت وکړ چې د یو سړي ګډو دده کښت خراب کړی وو چې په هغې باندې داؤد علیه السلام ګډې د کښت څښتن ته ورکړې، سلیمان علیه السلام دا فیصله خوښه نه شوه، بیا ده فیصله وکړه چې کښت والا به ګډې ساتي او شیدې به ترې څښي او ګډو والا به دا کښت کري تر دې چې د ګټې شي بیا به کښت والا ګډې خپل مالك ته واپس ورکوي

(۱) ایا نن سبا موږ په دې باندې عمل کولای شو؟

---

﴿۱﴾ وفی مجموعة قواعد الفقه: المظلوم له أن یدفع الظلم عن نفسه بما قدر علیه لکن لیس له أن یظلم غیره.

(مجموعة قواعد الفقه: ۱۲۴، قاعده ۳۳۲)

﴿۲﴾ (شرح المجلة ۲: ۷۰۳: المادة: ۶۰۱: الفصل الثانی فی ضمان المستأجر

(۲) که داسې پېښه وشي؛ نو د شریعت په رڼا کې څه کول پکار دي؟

(۳) د کښت بغیر که نورو ونو ته هم زیان ورسېږي. بیا به د ګډو مالك ته کومه سزا ورکول کیږي؟

(۴) همدا راز که د چا مرغان د چا کښت ته زیان ورسوي؛ نو ایا بزګر مرغان په خپله ولکه کې راوستلای شي؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد یعقوب پنځه ډېري ، مندوري براسته خیر اباد کنډ

۱۹۷۲ م/ ۱۲/ ۹/

**جواب**: که دا حیوانات بې مالك د ونو او کښت سره په خوا کې پرې ایښې وي؛ نو تاوان به ورکوي، که دا حیوانات خپله راغلي وي یا یې مالك لري پرې ایښي وي د مالك په بې خبری کې د ونو او کښت خواته راغلي وي بیا بې تاوان نشته. فلیراجع الی شرح المجلة : ۵۲۵ مخ ،﴿۱﴾و أما ما ذکره المستفتی فمن الاسرائیلیات التی لم ینقلها الشارع بهذا التفصیل مع أنه ورد علیها الانکار بحدیث : العجماء جرحها

﴿۱﴾قال العلامة سلیم رستم باز رحمه الله تعالی :الضرر الذی أحدثه الحیوان من تلقاء نفسه لایضمنه صاحبه ......لأن جنایة العجماء جبار ولو انفلت ثوره وأکل حنطة رجل فلا ضمان علیه......ولکن لو استهلک حیوان مال واحد ورآه صاحبه ولم یمنعه فأنه یضمن وکذا لو قاد أحد دابته قریبًا من الزرع بحیث ان شاءت تناولت الزرع ضمن.

(شرح المجلة ۵۲۵، المادة ۹۲۹ ،الفصل الرابع فی جنایة الحیوان)

وقال العلامة التهانوی رحمه الله تعالی :لکه څرنګه پېښه چې دلته په وزو کې راغلله او دغه راز واقع هم شي: نو د شریعت امامان به دیکښې سره اختلاف لري، امام ابو حنیفة رحمه الله وایي: که د وزو سره کوم چوپان یا لارښود نه وي: نو په دې صورت کې هیڅ کوم تاوان پرې نه لازمیږي............ پاتې حاشیه پر بل مخ

جارٌ فافهمْ .﴿۱﴾وهو الموفق .

---

(بقيه حاشيه) رواه الشيخان أن العجماء په سنن کې چې کوم روايت راغلی ، قضی رسول الله ﷺ على أهل الأموال بحفظها بالنهار و على أهل المواشی بحفظها بالليل ددې د سند په سروکې علماء کرامو کلام کړی دی، ددې له امله د صحيحينو د حديث سره مقابل نه شي واقع کېدای..... که چوپان اولاړنبود دواړه ورسره وي بيا به تاوان پرې لازم وي .

(بيان القرآن ۲: ۴۹۸،پاره ۱۷)

﴿۱﴾وفی مشکوة المصابيح :عن ابی هريرة رضی الله تعالی عنه:قال قال رسول الله ﷺ: العجماء جرحها جبار والمعدن جبار والبئر جبار، متفق عليه .

(مشکوة المصابيح ۳۰۵،باب ما لا يضمن من الجنايات ،الفصل الأول)

قال النبی

صلی اللّٰه علیه وسلّم

جار الدار أحق بالدار من غیره.

(مسند أحمد)

# کتاب الشفعة

قال النبیُّ صلی الله علیه وسلم جار الدار أحق بالدارِ منْ غیره. (مسند أحمد)

## په اسلام کې د شفعې حق دار او طریقه یې

**سوال**: د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې په اسلام کې د شفعې نوعیت څه دی؟ددې تشریح راته وکړئ: ما د کبنت لپاره څه ځمکه واخیسته. تقریباً د یو کال تېرېدو وروسته مې د عمر په لاس خرڅه کړه. اوس چې د انګرېزانو له وخته د شفعې په اړه کوم قانون چلیږي په هغې کې تر یوه کاله پورې شفیع ته د شفعې حق شته. همداسې وه چې په زید باندې دوه کسانو شفعه وکړه، په هغې کې د یوه کس وینا ده چې په زید چا ځمکه خرڅه کړې هغه خو زما د تره لور ده، دویم سړي وویل: چې زه خو ددې کوڅې شریک یم، زما ځمکه هم د خرڅې شوې ځمکې سره لګېدلې ده. اوس اصلي مسئله د عمر ده چې پیسې یې ورکړې دي، کاغذونه یې هم ټول پوره دي او قبضه یې هم په لاس کې ده. د شریعت له مخې راته دا مسئله حل کړئ: بینوا توجروا

المستفتي فرزند علي، سرګودها ۱۴۰۳ هـ /شعبان/ ۱۳/

**جواب**: که په همدې (شریکې) ځمکه کې د شفعه کوونکو برخه وي. یا د دوی د ځمکې او مشفوعه ځمکې لاره یا د اوبو ویاله یوه وي. بیا که دوی طلب مواثبه او طلب اشهاد هم کړی وي او د حکومت په کور کې یې د یوې میاشتې پوره کېدو (د اخیستلو له وخته) پورې ځند نه وي کړی؛ نو دا خلك شفعه کولای شي، که نه نو د دوی شفعه د خپلولۍ او په کوڅه کې د شراکت له امله نه ثابتیږي، بلکې هیڅ اعتبار نه لري. (شامي باب الشفعة) ﴿۱﴾

**یادونه**: د عالمانو نه پرته عام خلك په دې شرائطو نه پوهیږي، غالباً د دوی د شفعې حق باطل دی. وهو الموفق.

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: (للخليط) متعلق بتجب (في نفس المبيع) لم ان لم يكن أو سلم (له في حق المبيع).... (كالشرب والطريق خاصين) .....(ثم لجار ملاصق) (الدر المختار) ...... پاتې حاشیه پر بل مخ

هندية : باب الشفعة(﴿۱﴾

## د احمدي ډلې د شفعې حکم

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې احمدي ډلې ته د شفعې حق حاصل دی او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: پير قطب شاه پېښور ۱۹۷۹ م / اګست / ۱۵/

**جواب:** که دې مرزائي (احمدي) خان په بې دينه لړکيو (غير مسلم اقليت) کې شمار کړی وي؛ نو د نورو ذمياڼو په څېر دا احمدي به هم د شفعې حق لري،

---

(بقيه حاشيه) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى : (قوله وتستقر بالإشهاد) أى بالطلب الثانى......ولا بد من طلب المواثبة لأنها حق ضعيف يبطل بالإعراض.

(ردالمحتار ٥: ١٥٤، ١٥٥، كتاب الشفعة)

وقال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: وقيل يفتى بقول محمّد إن أخره شهرًا بلا عذر بطلت كذا فى الملتقى. (الدر المختار)

وقال ابن عابدين رحمه الله تعالى :قائله شيخ الإسلام وقاضى خان فى فتاواه وشرحه على الجامع.( الدر المختار مع ردالمحتار ٥: ١٥٩، باب طلب الشفعة)

﴿۱﴾ وفى الهندية : وعن محمّد وزفر رحمهما الله تعالى وهورواية عن أبى يوسف رحمه الله تعالى إن أشهد وترك المخاصمة شهرًا من غير عذر تبطل شفعته والفتوى على قولهما كذا فى محيط السرخسى. (فتاوى هندية ٥: ١٧٣، الباب الثالث فى طلب الشفعة)

وفيها: وأما شرطها فأنواع ......ومنها ملك الشفيع وقت الشراء فى الدار التى يأخذ بها الشفعة فلا شفعة له بدار يسكنها بالإجارة أو الإعارة.

(فتاوى هندية ٥: ١٦١، كتاب الشفعة، الباب الثالث فى تفسيرها)

برابره خبره ده چې اخیستونکی یې مسلمان وي او که کافر ( الهندیة )﴿۱﴾
وهو الموفق .

## طلبات ثلاثه نه کول یا د شفعې اراده پرېښودل یا په پیسو د اخیستلو نه په انکار سره د شفعې حق باطلېدل

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید یوه توټه ځمکه واخیستله، عمر ورباندې شفعه وکړه. زید عمر ته وویل: ما چې خرڅوونکي ته څومره روپۍ ورکړي دي هغومره ماته راکړه دا ځمکه یې ستا! عمر ورته وایي: چې تا دا ځمکه ګرانه اخیستې ده، ما دا ځمکه د شفعې په حق کې په حکومتي سطحه ارزانه اخیستل. په دیکښې زید ځمکه اباده کړه او ښه کور یې پرې جوړ کړ، څو کاله وروسته ددې ځمکې سره نژدې د بکر ځمکه وه هغه هم زید واخیستل، اوس عمر نه مخکې ځمکه مني او نه هم وروستنۍ، د شریعت له مخې عمر د شفعې حق لري او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: حاجي ګل حیدر لبوړي مانسهره ۱۴۰۳ هـ / شعبان / ۲۴/

**جواب:** که دې سړي طلب مواثبه ، طلب اشهاد نه وي کړی، یا یې په دعوه کې د حاکم په وړاندې تر یوې میاشتې زیات وخت ځنډ کړی وي، یا یې په پیسو د اخیستو نه انکار کړی وي او د شفعې د کولو اراده یې پرېښوده؛ نو په دې ټولو صورتونو کې

---

**﴿۱﴾وفی الهندیة: ولو اشتری ذمی من ذمی دارًا بخمر أو خنزیر وشفیعها ذمی أو مسلم وجبت الشفعة عند أصحابنا رحمهم الله تعالیٰ.**

**(فتاوی هندیة ۵: ۹۳ ؛، الباب الخامس عشر فی شفعة أهل الکفر)**

**وقال العلامة الکاسانی رحمة الله علیه : وأما إسلام الشفیع فلیس بشرط لوجوب الشفعة فتجب لأهل الذمة فیما بینهم وللذمی علی المسلم لأن هذا حق التملک علی المشتری بمنزلة الشراء منه والکافر والمسلم فی ذلک سواء لأنه من الأمور الدنیویة.**

**(بدائع الصنائع ۴: ۱۱۴ فصل أما شرائط الشفعة )**

دده شفعه ساقطه او هيڅ اعتبار نه لري﴿۱﴾. او په ياد صورت کې عمر شفعه نه پربږدي؛ خو د پيسو ورکولو ته بيا تيار نه دی وهو الموفق.

## په بيع د خبرېدو سره يو کال وروسته شفع کول

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې رحمن ګل او ملتان د مقرب خان څخه د پرش جريبه ځمکه اخيستې وه. د ځمکې د خرڅولو پرمهال مقرب خان تول خپلوان راوغوښتل چې په هغې کې دده ورور فضل کريم هم ؤ او وې ويل: چې دا ځمکه زه په رحمن ګل او ملتان باندې خرڅوم، اوس يو کال وروسته فضل کريم؛ بل په اشاره په رحمن ګل او ملتان باندې د شفعې دعوه کړې، ايا په شريعت کې دده دې شفعې ته اعتبار شته او که نه؟

بينوا توجروا

المستفتي: لعل رحمن مته شبقدر ۱۴۰۱هـ / ۷ / ۶

**جواب:** دا شفعه ناروا ده هيڅ اعتبار نه لري، ځکه چې ښکاره خبره ده، دې شفعه کوونکي نه طلب مواثبه کړی، نه طلب اشهاد او نه هم طلب خصومت

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (وقوله وتستقر بالإشهاد) أي بالطلب الثاني وهو طلب التقرير والمعنى أنه إذا أشهد عليها لا تبطل بعد ذلك بالسكوت إلا أن يسقطها بلسانه ......ولا بد من طلب المواثبة لأنها حق ضعيف يبطل بالإعراض.

(رد المحتار ۵:۱۵۳، كتاب الشفعة)

وقال الحصكفي رحمه الله تعالى: وقيل يفتى بقول محمد إن أخره شهرًا بلا عذر بطلت كذا في الملتقى. قال الشامي رحمه الله تعالى: قائله شيخ الإسلام وقاضي خان في فتاواه وشرحه على الجامع ومشى عليه في الوقاية والنقاية والذخيرة والمغني ......وعزاه القهستاني إلى المشاهير كالمحيط والخلاصة والمضمرات.

(الدر المختار مع رد المحتار ۵:۱۵۹، باب طلب الشفعة)

او د بوې مياشتې نه يې زيات وخت ځنډ هم كړى دى. (رد المحتار ۵ ټوك كتاب الشفعة) وهوالموفق

## بزګر د شفعې حق نه لري

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې زه د يو كور سره د ۲۰ يا ۳۰ كالو راهيسې بزګر يم. د دوى ځمكې كرم او مالك مې يو شتمن سړى دى، هغه په دې ځمكه د خپل ځوند تولو شتمنې مصرف كړه. ځمكه يې ټوله هواره كړه، د ځمكې وړې ټوټې يې هم د غنمو ټوټو سره يو ځاى كړې، ددې لپاره چې ځان د نورو له منت نه وساتي. په ځمكه كې يې ويالې هم وويستې. ددې له امله د ځمكې قيمت دوه برابره څه چې څلور يا اته برابره شو، اوس دا ځمكه يوه بله ډله اخيستل غواړي. كه د ځمكې مالك دا ځمكه خرڅوي؛ نو ايا بزګر يې شفعه كولاى شي؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الستار محله رسالګړه اكوړه خټك ۱۹۸۷ م / ۲ / ۹/

---

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وتستقر بالإشهاد) أى بالطلب الثانى وهوطلب التقرير والمعنى أنه أشهد عليها لا تبطل بعد ذلك بالسكوت إلا أن يسقطها بلسانه.....ولا بد من طلب المواثبة لأنها حق ضعيف يبطل بالإعراض. (رد المحتار ۵: ۱۵۳، كتاب الشفعة)

وقال الحصكفى رحمه الله تعالى: وقيل يفتى بقول محمد ان أخره شهرًا بلا عذر بطلت كذا فى الملتقى.

وقال العلامة الشامى رحمه الله تعالى: قائله شيخ الإسلام وقاضى خان فى فتاواه وشرحه على الجامع ومشى عليه فى الوقاية والنقاية والذخيرة والمغنى ......وعزاه القهستانى إلى المشاهير كالمحيط والخلاصة والمضمرات.

(الدرالمختار مع رد المحتار ۵: ۱۵۹، باب طلب الشفعة)

**جواب**: د قرآن او حدیث په رڼا کې بزګر ته د شفعې حق نه دی حاصل. که ده ته د شفعې حق ورکول شي؛ نو (خدای مه کړه) دا به په دین کې له ځانه یوه خبره زیاتول وي، ځکه چې د شفعې درې سببه دي، شرکة فی ذات البیع، فی المرافق، فی الجوار، ﴿۱﴾ که بزګر د پرمختګ نورې الې په کار راولي؛ نو خپل ځان او مالك ته به ډېره ګټه ورسوي، ددې مطلب هیڅکله دا نه دی چې دی د شفعې حق لري، که نه نو د یو کورجوړونکی (مستري) به هم د شفعې حق دار شي. وهوالموفق.

## د شریکي ځمکې خرڅول او په هغې باندې د شفعې حکم

**سوال**: د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې مونږ محمد خان او جعفر خان دواړه وروڼه یو، مونږ دارو ته مور- پلار په خپل ژوند کې تقریباً شپاړس کناله ځمکه راکړه، (اوس هم زمونږ پلار ژوندی دی) نورو وروڼو ته یې هم خپلې ځمکې ورکړې دي؛ خو ما او جعفر خان ته یې شریکې راکړه، مونږ هم خپله برخه ځمکه همداسې ناوېشلې پرېښوده. جعفر خان په کراچۍ کې اوسېدو او زه محمد خان په خپل وطن کې اوسېدم. جعفر خان ددې شریکې ځمکې نه چې بېلا بېلو ځایونو کې پرته وه دوه کناله یې په سید اسد باندې

﴿۱﴾ قال العلامة المرغیناني رحمه الله تعالی: الشفعة واجبة للخلیط فی نفس المبیع ثم للخلیط فی حق المبیع کالشرب والطریق ثم للجار ......أما الثبوت فلقوله علیه الصلوٰة والسّلام: الشفعة لشریک مالم یقاسم ولقوله علیه الصلوٰة والسّلام: جار الدار أحق بالدار والأرض ینتظر له وإن کان غائبًا إذا کان طریقهما واحدا، ولقوله علیه الصلوٰة والسلام: الجار أحق بسقبه قیل یا رسول الله ما سقبه؟ قال شفعته. (الهدایة ۴: ۳۸۹، کتاب الشفعة)

وقال العلامة الکاساني رحمه الله تعالی: فسبب وجوب الشفعة أحد الأشیاء الثلاثة: الشرکة فی ملک المبیع، والخلطة وهی الشرکة فی حقوق الملک، والجوار. (بدائع الصنائع ۴: ۹۷، کتاب الشفعة)

وقال الشیخ وهبة الزحیلی رحمه الله: اتفق الفقهاء علی شرط کون الشفیع مالکًا ما یشفع به قبل البیع. (الفقه الإسلامی وأدلته ۶: ۴۹۱۸، المبحث الخامس، شروط الشفعة)

ځرڅه کړه، څه وخت چې زه په خپل وطن کې خبر شوم؛ نو د شاهدانو په وړاندې مې په ځمکه د شفعې دعوه وکړه، په داسې حال کې چې زما پلار او وروڼه هم د جعفر په دې کار باندې خوښ نه دي. اوس دا ځرڅه شوې ځمکه د شفعې د دعوې سره زما حق رسيږي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد خان ۱۹۷۵ م / ۳ / ۱۰/

**جواب**: واضحه دې وي بيع المجهول نه صحيح کيږي او بيع المشاع (هغه څه چې نه وي وېشل شوي) صحيح ده، كما فى الهندية ۳: ۳ منها (أى من شرائط النفاذ) أى يكونَ المبيع معلوماً والثمنُ معلوماً علماً يمنعُ من المنازعةِ فبيع المجهولِ جهالةً تفضى اليها غير صحيح«۱» که صحيح هم شي، دا شريك چې محمد خان نوميږي شفعه هم کولای شي. لأنَّ الأرضَ التى حصلتْ مملوكةً لهما جازَ لهما فيها التصرف المختص بالملك من البيعِ والهبةِ والوصيةِ وغيرها. والتقسيم المروج الآتى فى المستقبل فى الحقيقةِ فلا ينا فى الملك و كذا لا ينافى الشركة لأنَّ الرائجَ عندهمْ ابقاءُ الشركةِ المخصوصةِ، فافهم وهوالموفق.

## په تبادله کې ورکړل شوې ځمکې د شفعې حکم

**سوال**: د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې د بادشاه په نوم سړي د مشابت خان نه يو څه ځمکه د خپلې ځمکې په تبادله کې واخيسته، ايا دا تبادله روا ده او که نه؟ د جواز په صورت کې نژدې همسايه د شفعې دعوه کولای شي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد غني ډاکخانه سنګولی ضلع دير ۱۹۸۸ م / ۲ / ۱۳/

**جواب**: دا د بيع معامله ده، په دې کې هم شفع جاري کيږي، اګر که قانوني شفعه

«۱» (فتاوی هندية ۳:۳، كتاب البيوع، الباب الأول)

پکښې نه جاري کيږي. كما في شرح التنوير على هامش رد المحتار ۵: ۲۰۱ : ففي بيع عقارٍ بعقارٍ يأخذُ الشفيعُ كلاً من العقارين بقيمة الآخرِ﴿۱﴾وهوالموفق.

## په شفعه کوونکو کې د يو سره د مصلحت له امله د بل حق نه ساقطيږي

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې درې ورونه په يوه ځمکه شفعه کوونکي دي، په هغوی کې دوه ورونو د اخيستونکي سره سوله وکړه، دريم ورور يې د سولې نه انکار کوي؛ نو اوس چې کوم دريم ورور سوله نه ده کړې ايا د هغه د شفعې حق ساقط شو او که شته؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**جواب:** د هغه ورور حق به يې په خپل ځای پاتې دی. (لعدم المسقط) ﴿۲﴾ وهوالموفق.

## نسبي خپلولي د شفعې له حق داری څخه نه ده

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې ايا د نسب له امله د شفعې حق ثابتيږي او که نه؟ په داسې حال کې چې د هغه خپل حقيقي ورور وي او بل ورور يې خپله ځمکه خرڅوي؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد شهزاد ډاکخانه چکدره تحصيل اډنزائی ضلع دير ۱۴۰۱ هـ / ربيع الأول / ۱۰/

﴿۱﴾( الدرالمختار على هامش رد المحتار۵: ۱۶۲، كتاب الشفعة، باب طلب الشفعة)

وقال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالى : وإن باع عقاراً بعقارٍ أخذ الشفيع كلّ واحد منهما بقيمة الآخر لأنه بدل له وهو من ذوات القيم فيأخذ بقيمته.

(الهداية ۴: ۳۹۹، كتاب الشفعة، فصل فيما يؤخذ به المشفوع)

﴿۲﴾في الهندية: الشفعاء اذا اجتمعوا فحق كل واحد قبل الاستيفاء والقضاء ثابت في جميع الدار حتى انه إذا كان للدار شفيعان سلم أحدهما الشفعة قبل الأخذ وقبل القضاء كان للآخر أن يأخذ الكل. (فتاوىٰ هندية ۵: ۱۷۷، الباب السادس في الدار إذا بيعت ولها شفعاء)

**جواب:** د شراکت او همسایه توب نه پرته پوازې د نسب له امله شفعه نه ثابتیږي او نه هم دا د شفعې د ثابتېدو له اسبابو څخه ده. ﴿۱﴾ وهوالموفق.

## د خرڅې شوې ځمکې اطراف که هبه شي؛ نو د جوار شفعه پرې باطلیږي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې یو سړي په بل باندې د ځمکې د خرڅولو پرمهال د خرڅې ځمکې سره خوا کې څلور واړه طرفونو ته څلور پنځه قدمه ځمکه همداسې هبه کړه: نو ایا اوس همسایه د شفعې کولو حق لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي فضل مولی صاحب دیر ۱۳۹۷ هـ / ذی الحجه/ ۱٤/

**جواب:** که خرڅوونکی نوره ځمکه خرڅه کړي او یوازې درې څلور ګزه ځمکه همداسې پرېږدي یا یې هبه کړي؛ نو د شفعه کوونکي د شفعې حق یې ساقط کړ، کما فی الهدایة ٤: ۲۰۸ فی باب ما تبطل به الشفعة : و اذا باع داراً الا مقدار ذراعٍ منها فی طول الحد الذی یلی الشفیع فلا شفعةَ له لانقطاع الجوار. ﴿۲﴾ انتهی

---

﴿۱﴾ قال العلامة الکاسانی رحمه الله تعالی: فسبب وجوب الشفعة أحد الأشیاء الثلاثة: الشرکة فی ملک المبیع والخلطة وهی الشرکة فی حقوق الملک والجوار.

(بدائع الصنائع ٤: ۹۷ کتاب الشفعة)

﴿۲﴾ (الهدایة ٣: ٣٠٨، باب ما تبطل به حق الشفعة)

وفیها أیضًا: وکذا إذا وهب منه هذا المقدار وسلّمه إلیه.

(الهدایة ٣: ٣٠٨، باب ما تبطل به الشفعة)

وفی شرح المجلة: ومنها أن یبتاع العقار إلّا ذراعًا فی جانب حد الشفیع فلا شفعة لعدم الاتصال، وکذا لو وهب هذا القدر للمشتری.

(شرح المجلة ٣: ٦٤١، أقسام الحیل لإبطال الشفعة)

خو دا خبره ياده ساتئ چې دا دول حيله امام ابو يوسف رحمه الله بغير له كراهته روا بولي او امام محمد رحمه الله يې مكروه گڼي. ﴿۱﴾ والله أعلمُ

## د شفيع قيمت لګولو له امله هم د شفعې حق ختميږي

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې زيد يو ځاى ځمكه واخيستل، بكر ورباندې شفعه وكړه چې د ځمكې د اخيستلو حق زما دى، په دغه وخت يې شاهدان هم وړاندې كړل، زيد خپله هم اقرار كوي چې د بكر شفعه صحيح ده؛ خو زيد وايي چې بكر ته ما ويلي ځمكه ته واخله ماته د ځمكې قيمت (۱۵۰۰) راكړه؛ بكر ورته وايي چې زه تاته يوازې (۱۰۰۰) روپۍ دركوم، ځكه چې ستا د دستخط سره يوازې (۱۰۰۰) روپۍ ليكل شوي دي، په دې باندې زيد شاهدان وړاندې كړه چې ما پنځلس سوه روپۍ وركړي دي، بكر د ځمكې د اخيستلو نه انكار وكړ، اوس د زيد (مشتري) شاهدان معتبر دي او كه د بكر (شفيع)؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد اقبال شيخ اباد ، بمعرفت مولانا فضل مولى استاذ دار العلوم ۱۴۰۱ هـ / ۶ / ۲۹

**جواب:** په شرط ددې چې رښتيا او ثابت وي؛ نو ددې شفعه كوونكي د شفعې حق ساقط دى، لما في الهندية ۶: ۲۲۳: و حيلةٌ أخرى أنْ يقولَ المشترى للشفيع ان أحببت أوليكها بما اشتريت فعلت ذلك .... فاذا قال نعمْ تبطل شفعته و في العيونِ سواءٌ ذلك قبل الطلب أوْ بعده ﴿۲﴾ وهو الموفق.

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى : وأما الحيلة لدفع ثبوتها ابتداء فعند ابى يوسف لاتكره وعند محمد تكره.

(الدرالمختار على هامش رد المحتار ۵: ۱۷۳، كتاب الشفعة، باب ما يبطلها)

﴿۲﴾ (فتاوى هندية ۶: ۲۲۳، كتاب الحيل الفصل العشرون فى الشفعة)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى :او طلب منه أن يوليه عقد الشراء ......فتبطل فى الكل لدليل الإعراض. (الدرالمختار ۵: ۱۷۰، كتاب الشفعة، باب ما يبطلها)

## وچه ویاله د جوار له امله سبب د شفعې نه جوړیږي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې دلته د چترال په ضلع کې EAC صاحب وچه ویاله د شفعې نه کولو حق داره ګرځولې او د شفعه کوونکو په خلاف یې فیصله کړې، حال دا چې عالمانو په خپلو کتابونو کې په اتفاقي ډول په دې باندې فتوی ورکړې چې وچه ویاله هم سبب د شفعې لپاره دی او EAC صاحب په خپله کړې وینا کلك ولاړ دی، وایي چې دا ویاله نه لاره ده او نه هم په دې باندې اوبه بهیږي؛ خو دومره ده چې کله باران وشي؛ نو اوبه بیا په دغه ویاله باندې بهیږي، اوس تاسو مونږ ته ددې مسئلې شرعي حل روښانه کړئ! بینوا توجروا

المستفتي: غفران علي شاه شاهي بازار چترال ۱۴۰۲ هـ / شعبان / ۲۸/

**جواب:** دا وچه ویاله نه مبیعه ده او نه هم حق د مبیعې دی، د همدې له امله دا د جوار له امله د شفعې سبب نه جوړیږي، بخلاف الجوار بالطریق بالمبیع فلیراجع الی الهندیة ۵: ۱۷۰.﴿۱﴾وهو الموفق.

## د هبې په صورت کې شفعه نه ثابتیږي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې سرور دین او د شریف ښځې خدیجې

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة :لرجل مسیل ماء فی دار بیعت کانت له الشفعة بالجوار لا بالشرکة ولیس المسیل کالشرب کذا فی التتارخانیة.

(فتاوی هندیة ۵ :۱۷۰، الباب الثانی فی بیان مراتب الشفعة)

وفی شرح المجلة :والذی یقتضیه قول التتارخانیة :ولیس المسیل کالشرب " إن الشریک فی المسیل لا یعد شریکا فی الحقوق ، نعم إذا کان موضع المسیل ملکا لصاحب المسیل کانت له الشفعة بالجوار لا شفعة الخلیط فی الحقوق.

(شرح المجلة ۵ :۵۸۳ المادة ۱۰۱۶ ، قبیل الفصل الثانی فی بیان شرائط الشفعة)

د ۱۲۸۰ روپو په بدل کې فرضي انتقال وکړ. غواړي چې ما د شفعې څخه بې برخې کړي، ما د شهباز په خلاف د پنډۍ په عدالت کې د شفعې دوسیه (مقدمه) درج کړه، د مقدمې وروسته زما د شفعې د ساقطولو لپاره شریف د خپلې ښځې خدیجې او شهباز په خلاف د کیمل پور په عدالت کې مقدمه درج کړه او یو فرضي سند یې پیدا کړ (شهباز د سرور اخښی او د شریف خور د هغه ښځه ده) ما د پنډۍ په عدالت کې په خوله دا غوښتنه وکړه چې دوی زما د شفعې د ساقطولو لپاره فرضي شفعه کړې، دوی دواړه دې د عوامو په وړاندې جومات کې سوګند پورته کړي چې زموږ سند اصلي دی. په دې وینا سره شهباز په عدالت کې انکار وکړ، عدالت د شهباز څخه په کال ۱۹۶۹م/۴/۲۴/ کې د جواب وعده غوښتنه وکړه، په دې اړه شرعي مسئله روښانه کړئ؛ بینوا توجروا

المستفتي: فضل الهی ډاکخانه کران تحصیل پنډی ګهیب ۱۹۶۹م/۴/۲۷/

**جواب:** ستا له بیان نه معلومیږي چې د سرور دین مطلب د شهباز ښځې ته ګټه رسول دي، یعنې هبه او بخشش یې مقصد دی، بیع او شراء یې مقصد نه دی، ددې له امله ستا د شفعې حق نه ثابتیږي، ﴿۱﴾ بالفرض که دا د بیع صورت وي او تا طلب مواثبه او نور طلبات کړي وي، د هغې وروسته دې د شفعې دعوه هم کړې وي، ددې روپو د ورکولو د فرضي کېدو په اړه سرور دین او نورو د قسم کولو نه انکار کړی وي؛ نو په دې کې هیڅ ګناه نشته، بلکې په حاکم باندې ضروري دي چې د هغوی په خلاف فیصله وکړي، څکه چې هغوی انکار کړی دی ﴿۲﴾ و هو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة المرغیناني رحمه الله تعالی: ولا شفعة في هبة.
(الهدایة۴: ۳۰۴، کتاب الشفعة، باب ما تجب به فیه الشفعة وما لاتجب)

﴿۲﴾ وفي شرح المجلة: أحد اسباب الحکم أیضا الیمین أو النکول عنه فإذا أظهر المدعی العجز عن إثبات دعواه حلف المدعی علیه بطلبه ..... فإن حلف المدعی علیه قضی له، وإن نکل قضی علیه. (شرح المجلة ص ۱۰۹۳، المادة: ۱۷۴۲، الفصل الثالث في التحليف)

## د موهوبه ځمکې په بدل کې غیر مشروط روپۍ ورکول او په هغه ځمکه شفعه کول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې یو سړي څه ځمکه هبه کړه او موهوب له ورته په بدل کې څه روپۍ ورکړې. آیا اوس په دې ځمکه شفعه کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: نعمت الله ملایانو بانده ۱۳۹۶ هـ / ربیع الأول / ۱۳/

**جواب:** په شرط د دې چې رښتیا او ثابت وي، په دې ځمکه باندې شفعه نه کیږي، کما فی الهندیة ٥: ۱۷۸: ولوْ وهبَ عقاراً من غیرِ شرط العوضِ، ثمّ انّ الموهوبَ له عوضه من ذلك داراً فلا شفعةَ فی الدارینِ لا فی دار الهبةِ و لا فی دار العوضِ انتهی ﴿۱﴾ و هوالموفق.

## په سولې (صلح) د شفعې حق باطلیږي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید په عمر د ځمکې شفعه کړې ده، عمر د هغې ځمکې نیمه برخه زید ته د دې لپاره ورکړه چې زما په ځمکه نور شفعه ونه کړي او یو پریکړه لیك (صلح نامه) یې هم ولیکلو، د سولې وروسته یې په ټوله ځمکه قبضه واچول، په دې حالت کې زید له سره شفعه کولای شي او که په پریکړه لیك باندې عمل وکړي؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**جواب:** په دې سولې سره د شفعې حق باطلیږي او دغه سړي څخه دا بدل صلح هم اخیستلای شي. فی الدرالمختار: لا یجوزُ الاعتیاضُ عنِ الحقوق المجردة کحقِّ الشفعةِ، وفی رد المحتار ٤: ۱۸: وقال فی الأشباه فلوْصالحَ عنها بمالٍ بطلت و رجعَ ﴿۲﴾ و هوالموفق.

---

﴿۱﴾ فتاوی هندیة ٥: ۱۲۰، کتاب الشفعة، الباب الأول)

وفی شرح المجلة: لو کانت الهبة بدون شرط العوض ثم عوّضه بعدها فلا شفعة کما فی رد المحتار عن الخانیة. (شرح المجلة ۳: ٥۸۸، المادة: ۱۰۲۲)

﴿۲﴾ الدر المختار مع رد المحتار ۳: ۱٥، مطلب لا یجوز الاعتیاض عن الحقوق المجردة)

## په زیاتو اخیستونکو کښې د همسایه شفعه په یو شریک اخیستونکي نه کیږي

**سوال**: د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې موږ څلورو ورونو په کال ۱۹۶۶ کښې څه ځمکه واخیستل، په موږ باندې یو سړي شفعه وکړه، په دوه عدالتونو کښې موږ دوسیه وګټل، بیا هغه په لوړ دار القضاء (هائی کورټ) کښې خپله دوسیه وړاندې کړه او دعوه یې زموږ نه وګټل، پخوانیو اخیستونکو ته یې اوسنی یعنې د کال ۱۹۶۶ روپیو د ورکولو خبره کړې وه، ددې ځمکې اوسنی قیمت تقریباً دوه لکه څلوېښت زره روپۍ جوړیږي. د اخیستو قیمت یې دوه دېرش زره روپۍ جوړیږي، دوه ورونه لکه هر یو شبر افضل او سید افضل دواړه ددې ځمکې مالکان تېر شوي دي، اوس د شبر افضل او سید افضل برخه د شفعې څخه ویستل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي ماسټر سید نواب ضلع مردان

**جواب**: که د شبر افضل او سید افضل شرکت مثل شوی وي؛ نو د هغوی برخه به د شفعې څخه پاکه وي، (تنقیح الفتاوی ۲ ټوک) ﴿۱﴾ وهوالموفق.

## د شفیع په مسلم یا مبرهنې ابراء سره د شفعې حق ساقطیږي

**سوال**: د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید د عمر څخه ځمکه واخیستل، بکر ترډېر وخته پورې نه طلب مواثبه وکړ او نه هم طلب اشهاد. زیاتي لا دا چې کله زید د عمر نه ځمکه اخیستل؛ نو بکر ته یې دوه کسان ورولیږل چې که ته ځمکه اخلې؛ نو دا ځمکه زه پرېږدم، په جواب کې عمر وویل چې زه د شفعې حق له ځانه ساقطوم، د وخت په تېرېدو چې کله د ځمکې انتقال وخت راغی؛ نو اوس بکر زید ته وایي:

﴿۱﴾ وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وثبت لمن شرى اصالةً أو وكالةً او اشترى له بالوكالة وفائدته انه لو كان المشترى أو المؤكل بالشراء شريكًا وللدار شريك آخر فلهما الشفعة ولو هو شريكًا وللدار جار فلا شفعة للجار مع وجوده ...... لأن المشترى خليط فيقدم على الجار. (فتاوى تنقيح الحامدية ٢: ١٨١، كتاب الشفعة)

چې ځمکه راباندې خرڅه کړه! زید ورته وايي: چې تا خپله د شفعې د حق نه ابراء کړې ده، اوس ته د ځمکې د غوښتلو حق نه لرې؛ تاسو مهرباني وکړئ ددې مسئلې شرعي حل راته بيان کړئ! بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم... ۱۹۸۳ م/ اګست / ۲۹ /

**جواب:** ستاسو د ليکل شوي بيان سره سم زيد په بيع قطعي سره دا ځمکه د عمر نه واخيستل او بکر چې نږدې دېوال په دېوال (جار ملاصق) همسايه يې دی، هغه يې خبر کړ چې دا ځمکه زه اخلم او هغه خپل د شفعې حق ساقط کړ، اوس نه شي کولای چې بيا شفعه وکړي. كما في الهندية ۵ : ۱۸۷ : و ما يبطل به حق الشفعة بعد ثبوته نوعان﴿۱﴾الخ . دويمه دا چې که ابراء مسلم او مبرهنه نه وي، بکر چې د عمر همسايه دی، د بيع د خبرېدو سره سم يې طلب مواثبه د دوه شاهدانو په وړاندې ونه کړ، يا د مشتري يا د عقار (ځمکې په سر) طلب اشهاد ثابت نه وي؛ نو بيا هم د شفيع لپاره د شفعې حق نه ثابتيږي؛ خو که يا د دواړه طلبونه يې کړي وي بيا د شفعې کولو حق لري، كما في قاضي خان ۴: ۸۴۰ ﴿۲﴾والهندية ۵ : ۱۷۲ ﴿۳﴾دريمه دا چې که مشتري په خپله خوښه شفيع ته يا د ټولو د يو ځای کېدو پر مهال د شفعې د ټولو شرطونو سره قاضي

﴿۱﴾وفي الهندية: ما يبطل به حق الشفعة بعد ثبوته نوعان . اختياري و ضروري . والاختياري نوعان صريح......أما الأوّل فنحو أن يقول الشفيع أبطلت الشفعة أو أسقطتها أو ابرأتك عنها. (فتاوی هندية ۵: ۱۸۲، الباب التاسع فيما يبطل به حق الشفعة الخ)

﴿۲﴾وفي الخانية :أما طلب المواثبة فوقته فور علم الشفيع بالبيع إن أخبره بالبيع رجلان أو رجل وامرأتان أو رجل عدل فسكت هنيهة ولم يطلب الشفعة بطلت شفعته......وبعد ما طلب الشفيع طلب المواثبة فور علمه بالبيع يحتاج إلى طلب الإشهاد.

(فتاوی قاضي خان على هامش الهندية ۳: ۵۳۷،۵۳۹، كتاب الشفعة، فصل في الطلب)

﴿۳﴾ وفي الهندية :أما طلب المواثبة فهو انه علم الشفيع بالبيع ينبغي أن يطلب الشفعة على الفور ساعتئذ وإذا سكت ولم يطلب بطلت شفعته ............

(بقيه حاشيه اګلے صفحه پر)

د شفیع لپاره فیصله وکړي او مبیعه شفیع ته وسپاري؛ نو مشتري ته د مبیعې د نه ورکولو حق تر هغه پورې حاصل دی. تر کومه پورې چې شفیع مشتري ته روپۍ ورنه کړي، لما فی الهندیة ۴: ۳۹۳ واذا قضی له بالدار فللمشتری أنْ یحبسها حتی یستوفی الثمن﴿۱﴾ وهو الموفق .

## د شفعې حق چاته حاصل دی؟

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې د بېلګې په توګه زید د عمر څخه ځمکه واخیستل او عمر د زید تره دی، دا د زید پلرنۍ ځمکه وه، په دې وخت کې که کوم شفعه کوونکی په زید باندې شفعه کوي؛ نو ایا دا شفعه به صحیح وي او که نه؟ او شفعه کوونکي ته به د شفعې کولو حق تر څومره مودې پورې وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد قاسم شاه هزاري ... ۱۹۷۲م / ۶ / ۲۸ /

**ځواب:** شفعه هر هغه ځوك کولای شي چې د خرڅوونکي (بائع) شریك یا همسایه وي، د شفعې لپاره شریکي کاته ضروري نه ده، فی الهدایة ۴: ۳۸۹: الشفعةُ واجبةٌ للخلیطِ فی نفسِ المبیعِ ثُمّ للخلیطِ فی حقِّ المبیعِ کالشربِ والطریقِ ثُمّ للجارِ﴿۲﴾و بمعناهُ فی جمیعِ کتبِ الفروعِ﴿۳﴾خو ددې لپاره طلب شرط دی، فی الهدایة : وتستقرُّ بالاشهادِ و لا بدَّ منْ____

---

(بقیه حاشیه)وأما طلب الإشهاد فهو أن یشهد علی طلب المواثبة حتی یتأکد الوجوب بالطلب علی الفور. (فتاوی هندیة ۵: ۱۷۲، کتاب الشفعة ، الباب الثالث فی طلب الشفعة)

﴿۱﴾ (الهدایة۴: ۳۹۵، کتاب الشفعة ، باب طلب الشفعة والخصومة)

﴿۲﴾ ( الهدیة ۴: ۳۸۹، کتاب الشفعة)

﴿۳﴾ قال الحصکفی رحمه الله تعالی: (للخلیط ) متعلق بتجب (فی نفس المبیع) ثم إن لم یکن أو سلّم (له فی حق المبیع ) ...... ( کالشرب والطریق) ...... ( ثم لجار ملاصق).

الدر المختار ۵: ۱۵۴-۱۵۵، کتاب الشفعة)

طلب المواثبة ﴿۱﴾ و بمعناهٔ فی جمیع کتب الفروع ﴿۲﴾ دغه راز که په یوه میاشتنه کې یې دننه دعوه ونه کړه؛ نو بیا یې هم دعوه نه اوربدل کیږي. فی الدرالمختار: و قیل یفتی بقول محمد ان أخره شهراً بلا عذر بطلت ، کذا فی الملتقی ، قال العلامة الشامي: قالَ فی شرح المجمع و فی الجامع الخانی الفتوی الیوم علی قول محمد لتغیرِ أحوالِ الناسِ فی قصد الاضرار ٥: ۱۹۷ ﴿۳﴾ و فی تنقیح الفتاوی ۲: ۱۸٤ : والقائلُ بأنَّ الفتوی علی قولِ محمد هو شیخ الاسلام و قاضی خان فی فتاواه و فی شرحه علی الجامع الصغیرِ الخ ﴿٤﴾ که دا شفیع شفعه وکړي؛ نو هیڅ مانع نشته. فقط وهو الموفق.

## د مشتري لپاره د شفیع نه زیاتي روپۍ اخیستل؟

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې یو خرڅوونکی (بائع) په اخیستونکي (مشتري) باندې څه ځمکه په لس زره روپۍ باندې خرڅوي. اوس اخیستونکی دا شرط لګوي چې ستا د خپلوانو او شریکانو د شفعې کولو له ویرې په کاغذونو کې پنځلس زره روپۍ لیکم او بائع ورته وایي: که تا په کاغذونو کې پنځلس زره روپۍ ولیکلې؛ نو ځمکه نه درکوم. په دې صورت کې د مسئلې د حل څه لاره ده؟ او کله چې د مشتري په دې ځمکه د شفیع حق وتړل شو؛ نو ایا اوس مشتري د لس زره روپو په ځای د پنځلس زره روپو حق دار دی او که نه؟ که حق دار یې نه وي؛ نو که دا پنځلس زره روپۍ دی د حلالو په خیال وخوري؛ نو خوړل یې څنګه دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا عبد الرؤف مقام و ډاکخانه ویسه ضلع کیملپور

---

﴿۱﴾ (الهدایة ۲: ۳۹۲، قبیل باب طلب الشفعة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم رحمه الله تعالی: (وتستقر بالاشهاد) ...... فلا بدّ من الإشهاد بعد طلب المواثبة. (البحر الرائق ۸: ۱۲۸، قبیل باب طلب الشفعة)

﴿۳﴾ (الدر المختار مع رد المحتار ٥: ۱٥۹، باب طلب الشفعة)

﴿٤﴾ (فتاوی تنقیح الحامدیة ۲: ۱۸۳ ، کتاب الشفعة)

**جواب**: که شفیع د شفعې دعوه کړې وي؛ نو مشتري د زیاتو روپو غوښتنه نه شي کولای، لأنَّ الزائدَ على وجهِ الجدِّ لا يأخذه المشترى كما فى الهندية ٥ : ٢٢١ ، و اذا زاد المشترى البائع فى الثمنِ لم تلزمه الزيادةُ الشفيعَ حتى أنّه يأخذها بالثمنِ الأوّلِ، كذا فى الجوهرةِ النيرةِ﴿١﴾فكيفَ يجوزُ أخذ ما زاده هزلاً لأنه ليس بثمنٍ فقط . وهو الموفق

## د حکومت تعزیري اخیستل شوي ځمکې په اخیستلو شفعه کول

**سوال**: د دین عالمان په دې اره څه وایي چې په کال ۱۹۳۵ م کې د زید پلار او خالد په شریکه ځمکه واخیستل. د خالد د ګناه له امله نیمایي ځمکه حکومت ونیول، ددې وروسته دغه حکومتي ځمکه بکر واخیستل. زید لا وړوکی ماشوم ؤ چې پلار یې مړ شو، د ېر وخت وروسته زید ته د خپلې ځمکې درک وشو، ایا اوس زید د بکر څخه نیمه ځمکه (چې د زید پلار د خالد سره شریکې اخیستې وه) په شفعه باندې اخیستلای شي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: حاجي محمد د دارالعلوم حقانیه زده کوونکی ۱۹۷۲ م / ۷ / ۱۶ /

**جواب**: زموږ په مذهب کې تعزیر بالمال ناروا دی. وفى الدرالمختارِ : لا بأخذ مال فى المذهبِ (هامش رد المحتارِ ٣: ٢٢٦)﴿٢﴾ومعناه فى جميع كتب الفقهِ﴿٣﴾دا ځمکه بکر ته ورکول ضروري دي، په دې بیع باندې شفعه کول بې قاعدې کار دی. وهو الموفق

---

﴿١﴾(فتاوى هندية ٥: ١٩٩ ، الباب السابع عشر فى المتفرقات)

وقال العلامة الكاسانى رحمه الله تعالى: ولو زاد المشترى البائع فى الثمن فالزيادة لاتلزم الشفيع . (بدائع الصنائع ٤: ١٣١، فصل وأمّا بيان ما يتملك به ، كتاب الشفعة)

﴿٢﴾(الدر المختار ٣: ١٩٥، باب التعزير ، مطلب فى التعزير بأخذ المال)

﴿٣﴾ قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى : والحاصل انّ المذهب عدم التعزير بأخذ المال. (البحر الرائق ٥: ٤١، فصل فى التعزير)

## مطلق حیله او حیله د شفعې د ساقطولو لپاره ممنوع نه ده

**سوال**: مایقول العلماء الکرام فی المسئلة الآتیة : انَّ الشفیعَ انِ ادَّعی علی المشتری فما یقول العلماء الکرامُ فی حقِّ الحیلة لدفعِ الشفعةِ مع ارادة المشتری بهذه الحیلة سقوط حق الشفیع و تضیقه و اضراره و مع أنّه أی الشفیعُ من أهلِ الخیرِ والصلاحِ ، و أرادَ بالشفعةِ محض دفعِ المفسدةِ و المضارِّ الدائرة علیهِ علی صورةِ عدمِ تملک هذه البقعةِ فی الحالِ والمستقبل ؟

والشفعةُ ثابتة بالأحادیث الصحیحة وبوَّبَ لها المحدثونَ وَ أیضاً الکتب الفقهیةُ مملوءةٌ منها ، فیعلمُ من هذا أنَّ الشفعةَ منْ أهم المسائل و أهمُ الحقوقِ عند الشارعِ ، وأیضاً منشأ الشارعِ الذی حکمَ لأجلها بالشفعةِ للجارِ مخالفٌ لعمومِ الحیلِ فی کلِّ موضعٍ و حالٍ .

فلوْ جار هذه الحیلةُ فی کلِّ الأحوالِ و فی کلِّ موضعٍ لا أبالی بأنْ أقولَ فی حقِّ المحدثینَ و الفقهاء انهمْ أضاعوا أعمارهمْ و أوْقاتهم فی المسئلة التی تبطل بمحض الحیلةِ فی کلِّ موضعٍ و حالٍ .

أرحنی من هذا الاشکالِ بحیثُ لا یبقی لی الوسوسة و المقال ؟ أجرکم علی الله

**المستفتی**: مولانا تاج الرحیم تالاش دیر ۱۹۷۵م / منی / ۲۵ /

**جواب**: لیعلمَ أنَّ حیلةَ الشفعة لم یمنعْ منها القرآنُ و لا الأحادیثُ ، و اختلفَ فیها أصحابنا و مال أبویوسفَ الی عدم الکراهةِ اذا کانت لدفعِ ثبوتها ابتداء ویفتی بقوله کما فی رد المحتار ۵: ۱۶۳ (۱) والحیلُ کلُّها لیستْ مشروعة و لا غیر

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: والحیلة لعدم ثبوتها ابتداءً لا تکره عند أبی یوسف وعلی قوله الفتوی کما فی الدرر والغرر. (رد المحتار ۵: ۱۶۲، فروع کتاب الشفعة)

مشروعة على الاطلاقِ﴿۱﴾ كمالايخفى على مـــن راجـــعَ الى القـــرآنِ﴿۲﴾ والحديثِ﴿۳﴾وهو الموفق .

## د دويم مشتري حيله په لومړي مشتري د شفعې لپاره مانع نه ده

**سوال:** مايقول العلماء الكرام فى المسئلةِ الآتية :رجلٌ اشترى عقاراً بعقارٍ وليسَ له حقٌ متصلٌ بها من الجوانبِ الأربعةِ ، و لواحدٍ منَ الشفعاءِ دار متصل بهـــا أشـــد الاتصالِ فادعى صاحب هذا الدارِ المذكورِ على المشترى الشفعة موافقاً بالشرائط

﴿۱﴾ قال العلامة العينى رحمه الله تعالى: وقال الخصّاف فى أوّل كتاب الحيل لا بأس بالحيل فيما يحل ويجوز، وإنّما الحيلة شىء يتخلّص به الرجل من الحرام ويخرج به إلى الحلال، فما كان من هذا ونحوه فلا بأس به، وإنّما يكره من ذلك أن يحتال الرجل فى حق لرجل حتى يبطله أو يحتال فى باطل حتى يموهه أو يحتال فى شئ حتى يدخل فيه شبهة. (البناية على الهداية ۱۴: ۱۱۶، كتاب الشفعة ، قبيل مسائل متفرقة)

﴿۲﴾ قال العلامة الكاسانى رحمه الله تعالى :والأصل فى شرع الحيلة قوله سبحانه وتعالى فى قصة سيدنا أيوب عليه الصلوٰة والسّلام: خذ بيدك ضغثاً فاضرب به ولا تحنث. (بدائع الصنائع ۴: ۱۳۳، كتاب الشفعة ، قبيل كتاب الذبائح والصيود)

﴿۳﴾ وعن أبى هريرة رضى الله عنه أن رسول الله ﷺ استعمل رجلاً على خيبر فجاءه بتمر جنيب فقال أكلّ تمر خيبر هكذا؟ قال: لا والله يا رسول الله! إنا لنأخذ الصاع من هذا بالصاعين والصاعين بالثلاث، فقال لا تفعل بع الجمع بالدراهم ثم ابتع بالدراهم جنيباً، وقال فى الميزان مثل ذلك. (مشكوٰة المصابيح)

وفى المرقاة . قال النووى احتج أصحابنا بهذا الحديث أن الحيلة التى يعملها بعض الناس توسّلاً إلى مقصود الربا ليس بحرام ......هو ليس بحرام عند الشافعى هو مذهب الإمام الأقدم الأعظم وتبعه من تبعه من علماء الأمم. (مرقاة المفاتيح ۶: ۶۳، باب الربا)

الفقهيةِ ، لكنَّ المشترى بعد اقراره بالشراءِ أقرَّ بأنه باعَ هذا العقارَ المذكورَ على فلانٍ قبل دعوى الشفعةِ و أقرَّ لفلان الآخر (المشترى الثانى ) أنه اشترى وسطها و ترك الجوانب الأربعةَ من العقارِ الى المالك أى المشترى الأول لأجلِ دفعِ الشفعةِ فاشتبهَ هذه المسئلة على .

(۱) هل يجوزُ دعوى صاحب الدارِ (الشفيع) على المشترى الأوّلِ أمْ لا؟

(۲) هل ينقض تصرفاته من البيعِ و غيره أمْ لا ؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولانا تاج الرحيم تالاش دير ۱۹۷۵م / منی / ۲۵ /

**جواب**: فى الصورةِ المسئولة جازت الشفعة لوجود الجوارِ وهو السبب المعتبر عند الأحنافِ و تأيّدَ بالرواياتِ المرفوعةِ﴿۱﴾والأصلُ أنَّ تصرفات المشترى تنقض كما فى رد المحتارِ ٥: ١٥٣ :﴿۲﴾فيكون بيع المشترى وسط العقارِ باطلاً كالعدمِ و لا تغيره الحيلة ، نعم! لوْ باعَ مالك العقارِ وسط العقارِ على زيدٍ ثمّ باعَ الجوانبَ على بكرٍ لافادة الحيلةِ﴿۳﴾لكنها لمْ يتحققْ ههنا .وهو الموفق

﴿۱﴾ وقال العلامة المرغينانى رحمه الله تعالىٰ: الشفعة واجبة للخليط......ثم للجار أما الثبوت......فلقوله عليه الصلوٰة والسّلام الجار أحق بسقبه، قيل يا رسول الله ما سقبه؟ قال شفعته، ويروىٰ: الجار أحق بشفعته.(الهداية ۴: ۳۸۹، كتاب الشفعة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالىٰ: كما ينقض الشفيع جميع تصرفاته أى المشترى.(الدر المختار ٥: ١٦٣، باب طلب الشفعة)

﴿۳﴾ قال العلامة الكاسانى رحمه الله تعالىٰ:ومنها أن يبيع دارًا ذراعًا منها فى طول الحد الذى يلى دار الشفيع ، فالشفيع لا يستحق الشفعة.

(بدائع الصنائع ۴: ۱۳۲، كتاب الشفعة ، بيان الحيلة فى إسقاط الشفعة)

## په شفعه کې شریک فی نفس المبیع په شریک فی المرافق باندې وړاندې دی

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید او خالد دواړه د تره زامن دي. ځمکه یې شریکه ده، د کورني وېش وروسته د هر یوه برخه بېله او هر یو یې پرې ولکه کړې چې اوس مهال پرې کښت کوي، د خالد د حقیقي وروڼو زامنو چې د هغه سره شریک دي، په خپل منځ کې یې کورنی وېش هم نه دی کړی، خالد به کښت کولو او هغوی ته به یې وخت په وخت غله او پیداوار ورکولو، هغه هلکان اوس غواړي چې خپله ځمکه په زید باندې خرڅه کړي. ایا د شریعت له مخې خالد په زید باندې شفعه کولای شي؟ ایا د کاغذونو د شراکت له امله عدالت د شفعې حق باطلولای شي؟ حال دا چې کله زید د خالد د وربرونو نه دغه یاده ځمکه اخیستل؛ نو خالد ته یې وویل: چې د ځمکې کاغذونه راکړه! هغه راته وویل چې د اخیستلو لپاره یې زه ستا نه زیات حق دار یم، ته ماته ځمکه واپس راکړه او خپلې روپۍ واخله! د دې وروسته دوه ځله د سولې کوشش وشو؛ خو دواړو ونه منل. اوس تاسو مهرباني وکړئ د یادې مسئلې حل راته وښایئ! بینوا توجروا

المستفتي: قاضی خلیل احمد امیر جمیعت علماء اسلام بالاکوټ هزاره

۱۹۷۰م / ۵ / ۸ /

**جواب:** خالد د خپلو وربرونو سره د ځمکې وېش نه دی کړی، د همدې له امله خالد شریك فی نفس المبیع دی او د زید سره خو د ځمکې تقسیم وختې شوی دی. د همدې له امله هغه شریك فی المرافق ګڼل کیږي، په یاد صورت کې د خالد لپاره د شفعې حق ثابت څه چې بلکې ... لمك ثابت دی، په شرط د دې چې خالد طلب مواثبه او طلبِ اشهاد کړی وي. که نه نو شرعاً به دده لپاره د شفعې حق نه وي ثابت. يدلّ عليه ما في الهداية في باب الشفعة: وليس للشريك في الطريق والشرب والجار شفعة مع الخليط في الرقبة، و فيها: اعلمْ أنّ الطلبَ على ثلثة أوجه طلب المواثبة وهو أنْ يطلبها كما علمَ حتى لو بلغ الشفيع البيع ولم يطلبْ شفعته بطلت الشفعة لما ذكرنا ولقوله عليه السلام :

الشفعة لمن واثبها﴿١﴾و بمعناه فی ردالمحتار﴿٢﴾والبحر﴿٣﴾والنهر وجميع كتب الفقه فقط ، وهو الموفق

## مشفوعه ځمكه اخيستل

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې كومه ځمكه تر شخړې لاندې وي، شفيع ورباندې د شفعې دعوه هم كړې وي؛ نو ايا د داسې ځمكې خرڅول روا دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: سيد محمد زاده باچا علاقه ميدان تحصيل لال قلعه ، ضلع دير

١٩٨٥م / ٦ / ٢٨ /

**جواب:** مشتري دا مشفوعه ځمكه خرڅولای شي؛ خو كه دعوه شفيع وګټي؛ نو دا اخيستل او خرڅول بيا هيڅ اعتبار نه لري، (هندية٥: ٢٠١)﴿١﴾والله أعلمُ .

---

﴿١﴾ الهداية ٤: ٣٩٠-٣٩٢،كتاب الشفعة ، باب طلب الشفعة والخصومة فيها)

﴿٢﴾ قال الحصكفى رحمه الله تعالى : (للخليط ) متعلق بتجب ( فى نفس المبيع ) ثم إن لم يكن او سلّم (له فى حق المبيع ) كالشرب والطريق (ثم لجار ملاصق)

(الدر المختار ٥: ١٥٤،١٥٥ ، كتاب الشفعة)

﴿٣﴾قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: وتجب للخليط فى نفس المبيع ثم فى حق المبيع كالشرب والطريق إن كان خاصًا، ثم للجار الملاصق...... فإن علم الشفيع بالبيع أشهد فى مجلسه على الطلب وهو طلب المواثبة وسمى به لقوله عليه الصلوة والسلام: الشفعة لمن واثبها......والشرط أن يطلب إذا علم على الفور من غير تأخير ولا سكوت لأن سكوته بعد علمه يدل على رضاه بالمشترى فتبطل شفعته.....ثم على البائع لو فى يده أو على المشترى أو عند العقار وهذا طلب التقرير.

(البحرالرائق ٨: ١٢٦،١٢٨،١٢٩ ، كتاب الشفعة ، باب طلب الشفعة)

﴿٤﴾ وفى الهندية: ويجب أن يعلم أنّ تصرف المشترى:..... (بقيه حاشيه اگلے صفحه پر)

## ايا د ځمکې په منځنۍ برخې خرڅولو سره د شريک او همسايه د شفعې حق ساقطيږي؟

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې د دوه شريکانو څخه يو شريک د خپلې ځمکې منځنۍ برخه خرڅه کړه، شاو خوا ځمکه يې خپل ځان ته پرېښوده ددې لپاره چې څوك شفعه ونه کړي، اوس يې شريك وربانديې د شفعې دعوه کړې ده، ايا د يادې حيلې له امله د شريك او همسايه د شفعې حق ساقطيږي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي فضل مولى ميذان ۱۹۷۵ م / اپريل / ۲۸ /

**جواب:** د شراکت له امله چې کومه شفعه وشي، هغه ددې حيلې له امله نه ساقطيږي، لأنها تنفى الجوار دون الشركة والخلطة﴿۱﴾وهو الموفق.

---

(بقيه حاشيه) في الدار المشفوعة صحيح إلى أن يحكم بالشفعة للشفيع وله أن يبيع وان يؤجر ويطيب له الثمن والأجر وكذا له ان يهدم وما أشبه ذلك من التصرفات غير أن للشفيع أن ينقض كل التصرف إلا القبض.

(فتاوى هندية ۵: ۱۸۱، الباب الثامن في تصرف المشترى في الدار المشفوعة)

وقال العلامة الكاساني رحمه الله تعالى: وكذا له ان يبيع ويهب ويوصي وإذا فعل ينفذ إلا أن للشفيع أن ينقض ذلك بالأخذ بالشفعة لأن حقه سابق على حق المشترى فيمتنع اللزوم.

(بدائع الصنائع ۴: ۱۴۴، كتاب الشفعة، بيان ما يملك به المشفوع فيه)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ثم شرع في الحيل فقال (وان باع) رجل (عقارًا إلا ذراعا) مثلا في جانب حد (الشفيع فلا شفعة) لعدم الاتصال...... (وان ابتاعه بثمن) كثير (ثم دفع ثوبًا عنه فالشفعة بالثمن لا بالثوب) فلا يرغب فيه، وهذه حيلة تعم الشريك والجار (الدر المختار)......(بقيه حاشيه اگلے صفحه پر)

## د نزدې دکان په خرڅېدو د شفعې حکم

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زه په جهانګیر پوره کې دکان نمبر ۳۲۲۳ کې د کال ۱۹۶۹ څخه په میاشتینۍ کرایه ۲۰ روپۍ اوسېږم، د وخت په تېرېدو سره مې دا دکان د سید ایوب څخه په ۵۰۰۰ روپۍ واخیست. ددې وروسته په همدې بازار کې د محمد افضل په نوم سړي د شپې یوولس بجې شاوخوا د ایوب شاه کور ته لاړ او زما دا دکان ۳۲۲۳ یې په خپل نوم کړ او یو بل دکان هم چې زما د دکان سره نزدې ؤ ۳۲۲۴ نمبر یې دی د خپل ورور محمد اسلم په نوم کړه او دواړه یې واخیستل. ایا دا معامله جائز ده؟ څه وخت وروسته یې وجې محمد افضل په ما باندې عدالت کې مقدمه درج کړه او د دکان د خالي کولو لپاره یې خپل ټول زور په کار راوست؛ خو زه هم په خپله خبره ولاړ وم؛ نو ایا اوس زه خپل خواته دکان باندې شفعه کولای شم او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: غلام مرتضی جهانګیر پوره د پېښور ښار ۱۴۰۳ هـ / محرم الحرام / ۲۲ /

**جواب:** که چیرې تا دکان نمبر ۳۲۲۳ اخیستی وي او د هغې په خوا کې ۳۲۲۴ نمبر دکان خرڅېږي او تا په دې دویم اخیستونکي باندې شرعي شفعه کړې وي؛ نو ته دا دویم دکان هم اخیستلای شې او که شرعي شفعه دې نه وي کړې؛ نو ته هم حق لرې (هدایة ﴿۱﴾، شامي ﴿۲﴾، والله أعلمُ.)

(بقیه حاشیه)...... وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالى: (هذه حيلة تعم الشريك والجار) أي بخلاف ما قبلها فإنهما لا يحتال بهما في حق الشريك أما الأولى فظاهر. (ردالمحتار ۵: ۱۷۰، ۱۷۱، ۱۷۲، كتاب الشفعة، باب ما يبطلها)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: الشفعة واجبة للخليط...... ثم للجار...... لقوله عليه الصلوة والسلام الجار أحق بسقبه، قيل يا رسول الله! ما سقبه؟ قال شفعته ويروى: الجار أحق بشفعته. (الهداية ۴: ۳۸۹، كتاب الشفعة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى:...... (بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

## د مشتري په مړینې د زوی په شفیع باندې سره له خبرتیا په دعوه کې څنګ کول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې (۱) زید د بکر څخه ځمکه واخیستل، عمر ورباندې شفعه وکړه، طلب مواثبه او طلب اشهاد یې هم پوره کړی دی.
(۲) بکر او زید خپله دا اقرار کوي چې عمر ته د ځمکې د خرڅولو په اړه هیڅ درک نه ؤ او د هغه په خپل بیان باندې د تحصیل دار امضاء (دستخط) هم شته، اوس زید وفات شوی دی او د زید زوی په عمر باندې شاهد پېش کوي چې ته خبر وې، په شریعت کې دا شاهدي د اعتبار وړ ده او که نه؟
(۳) د زید زوی عمر ته د خبرتیا په اړه سوګند ورکولای شي او که نه؟

بینوا توجروا

المستفتي: حاجي اکرام الحق بټ خېله. ملاکنډ ایجنسي ۱۳۸۹ هـ / ۱ / ۱ / ۱

**جواب:** په یاد صورت کې د زید په زوی دعوه شوې ده او هغه د خپل ځان دفاع کوي، په داسې طریقې سره چې مدعي په طلب کې سره له خبرتیا څنډ کړی دی، ددې له امله د مدعي لپاره ضروري دي چې اقرار دې په دلیل سره ثابت کړي، کنه نو د سوګند نه خو خلاصی نشته، یعنې د زید زوی به سوګند کوي، في الدر المختار: هذا اذا لم ينكر المشترى طلب الشفيع الشفعة، فان أنكرَ فالقول له بيمينه ﴿۱﴾، فقط، وهو الموفق.

(بقیه حاشیه) (قوله لم لجار ملاصق) ولو متعددًا ..... وفى القهستانى الملاصق المتصل بالمبيع ولو حكما كما إذا بيع بيت من دار فانّ الملاصق له ولأقصى الدار فى الشفعة سواء.
(رد المحتار ۵:۱۵۵، کتاب الشفعة)

﴿۱﴾ (الدر المختار ۵:۱۲۰، باب طلب الشفعة)

وفى الهندية: وإذا اتفق البائع والمشترى أن الشفيع علم بالشراء منذ أيام ثم اختلفا بعد ذلک فى الطلب فقال الشفيع طلبت منذ علمت و قال المشترى ما طلبت فالقول قول المشترى وعلى الشفيع البينة.

(فتاوى هندية ۵:۱۷۳، الباب الثالث فى طلب الشفعة)

**حاکم د دوه مشتریانو څخه د یوه بیع فسخ کړه. ایا دا مشتري د شفعې حق لري؟**

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې د زید ځمکه د عمر سره ګرو (رهن) ده، ددې ځمکې دواړو خواته د خالد ځمکه ده. زید دا ځمکه په خالد باندې (چې شفیع هم دی) خرڅه کړه، وروسته یې په بکر باندې هم خرڅه کړه، کله چې د دوی دا دوسیه عدالت ته ورسېدل؛ نو هغوی د تقدیم د بیع ته اعتبار ورکړ او ګرو ته یې ترجیح ورکړه، د شرعي حکم په خلاف بکر یې د ځمکې مالك جوړ کړ، په همدې عدالت کې خالد په دې ځمکه باندې د شفعې دعوه وکړه چې زه ددې ځمکې شفیع یم، لومړی د اخیستو حق زما دی، طلب مواثبه او طلب اشهاد یې کړی دی، حاکم د شفعې دعوه ومنل او شرعي فتوی یې غوښتې ده، تاسو مهرباني وکړئ موږ ته شرعي مسئله راپه ګوته کړئ چې خالد (د ځمکې همسایه) زیات حق دار دی او که بکر (چې ځمکه ورسره ګرو ده)؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي محمد جان علاقه جندول، ضلع دیر

**جواب:** خالد د حاکم په وړاندې مکذب ختلی دی، دده لپاره شفعه صحیح ده، د بکر لپاره د شفعې هیڅ لاره نشته، قال فی شرح المجلة (۹۷۱ ص): یرتفع التناقض أیضاً بتکذیب الحاکم﴿۱﴾ وهکذا فی سائر کتب الفروع﴿۲﴾ وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ (شرح المجلة ۹۷۱، المادة: ۱۶۵۴)

﴿۲﴾ وفی الأنقروية: والتناقض یرتفع بتصدیق الخصم وبتکذیب الحاکم أیضًا.

(فتاویٰ انقروية ۲: ۱۶۳، الثانی عشر فی التناقض)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: ثمّ اعلم أن التناقض یرتفع بتصدیق الخصم وبتکذیب الحاکم أیضًا.

(رد المحتار ۴: ۲۱۸، مطلب فی مسائل التناقض)

## مشتري د شفيع څخه په وعده خلافۍ باندې قضاءً څه نيوکه (مؤاخذه) نشته

**سوال**: د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يو قوم دا اراده وکړه چې ځمکه به په شريکه خرڅوو، څو کاله وروسته يو سړی پيدا شو چې هغه خپله ځمکه يوازې خرڅه کړه، ايا نور قوم دده په ځمکه شفعه کولای شي او که نه؟ قاضي يا حاکم په ده باندې زور کولای شي چې ته دا ځمکه پرېږده او که نه؟ د وعدې په خلاف ورزی خو ديانةً گناه شته؛ خو پاتي نور قوم د مشتري څخه ځمکه واپس اخيستلای شي او که نه؟

يو سړي ځمکه واخيستل او شفيع ورباندې شفعه وکړه، شفيع مشتري ته وويل: اوس زما سره روپۍ نشته چې زه دا ځمکه واخلم، مشتري ورسره وعده وکړه چې څو کاله وروسته زه دا ځمکه خرڅوم؛ نو تا ته به يې په دغه روپو درکړم.

(١) ايا د مشتري لپاره په خپله وعده دربدل لازمي دي؟

(٢) شفيع د مشتري څخه د وعدې يا شفعې په سبب ځمکه بېرته اخيستلای شي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي محمد اکبر قريشي، وانه کيمپ تحصيل وانه، ضلع ډی آی خان

**ځواب**: (١، ٢) په دواړو صورتونو کې يوازې د مشتري له خوا وعده شته، ددې له امله ديانةً د خپلې وعدې څخه اوښتل ناجائز دي او قضاءً په دې باندې هيڅ نيوکه نشته، يعنې شفيع او نور کسان د استحقاق په ډول دا ځمکه نه شي اخيستلای، و في الأشباه والنظائر ٣٠٧ : كتاب الخطر و الاباحة : الخلف في الوعد حرامٌ ،وفي ص ٣٠٨ :و قال صاحب عقد الفريد في التقليد انما يوصف بما ذكر بأنّ خلفَ الوعدِ نفاقٌ اذا قارنَ الوَعد العزم على

الحلف﴿۱﴾الخ وفی شفعة الدرالمختار علی هامش رد المحتار ۵ ، ۱۹۱ : ویملك بالأخذ بالتراضی أوْ بقضاء القاضی﴿۲﴾انتهی وهوالموفق .

**شفیع د مشتري څخه مرابحةً د ځمکې په اخیستلو د شفعې د حق باطلولو حکم**

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید ځمکه واخیستل او عمر ورباندې شفعه وکړه، د څو ورځو په تېرېدو سره د شاهدانو په وړاندې عمر د ځمکې مرابحةً اخیستلو ته تیار شو، زید ورته په جواب کې وویل: چې سمه ده، زه به د خپلو ورونو سره مشوره وکړم، هغوی ورته د نه خرڅولو مشوره ورکړه، ځمکه د زید په ملکیت کې همداسې پاتې شوه، اوس عمر شفعه کوونکی شفعه کوي، ایا د عمر دا اقدام (چې دی یې د مشتري څخه په بیع مرابحې اخیستلو ته تیار شو) حق د شفعې باطلوي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد غنی مډل سکول حیاء سیری ملاکنډ ، ضلع دیر ۱۹۷۳م/ ۲/ ۲۲/

**جواب:** په شرط ددې چې رښتیا او ثابت وي ددې مشتري د شفعې حق باطل شوی دی، یدل علیه ما فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ۵ : ۲۱ : أوْ طلب منه أنْ یولیه عقد الشراء ، وقال العلامة الشامی : أی یبیعه تولیةً وهو البیع بمثل الثمن الأول ، ومثل التولیة والمرابحة﴿۳﴾. فقط

﴿۱﴾(الأشباه والنظائر مع شرحه للحموی ۳: ۲۳۶، کتاب الحظر والإباحة)

﴿۲﴾الدرالمختار ۵: ۱۵۴ کتاب الشفعة)

وفی شرح المجلة :یکون الشفیع مالکًا للمشفوع بتسلیمه بالتراضی مع المشتری أو بحکم القاضی.(شرح المجلّة ۳: ۶۲۲ المادة : ۱۰۳۶ . الفصل الرابع فی بیان حکم الشفعة)

﴿۳﴾(ردالمحتار ۵: ۱۷۰، کتاب الشفعة ، باب ما یبطلها)

وفی شرح المجلّة: وکذا طلبه من المشتری أن یولیه عقد الشراء أی یبیعه بمثل الثمن الأوّل ، ومثل التولیة المرابحة.(شرح المجله ۳: ۵۹۳، المادة: ۱۰۲۳)

## د یو طرف او دري واړه طرفونو همسایه په حق د شفعه کې سره برابر دي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې (۱) د یادې نقشې سره سم د




دریم نمبر پټي والا خپله ځمکه په پنځم نمبر پټي والا باندې خرڅه کړه.

(۲) د دویم نمبر پټي والا شفعه وکړه.

(۳) د دویم نمبر پټي والا په لومړي او شپږم پټي کې هم شریک دی.

(۴) د باراني اوبو ویاله د دویم نمبر پټي څخه دریم نمبر پټي ته ور روانه ده، د نقشې سره سم د شمال نه جنوب لور ته دی.

**سوالونه:**.......(۱) ایا د دویم نمبر پټي مالك د شپږم نمبر پټي والا په نسبت د همسایه ګیری یا نژدې والي له امله زیات حق دار دی او که نه؟

(۲) ایا د دویم نمبر پټي مالك د باراني اوبو یا مسیل الماء له امله د شپږم پټي والا په نسبت د شفعې زیات حق دار دی او که نه؟

ایا د دویم او دریم نمبر پټیانو والا د اسایش حقوق سره شریکي دي؟ که شریکي وي؛ نو ایا هغه د اسایش حقوق کبدلای شي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: سلطان محمد ګورنمنټ هائی سکول، صابر آباد، کرك ۱۹۸۶م/ مارچ / ۳/

**جواب:** د قواعدو په رڼا کې دا دواړه جار ملاصق (نژدې لګېدلي همسایه ګان) ګڼل کیږي، د دویم نمبر پټي مالك د شپږم نمبر پټي والا څخه زیات حق دار نه دی. (شرح المجلة) ﴿۱﴾ وهو الموفق.

﴿۱﴾ وفی شرح المجلة: وأما الجار الملاصق فهو من كان عقاره متصلًا بالمبيع ولو حكمًا كما إذا بيع بيت من دار فانّ الملاصق له ولأقصى الدار فی الشفعة سواء، وشمل ما إذا كان الجار متعددًا حتى أن الملاصق من جانب واحد......(بقیه حاشیه اګلے صفحه پر)

﴿۱﴾ وفی شرح المجلة: وأما الجار الملاصق فهو من كان عقاره متصلاً بالمبيع ولو حكمًا كما إذا بيع بيت من دار فانّ الملاصق له ولأقصي الدار في الشفعة سواء، وشمل ما إذا كان الجار متعددًا حتّٰى أن الملاصق من جانب واحد......(بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

## په بيع کې د موجوديدو پرمهال طلبات نه کولو سره حق د شفعې باطليږي

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې يوه ښځه يو زوی او يوه لور لري، خپله ځمکه يې په سعادت خان نومي سړي د دوه شاهدانو په وړاندې خرڅه کړه، په کوم وخت کې چې مشتري دوی درې واړو ته روپۍ ورکولې؛ نو انتقال بند شوی ؤ، دې سره دوی ورته وويل چې څنګه انتقال پيل شو؛ نو مور به ستا انتقال وکړو، اوس شپاړس کاله پوره شول چې ځمکه د مالك (مشتري) په لاس کې ده، په دې باندې لور او مور خوشحاله دي؛ خو زوی يې غواړي چې په دې ځمکه باندې شفعه وکړي، د شريعت له مخې ددې مسئلې حکم بيان کړئ! بينوا توجروا

المستفتي: سعادت خان پير پيائي ۱۹۷۵م/ فروري / ۱۲/

**جواب:** په شرط ددې چې رښتيا او ثابت وي؛ نو که په ژبه د ايجاب او قبول وينا پوره شوې وي، ځمکه د مالك (مشتري) ده، زوی ورباندې شفعه نه شي کولای، لعدمِ الطلباتِ في الظاهرِ والمسئلةُ منَ الواضحاتِ فلا حاجةَ الى نقلِ العباراتِ﴿۱﴾ وهو الموفق.

(بقیه حاشیه) ولو بشبر كالملاصق من ثلاثة جوانب فهما سواء.

(شرح المجلة ۳: ۵۷۳ المادة: ۱۰۰۸، الفصل الأوّل في بيان مراتب الشفعة)

﴿۱﴾ وفي شرح المجلة: يلزم في الشفعة ثلاث طلبات وهي طلب المواثبة وطلب التقرير والإشهاد وطلب الخصومة والتملك.

(شرح المجلة ۳: ۷۰۲ المادة: ۱۰۲۸، الفصل الثالث في بيان طلب الشفعة)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ويبطلها ترك طلب المواثبة أو ترك الإشهاد عليه أي على طلب المواثبة قادرًا عليها.

(فتاوى تنقيح الحامدية ۲: ۱۸۳، كتاب الشفعة)

## شفیع د مشتري څخه د قیمت نه په زیاتو روپو اقرار سره شفعه باطلیږي

**سوال:** د دین عالمان په دې اره څه وایي چې زید په عمر باندې ځمکه خرڅه کړه، د زید همسایه بکر د شفعې دعوه وکړه، عمر ددې حق د ساقطولو لپاره دا حیله جوړه کړه چې د شاهدانو په وړاندې عمر د زید لس زره (۱۰۰۰۰) نوري روپۍ په ځان باندې ومنلې؛ نو په دې سره د بکر د شفعې حق باطلیږي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: عالمګیر کوهستان .....

**جواب:** په یاد صورت کې د شفعې حق باطلیږي. کما في رد المحتار ۶: ۲۴۲ : و يطلبها شراء الشفيع من المشترى﴿۱﴾ وهو الموفق .

**جواب:** په دې خرڅه شوې ځمکه کې د شفعې پرته د نورو ورونو هيڅ حق نشته، اِلَّا اَنْ يَكُونَ بيع السابقِ هو الوفاءُ﴿۱﴾ وهو الموفق .

## په دوسيه (مقدمه) کې د ځمکې په کټلو شاوخوا نورو ځمکو باندې د شفعې حکم

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې د زيد پلار د خالد سره شريکې ځمکه واخيستل، زيد لا وړوکی ؤ چې پلار يې وفات شو، زيد د خپلو ځمکو بې خبره ؤ، ډېر وخت وروسته ورته درك وشو چې زه هم ځمکې لرم، دغه وخت دده په ځمکو عمر قبضه کړې وه، ددې ځمکې دواړه برخې شاړې وې، عمر وايي چې دا ځمکې زما دي او دی ددې ځمکې شاوخوا ډېرې وچې ځمکې لري، کله چې صحيح معلومات وشو؛ نو په حکومتي کاغذونو کې د زيد نوم ؤ، د هغې سره د پټواري نوم شاهدان او تاريخ هر څه ليکل شوي وو، زيد د عمر سره خپله دوسيه (مقدمه) همداسې جاري وساتل، تر دې چې زيد وګټل، د مقدمې د فيصله کېدو سره- سره زيد د عمر په ټولو ځمکو شفعه هم وکړه؛ نو ايا زيد د عمر څخه هغه ځمکې چې وروسته يې اخيستې دي په شفعه باندې اخيستلای شي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: حاجي محمد متعلم ..... ۱۹۷۲م/۱۶/۷/

**جواب:** که د زيد ځمکه موات نه وي؛ نو د طلبات ثلاثه وروسته بې د عمر څخه په شفعه باندې اخيستلای شي،﴿۲﴾ په شرط ددې چې دا ځمکه هم موات نه وي، لأنَّ الموات لا يملك الا

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وفى القهستانى عن قاضى خان لا شفعة فى بيع الوفاء لأن حق المالک لا ينقطع راسًا.

(رد المحتار ۵:۱۵۴، كتاب الشفعة)

﴿۲﴾ وفى شرح المجلة: يلزم فى الشفعة ثلاث طلبات......(بقيه حاشيه اگلے صفحه پر)

بالاحیاء﴿١﴾ وهو الموفق .

## د شفیع په مرګ سره حق د شفعې وارثانو ته نه انتقالیږي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې شفیع په عدالت کې د طلب مواثبه وروسته دوسیه درج کړه، د قاضي د فیصلې نه وړاندې شفیع وفات شو، (١) نو ایا ددې مدعي حق د شفعې د مرګ له امله باطل شو؟

(٢) ددې مړي (د شفعې مدعي) وارثان د شفعې وارثان ګرځي او که نه؟

(٣) که د مړي (شفیع) وارثان ددې مړي په نوم د مدعي په ډول په مدعی علیهم باندې دعوه تازه کړي او قاضي هم دغه حکم فیصله کړي؛ نو ددې به څه حکم وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: متعلم دار العلوم حقانیه ... ١٩٨٧م/٢٢/١/

**جواب:** د شفعې حق د شفیع په مرګ سره ساقطیږي، د شفیع وارثانو ته نه منتقل کیږي، کما فی شرحِ المجلة ص ٥٨۶ م ١٠٣٨ : لو ماتَ الشفیعُ بعدَ طلبِ المواثبةِ والتقریرِ و قبلَ أنْ یکونَ مالکاً للمشفوعِ بتسلیمه بالتراضی مع المشتری أوْ بحکمِ الحاکمِ لا ینتقلُ حقُّ الشفعةِ الی ورثته﴿٢﴾ هیڅ مسلمان قاضي لره روا نه دي

---

(بقیه حاشیه) وهی طلب المواثبة وطلب التقریر والإشهاد وطلب الخصومة والتملک.

(شرح المجلّة ٣:٦٠٢، المادة نمبر ١٠٣٨ : الفصل الثالث فی بیان طلب الشفعة)

﴿١﴾ قال العلامة المرغینانی رحمه الله تعالی: ثمّ ان أحیاه باذن الإمام ملکه وإن أحیاه بغیر إذنه لم یملکه عند أبی حنیفة وقالا یملکه لقوله علیه الصلوة والسّلام من أحیا أرضًا میتةً فهی له. (الهدایة ٤:٤٧٨، کتاب إحیاء الموات)

﴿٢﴾ (شرح المجلة ص ٦٢٣، المادة: ١٠٣٨)......(بقیه حاشیه اګلے صفحه پر)

چې د مړ شفعه کوونکي شفعه په میراث کې وارثانو ته ومني. وهو الموفق

## د شفیع د اجازې بغیر د ځمکې په خرڅولو بایع تاواني کول او په ځمکه د شفعې حکم

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې که په یو کلي کې د رسم او رواج سره سم ځینې فیصلې کیږي، حاکم او قاضي نه وي، د بېلګې په توګه که یو سړی د خپل همسایه د مشورې بغیر خپله ځمکه خرڅه کړي، د رواج سره سم بې په هغه باندې یو لك روپۍ جرمانه وټاکل او بل سړی پیدا شو چې په هغه باندې یې شفعه وکړه، ایا په شریعت کې دې جرمانې او شفعې ته اعتبار شته او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: فضل الله مهمندي ... ۱۹۷۳م /۷/۵

**جواب:** په همسایه باندې جرمانه ټاکل او اخیستل ناروا ده، لأنه تعذیرٌ بأخذ المالِ وهومنسوخٌ صرَّحَ به فی ردالمحتارِ ﴿۱﴾ والفتح ﴿۲﴾ والبحرِ ﴿۳﴾ والخلاصة

---

(بقیه حاشیه) وقال العلامة الحصكفی رحمه الله تعالیٰ: ویبطلها موت الشفیع قبل الأخذ بعد الطلب أو قبله ولا تورث خلافًا للشافعی ولو مات بعد القضاء لم تبطل.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۵: ۱۷۰، كتاب الشفعة، باب مایبطلها)

﴿۱﴾ قال العلامة الشامی رحمه الله تعالیٰ: (قوله لاباخذ المال فی المذهب) قال فی الفتح وعن أبی یوسف یجوز التعزیر للسلطان بأخذالمال وعندهما وباقی الأئمة لایجوز: ......ولا یفتیٰ بهذا لما فیه من تسلیط الظلمة علی أخذ مال الناس فیاكلونه.

(ردالمحتار ۳: ۱۹۵، باب التعزیر، مطلب فی التعزیر بأخذ المال)

﴿۲﴾ (ومثله فی فتح القدیر ۵: ۱۱۲، فصل فی التعزیر)

﴿۳﴾ قال ابن نجیم رحمه الله تعالیٰ: والحاصل أن المذهب عدم التعزیر بأخذ المال. (البحرالرائق ۵: ۴۱، فصل فی التعزیر)

او که همسایه طلب مواثبه نه وي کړی؛ نو د هغه لپاره شفعه کول او په شفعه باندې تړوله ځمکه اخیستل ناروا ده، صرّحَ به فی کتابِ الشفعةِ ، فلیراجعْ الی کتبِ الفقهِ﴿١﴾ والمسئلة واضحةٌ . وهوالموفق .

**په خرڅه شوې ځمکه د خرځ لپاره په قرض روپۍ ورکول د شفعې سبب نه دی**

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې د عبد الحق میراث خرڅېږي، یو خواته دده لور زما سره په نکاح کې ده، دویمه دا چې په دې ځمکې د خرڅې لپاره مې خرڅوونکي ته نهه زره پنځه سوه (٩٥٠٠) روپی په قرض ورکړي وې، اوس تاسو مهرباني وکړئ چې زه د عبد الحق د ځمکې اخیستلو زیات حق لرم او که نور شفعه کوونکي؟

په دې لیکنه باندې تاسو پوره سوچ وکړئ بیا مورږ ته ځواب ولیکئ! بینوا توجروا

المستفتي: محمد نذیر د تختی اوسېدونکی ، تحصیل فتح پور ، سوات

.... ۱۹۷۳ م /۵/۷/

**جواب:** شاید چې ستا د ښځې (چې د خپل پلار سره په مال کې شریکه ده) حق د نورو شفعه کوونکو په نسبت قوي وي﴿٢﴾او دا چې هَغوی ستا قرض داره دي؛ نو ته په دې سره د شفعې هیڅ حق داری نه ګرځې، لعدمِ تحقق واحدٍ من الأسباب﴿٣﴾ وهوالموفق .

﴿١﴾ قال العلامة طاهر ابن عبد الرشید رحمه الله تعالی : والشفعة تجب بالبیع ویستحق بالطلب وهو نوعان طلب المواثبة وطلب الإشهاد .

(خلاصة الفتاوی ٤٥٦:٤، کتاب الشفعة ، الفصل الثالث فی طلب الشفعة)

﴿٢﴾ قال العلامة الکاسانی رحمه الله تعالی :أن أسباب استحقاق الشفعة إذا اجتمعت یراعی فیها الترتیب فیقدم الأقوی فیقدم الشریک علی الخلیط والخلیط علی الجار.

(بدائع الصنائع ١٠٣:٤، کتاب الشفعة)

﴿٣﴾قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی :......(بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

**د شفعې د دعوې نه د مشتري د اخيستلو نه انکار او د ګرو (رهن) اقرار کول**

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې زيد ځمکه واخيستل او ورسره دا اقرار يې هم وکړ چې عمر وربانديې د شفعې دعوه کړې ده، اوس زيد د خپل زور بيان (بيع) څخه منکر دی او وايي چې: ما دا ځمکه په ګرو اخيستې ده، په بيع قطعي مې نه ده اخيستې، مهرباني وکړئ ددې مسئلې شرعي حل راته بيان کړئ! بينوا توجروا

المستفتي: مولوي شمس الدين دير

**جواب:** که شفيع رښتيا هم د شاهدانو په واسطه دا حيله ثابته کړي؛ نو دا حيله به د نشت برابر او هيڅ اعتبار به نه ورکول کيږي، د شفيع حق نه به هيڅ زيان ونه رسوي. ﴿۱﴾ وهو الموفق

**د شفعه نه کولو په وعده د بيع وروسته د شفعې په کولو د ځمکې د پيداوار حکم**

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې حضرت سلطان تقريباً شپاړس جريبه ځمکه د چا نه اخيستې ده، د اخيستلو پرمهال يې شفعه کوونکي خبر کړه، هغوی تولو ورته په خوښه ځواب ورکړ چې موږ يې نه اخلو، د ځمکې د اخيستلو وروسته هغوی شفعه وکړه او ځمکه يې وګټل؛ نو ددې شفعه کوونکي لپاره د شريعت له مخې ددې ځمکې څخه ګټه اخيستل روا دي او که ناروا؟ بينوا توجروا

المستفتي: حافظ محمد ايوب

---

(بقيه حاشيه) وسببها اتصال ملک الشفيع بالمشتری بشرکة أو جوار.

(الدرالمختار ۵: ۱۵۲، کتاب الشفعة)

﴿۱﴾ وفی الهندية: وبعد ذلک يسأل القاضی المدعٰی عليه فيقول هل اشتريت أم لا؟ فإن انکر الشراء قال للشفيع اقم البينة أنه اشترى فإن عجز عن إقامة البينة وطلب يمين المشتری استحلف بالله...... فإن نکل او اقر او قامت للشفيع بينة قضى بها لظهور الحق بالحجة.

(فتاوی هندية ۵: ۱۷۳-۱۷۵، الباب الثالث فی طلب الشفعة)

**جواب:** که یقیني دا شفعه شوې وي؛ نو د وعدې په خلاف کولو سره په ځمکه کې حراموالی نه راځي، کما فی الهندیة ۵: ۳۰۲ تسلیم الشفعةِ قبل البیعِ لا یصحُ انتهی《۱》و بمعناهُ فی جمیعِ معتبراتِ الفقه《۲》 وهو الموفق.

## د نابالغ ځمکه اخیستل او د بلوغ وروسته په خرڅې شوې ځمکې د شفعې حکم

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید مړ شو او درې بچیان یې شاته پاتې شول. نومونه یې بکر، خالد او احمد دي. مشر زوی یې بکر نومیږي، احمد تر ټولو وړوکی او نابالغ دی. بکر ځیني میراث د تقسیم نه وړاندې په وارثانو خرڅ کړ، اوس چې کله احمد غټ شو، خپله برخه د دعوې کولو وروسته د بکر څخه واخلي او که د مشتري نه؟ ایا احمد دعوه کولای شي او که نه؟ که دعوه کولای شي؛ نو په بکر باندې او که په مشتري باندې؟ که بکر خپله برخه د دواړو نه ترلاسه کړي؛ نو په پاتې برخه کې حق لري او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد اسحاق شریك دار الحدیث، جامعه حقانیه

**جواب:** که بکر د شرعي اجازې بغیر دا ځمکه خرڅه کړې وي؛ نو دا خرڅول کالعدم او هیڅ اعتبار نه لري، 《۳》احمد د مشتري څخه خپله برخه اخیستلای شي،

---

《۱》( فتاوی هندیة ۵:۱۸۲، کتاب الشفعة، الباب التاسع فیما یبطل به حق الشفعة بعد ثبوته)

《۲》ولی شرح المجلة: وإنما یکون الرضی و التسلیم مبطلًا للشفعة إذا وقع بعد البیع وأما التسلیم قبله فلا یبطلها کما فی مجمع الأنهر. (شرح المجلة ۳: ۵۹۰، المادة: ۱۰۲۴)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: ویبطلها تسلیمها بعد البیع فقط بخلاف تسلیمها قبله کما تقدم لأن إسقاط الحق قبل وجوبه لا یصح وبعده یسقط بالإسقاط. (فتاوی تنقیح الحامدیة ۲: ۱۸۲، کتاب الشفعة)

《۳》قال العلامة الحموی رحمه الله تعالی: ولو ادعی یتیم بعدم بلوغه أن بیع عقاره بغیر مسوغ فادعی المدعی علیه المسوغ، فالقول قول الیتیم وعلی المدعی علیه البینة لأن الیتیم أنکر خروجه عن ملکه إذ بیعه والحالة هذه عندنا باطل...... (بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

مشتري به د بکر څخه د خپلو روپو غوښتنه کوي. ﴿۱﴾ که احمد طلب مواثبه او طلب اشهاد د بلوغ وروسته کړی وي؛ نو پاتې ځمکه په شفعه باندې اخیستلای شي، ﴿۲﴾ په شرط ددې چې طلب خصومت يې د يوې مياشتې څخه زيات د عذر نه بغير نه وي ځنډولی، کنه نو د مفتی به قول په اساس دی د شفعې کولو حق نه لري، دا ټولې مسئلې د شامي او عالمګيري څخه راخيستل شوي دي. ﴿۳﴾ وهو الموفق .

## د اوبو وار (نمبر) خرڅول او په ځمکه د شفعې حکم

**سوال:** ددين عالمان په دې اړه څه وايي چې که يو کس خپل د اوبو وار د ځمکې نه بغير خرڅ کړي.

---

(بقيه حاشيه) كما صرّح به فى التاتارخانية. (غمز عيون البصائر ۳: ۲۶۳، كتاب الوصايا)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالىٰ: الاستحقاق هو طلب الحق...... ( والحكم به حكم على ذى اليد ) حتّى يؤخذ المدعى من يده ......ويثبت رجوع المشترى على بائعه بالثمن إذا كان الاستحقاق بالبينة.

(الدر المختار ۳: ۲۱۶، باب الاستحقاق)

﴿۲﴾ وفى الهندية: الصغير كالكبير فى استحقاق الشفعة ......ثم إذا أوجبنا الشفعة للصغير الذى يقوم بالطلب والأخذ من قام مقامه شرعًا فى استيفاء حقوقه وهو أبوه...... فإن لم يكن أحد من هؤلاء فهو على شفعته إذا أدرك فإذا أدرك فقد ثبت له خيار البلوغ والشفعة.

(فتاوى هندية ۵: ۱۹۲، الباب الثانى عشر فى شفعة الصبى)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالىٰ: ويطلبها الشفيع فى مجلس علمه وهو يسمى طلب المواثبة ثم يشهد على البائع لو العقار فى يده أو على المشترى وإن لم يكن ذا يد أو عند العقار وهو طلب إشهاد ثم بعد هذين الطلبين يطلب عند قاض وهو يسمى طلب تمليك وخصومة وبتأخيره مطلقا بعذر وبغيره شهرًا أو أكثر لا تبطل الشفعة وقيل يفتى بقول محمّد إن أخّره شهرًا بلا عذر بطلت.

(الدر المختار ۵: ۱۵۸، ۱۵۹، باب طلب الشفعة)

ايا په ديکښې بيا شفعه جاري کيږي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبيد الله حقاني، کوئټه، ۱۴۰۲ هـ/ربيع الأول/ ۱۹/

**جواب:** دا اخيستل او خرڅول ناجائز دي او په ديکښې شفعه نه کيږي، ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## ۲۲/ کاله پس په بيع د خبريدو وروسته د شفعې حکم

**سوال:** د دين عالمان په دې اره څه وايي چې بکر په خالد باندې ځمکه خرڅه کړه، ۲۲/ کاله وروسته وليد په دې ځمکه باندې د شفعې دعوه وکړه، په داسې حال کې چې مخکې وليد ته معلومات نه ؤ چې بکر خپله ځمکه خرڅه کړې، ايا وليد اوس شفعه کولای شي؟ بينوا توجروا

المستفتي: فضل معبود، جندول، معيار، دير ۱۳۹۴ هـ/ذی القعده /۲/

**جواب:** که په تيره شوې زمانه کې وليد يقيني همداسې بې خبره پاتي ؤ بيا شفعه کولای شي، کما يفهمُ منْ قولهمْ ويبطلها المشترى فى مجلسِ علمه منْ مشترٍ أوْ رسوله أوْ عدلٍ أوْ عددٍ﴿۲﴾ وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ چونکہ شفعہ کا دارومدار بیع کی صحت پر ہے اور شرب کی بیع صحیح نہیں، کما قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: ولا يباع الشرب ولا يوهب ولا يوجر ولا يتصدق به لأنه ليس بمال متقوم فى ظاهر الرواية. (الدر المختار ۵: ۳۱۷، فصل الشرب)

﴿۲﴾ (الدر المختار ۵: ۱۵۷، باب طلب الشفعة)

وقال العلامة حسام الدين رحمه الله تعالى: والنوع الثالث جهل يصلح عذرا وهو جهل من أسلم فى دار الحرب فإنه يكون عذرًا له فى الشرائع......وجهل الشفيع بالبيع.

وفى حاشيته: قوله جهل الشفيع بالبيع فإنه يكون عذرًا حتى إذا علم به بعد زمان يثبت له حق الشفعة.

(حسامى ص ۱۲۰، فصل فى العوارض المكتسبة، أما الجهل)

## وصیت شوي ځمکه په مرض الوفات کې خرڅول او د موصی وربلندې شفعه کول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زما تره خپله پلرنی ځمکه د وصیت له مخې چې په کال ۷۳/ ۵/ ۱۲/ کې یې کړې، اوس هم زما سره په کاغذي شکل پروت دی، په هغې باندې د شاهدانو او لیکونکي امضاء هم شته.

(۲) کوم وخت چې زما تره د مرګ په مرض اخته شو، چا ورته شیطاني وکړه او زما خلاف یې سرې راپورته کړ، هغه عدالت ته لاړ او ځمکه یې د خپلې لور په نوم خرڅه شوې ولیکل. (۲۰۰) روپۍ یې مخکې ورکړې او (۹۰۰) روپۍ یې په عدالت کې ورکړې، ټولې روپۍ ددې ځمکې د اصلي قیمت نیمایي دي، ددې لپاره چې بل سړی ددې ځمکې د اخیستلو نیت ونه کړي.

(۳) دا ځای زما د کور سره د دوه طرفونو مغرب او جنوب نه لګېدلی دی، ددې له امله که زه شفعه وکړم، بیا هم زه په حقه یم.

(۴) د یادې ځمکې شپږسوه روپۍ وړاندې ورکول بیخي غلطه خبره ده، نهه سوه چې یې په عدالت کې کومې ورکړې هغه صحیح دي.

د پورته تفصیل له مخې یوازې زه په حقه یم چې دا ځای واخلم، ځکه چې د زوړ وصیت له مخې هم زه ددې ځمکې مالك یم او په شفعه کې هم زه زیات حق دار یم، ستاسو مهرباني به وي په شرعي فیصلې مو ونازوئ ددې لپاره چې هلته په شرعي عدالت کې پکار راشي. بینوا توجروا

المستفتي: محمد مسکین خان، موضع کهتړ تحصیل و ضلع اټك ۱۹۸۴ م/ ۴/ ۲۶/

**جواب:** د تره (مړي) په لور باندې د ځمکې د خرڅولو له امله خپل وصیت ته هیڅ اعتبار نه دی ورکړی، دا موصی له کولای شي چې په دې ځای باندې شفعه وکړي، ﴿۱﴾ که چیرې پلار دغه ځمکه په ډېر قیمت اخیستې وي؛ نو

---

﴿۱﴾ وقال العلامة الحصکفي: وله أی للموصی..... (بقیه حاشیه اګلے صفحه پر)

داخرخول دمرض الموت په حالت کې باطل او هيڅ اعتبار نه لري. (الهندية)﴿۱﴾

وهوالموفق.

**د هبه شوي ځمکې په بدل کې روپۍ ورکول او شفيع د بيع په دعوې د شفعې حکم**

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې زيد د شاهدانو په وړاندې بکر ته يو څه ځمکه هبه کړه، څه ورځې وروسته بکر ورته د هبه شوي ځمکې روپۍ ورکړې، ددې وروسته عمر په دې هبه شوي ځمکې د شفعې دعوه وکړه چې دا هبه شوې ځمکه نه ده، بلکې په روپو يې اخيستې ده، ددې له امله زما شفعه نه ساقطيږي، هغوی هم شاهدان وړاندې کوي، په دوی دواړو کې به د چا شاهدان د اعتبار وړ وي؟ او فيصله به د چا په حق کې کيږي؟ بينوا توجروا

المستفتي: سيد شريف جهانبتي کلي ضلع دير ۱۴۰۱ هـ/ ۸/ ۱۹/

**جواب:** په ياد صورت کې بکر مدعى عليه او دفاع کوونکی دی، لومړی به دده د هبې د شاهدانو خبره اوريدل کيږي.

---

(بقيه حاشيه) الرجوع عنها بقول صريح وتصرف يزيل ملكه فإنه رجوع كالبيع والهبة. (الدرالمختار ۵: ۲۶۵، ۲۶۶ كتاب الوصايا)

وقال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالى: الشفعة واجبة للخليط ......ثم للجار......لقوله عليه الصلوة والسلام: الجار أحق بسقبه، قيل يارسول الله! ماسقبه؟ قال شفعته. (الهداية ۴: ۳۸۹، كتاب الشفعة)

﴿۱﴾وفي الهندية: ومن الموقوف إذا باع المريض في مرض الموت من وارثه عيناً من أعيان ماله إن صح جاز بيعه وإن مات من ذلك المرض ولم تجز الورثة بطل البيع. (فتاوى هندية ۳: ۱۵۴، الباب الثاني عشر في أحكام البيع الموقوف)

دویم دا چې که د هبې شاهدان نه وي، بیا به د سوګند ورکولو صورت او شهادت خبره مخې ته راځي، شرح المجلة ۹۳۱ ﴿۱﴾ بخلاف دعوی الرجلین فانه ترجحَ فیه بیّنةُ البیعِ والشراءِ علی بینةِ الهبةِ المجانیةِ کمافی شرحِ المجلة:۱۳۳ ﴿۲﴾

وهو الموفق.

**په شفعه کې مشتري د هغه قیمت حق لري په کوم چې ده خپله اخیستې ده**

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې په کال (۱۹۶۶م) کې موږ څلورو وروڼو څه ځمکه واخیستل، په دې باندې یو سړي د شفعې دعوه وکړه، دوسیه (کېس) ترې موږ وګټله. ددې وروسته هغوی په هائی کورټ (لوړ دار القضاء) کې خپله دعوه وچلول او هلته یې رانه وګټل، دوی موږ ته د کال (۱۹۶۶م) قیمت وایي، چې هغه وخت د غه ځمکه موږ په دوه دېرش زره روپۍ اخیستې وه، اوس ددې ځمکې قیمت تقریباً دوه لکه څلویښت زره روپۍ جوړېږي. اوس په شریعت کې موږ د کال (۱۹۶۶م ) قیمت حق لرو او که د اوسنیو روپو؟ بینوا توجروا

المستفتي: ماسټر سید نواب ضلع مردان

**جواب:** کومې روپۍ چې تا په کال (۱۹۶۶م ) کې ورکړې وې، اوس هم ته د هغو روپو شرعي حق لرې، ﴿۳﴾ فقط .

---

﴿۱﴾ قال العلامة سلیم رستم باز رحمه الله تعالی : إذا أثبت من ادعی دفع الدعوی دفعه تندفع دعوی المدعی وإلّا یحلّف المدعی الأصلی بطلب صاحب الدفع فإن نکل المدعی عن الیمین ثبت دفع المدعی علیه وإن حلف عادت دعواه الأصلیة.

(شرح المجلة ۹۳۱، المادة : ۱۶۳۲، الفصل الثانی فی دفع الدعوی )

﴿۲﴾ قال العلامة سلیم رستم باز : ترجح بینة البیع علی بینة الهبة والرهن والإجارة.

(شرح المجلة ۱۱۳۳، المادة : ۱۷۶۳، الفصل الثانی فی ترجیح البینات)

﴿۳﴾ وقال العلامة الکاسانی رحمه الله تعالیٰ :ثمن...... (بقیه حاشیه اګلے صفحه پر)

(بقیه حاشیه) المشتری إما أن یکون ممّا له مثل کالمکیلات و الموزونات والعددیات المتقاربة وإما أن یکون ممّا لامثل له......فان کان ممّا له مثل فالشفیع یأخذ بمثله لأن فیه تحقیق معنی الأخذ بالشفعة إذ هو تملیک بمثل ماتملک به المشتری.

(بدائع الصنائع ۴: ۱۳۱، کتاب الشفعة، فصل أما بیان مایتملک به)

قال اللہ تبارک وتعالیٰ

وَاِنْ كُنْتُمْ عَلٰى سَفَرٍ وَّلَمْ تَجِدُوْا

كَاتِبًا فَرِهَانٌ مَّقْبُوْضَةٌ.

(سورة البقرة)

# كتاب الرهن

قال الله تعالی: وَإِن كُنتُمْ عَلَىٰ سَفَرٍ وَلَمْ تَجِدُوا كَاتِبًا فَرِهَانٌ مَّقْبُوضَةٌ (سورة البقرة)

## رهن او ارتهان روا دي

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وايي چې ما په يو درسي كتاب كې وليدل، كله چې نبي كريم صلی الله عليه وسلم له دې فاني نړۍ نه سترګې پټې كړې؛ نو د هغه زغره د دېرش صاعه وريشو په بدل كې د يو يهودي سره ګرو وه. ما ته ددې د پر زيات شك پيدا شو چې ګرو ايښودل څنګه دي؟ ايا څه شی په ګرو ايښودل روا دي؟ او بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم څنګه د ګرو عمل ترسره كړی دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: ډاكټر حبيب الرحمن زاهد. فارميسي پبي نوشهره ۱۹۸۵م/۱/۱۰/

**جواب** په بخاري شريف كتاب البيوع او كتاب الرهن كې دا روايت شته،﴿۱﴾په داسې طريقه د رهن او ارتهان عمل ترسره كولو باندې د ټول امت اتفاق دی.﴿۲﴾ يوازې ناجائزه دا ده چې مرتهن د مرهونې څخه ګټه واخلي ﴿۳﴾وهو الموفق.

---

﴿۱﴾عن عائشة رضی الله تعالی عنها قالت اشتری رسول الله صلی الله عليه وسلم من يهودی طعاما ورهنه درعه.

(الصحيح لإمام البخاری ۱: ۳۴۱، باب الرهن عند اليهود و غيرهم وباب من رهن درعه)

(كذا فی كتاب البيوع ۱: ۲۷۷ باب شری النبی صلی الله عليه وسلم بالنسيئة)

﴿۲﴾وفی شرح المجلة: الرهن مشروع بالكتاب والسنة وإجماع الأمة. أما الكتاب فقوله تعالى: فرهان مقبوضه و أما السنة: فما روی عن عائشة رضی الله تعالی عنها ...... وقد انعقد الإجماع عليه. (شرح المجلة ۱: ۴۳۱، المادة: ۷۰۱، الكتاب الخامس فی الرهن)

﴿۳﴾وقال العلامة الحصكفی رحمه الله تعالى: لا انتفاع به..... (بقيه حاشيه اگلے صفحه پر)

## کوم شیان رهن کول روا دی؟

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وايي چې کوم شیان په ګرو (رهن) کې اېښودل روا دي؟ ساه لرونکي حیوانات او که بې ساه؟ لکه سره زر، سپين زر، زیورات، مال او ګډان که نور څه ...؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد سعید جی آئی ایس ایبټ آباد .... ۱۹۸۵ م/ مارچ/ ۳۱/

**جواب:** په ګرو (رهن) باندې دواړه ډول شیان اېښودل روا دي «۱» وهو الموفق.

## شریکې ځمکه د شریک شخص په رهن کې اېښودل

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وايي چې یوه توټه ځمکه د دوه ورونو تر منځ شریکه ده، په دوی کې یو ورور خپله ځمکه د بل ورور سره ګرو ږدي، ایا د شریعت له مخې یو ورور د بل ورور سره خپله ځمکه په ګرو اېښودلای شي؟ بینوا توجروا

المستفتي: ............... نامعلوم

(بقیه حاشیه) مطلقا لا باستخدام ولا سکنی ولا لبس ولا إجارة ولا إعارة سواء کان من مرتهن او راهن إلا بإذن کل للآخر. (در مختار ۵: ۳۴۲ کتاب الرهن)

«۱» وفی الهندیة: مایجوز بیعه یجوز رهنه وما لا یجوز بیعه لا یجوز رهنه کذا فی التهذیب......رهن الحیوان المملوک بالدین جائز.

(فتاوی هندیة ۵: ۴۳۵-۴۳۶، الفصل الرابع فیما یجوز رهنه وما لایجوز)

وقال الدکتور وهبة الزحیلی: وشروط المرهون عند الحنفیة أن یکون مالًا متقومًا معلومًا، مقدور التسلیم، مقبوضًا، محازًا، فارغًا عمّا لیس بمرهون، منفصلًا متمیزًا عنه، عقارًا کان أو منقولًا، مثلیًا کان أو قیمیًا.

(الفقه الإسلامی وأدلته ۶: ۴۳۲۱، کتاب الرهن: شروط المال المرهون)

**جواب:** که دا ګروي د تقسیم نه وړاندې شوې وي بیا نه دی صحیح، لما فی الدر المختار: لا یصحُّ رهنُ مشاعٍ لعدمِ کونه ممیزاً کما مرَّ مطلقاً مقارنـاً أوْ طاریاً عنْ شریکه أوْ غیره یقسم أوَّلاً «۱» فقط،وهو الموفق .

## د مرهونې خوړل، ساتنې او هلاکت په صورت کې قرض ساقطېدل

**سوال:** د دین عالمان په دې اره څه وايي چې زید ژوندی چېلی، چې شیدې لري او قیمت یې ۲۵۰ روپی دی، د ۱۰۰ روپو قرض په بدل کې له عمر سره ږدي، اوس به په عمر باندې د چیلي وابنه، اوبه، اوسپدو ځای، بهر ویستل او ساتنه یې تولله په ده باندې ده. عمر په دې خفه دی چې شیدې به یې څوك استعمالوي؟ که شیدې خامخا زید ته رسوي؛ نو وابنه، اوبه او د تربیې ذمه داري یې بیا په چا ده؟ بغیر له دې که دغه چېلی د الله په خوښه مړه شي او زید ته یې اوس یا څه وخت وروسته خبر ورکول شي؛ نو تاوان به یې په چا وي؟ بینوا توجروا

المستفتي محمد سعید شاه جي، ائی ایس ایبټ آباد.... ۱۹۷۵ م/ مارچ / ۳۱/

**جواب:** د دې ګروي خوراك په راهن واجب «۲» او نوره ساتنه یې په مرتهن

---

«۱»(الدر المختار ۵:۳۴۸ باب مایجوز ارتهانه وما لا یجوز)

وفی الهندیة: واما شرط جوازه فأن یکون المال المرهون مقسومًا محوزًا .ومنها الحیازة عندنا، فلا یصح قبض المشاع سواء کان مشاعًا یحتمل القسمة أولا یحتملها و سواء رهن من اجنبی اومن شریکه و سواء قارن العقد أو طرا علیه.

(فتاوی هندیة ۵ :۴۳۲،۴۳۳ ، الفصل الأول فی تفسیر الرهن ورکنه وشرائطه)

«۲»قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: ویجب علی المرتهن أن یحفظه بنفسه وعیاله کما فی الودیعة وضمن إن حفظ بغیرهم.(الد ر المختار ۵:۳۴۵ ، کتاب الرهن)

ده،﴿۱﴾ که ګروي د مرتهن سره هلاکه شي: نو د خپل قرضې نه دي زړه وویني، برابره خبره ده چې دا مرګ او هلاکت په اختیاري ډول وي او که په الهي خوښه وي. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## راهن د مرتهن په اجازه یا د قرض ورکولو بغیر مرهونه خرڅول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې احمد خپله ویجاړه ځمکه د سلیم خان سره د ۵۰۰۰ روپو په بدل کې رهن ایښې ده، د سلیم خان په بې خبری کې احمد خان خپله ګرو شوې ځمکه په ناصر خان باندې په بیع قطعي سره خرڅه کړه.
مرتهن دعوه وکړه چې زما د اجازې بغیر مرهونه ځمکه خرڅول نه صحیح کیږي؛ نو ته زما روپۍ راکړه بیا به ځمکه زما له لاسه ازاده کړې. یا یې په ما باندې خرڅه کړه: دا راز پرېکړه وشوه چې احمد خان د ناصر خان څخه خپله ځمکه واخیستل او بېرته یې په سلیم خان باندې دده د روپو په بدل کې خرڅه کړه، تر اوسه پورې د راهن دا خیال دی چې د ځمکې اصلي مالك ناصر خان دی او په ما باندې د سلیم خان (مرتهن) روپۍ واجب الأداء دي، وخت تېرېدو تر دې چې دوه کاله پوره شوه: خو احمد ونه کولای شو چې سلیم خان ته روپۍ ورکړي او د سلیم خان همدا فکر دی چې مرهونه ځمکه زما د اجازې بغیر نه خرڅیږي، د ناصر خان عقد کالعدم او هیڅ اعتبار نه لري؛ نو کله چې زه دا ځمکه په بیع قطعي سره واخلم نوله شخړه به پای ته ورسیږي، څکه چې مخکې هم دا ځمکه زما په ذمه داري کې وه او اوس د شرعي فیصلې بغیر زه د ځمکې پرېښودو ته تیار نه یم. تاسو مهرباني وکړئ او د شرعي مسئلې نه مو خبر کړئ چې ځمکه د چا ده؟ بینوا توجروا
المستفتي ضیاء المرسلین، مدرسه امداد العلوم، مسجد عزیزیه ایبټ آباد ۱۴۰۳ھ/ شعبان/ ۲۶/

---

﴿۱﴾ و فی شرح المجلة: الرهن ان کان حیوانا فعلفه و اجرة راعیه علی الراهن.
(شرح المجلة ۳: ۱۲۲، المادة ۷۲۳ الفصل الأول فی بیان مؤنة المرهون ومصارفه)

﴿۲﴾ قال العلامه الحصکفی رحمه الله تعالی: وهو مضمون إذا هلک بالأقل من قیمته ومن الدین ...... و المعتبر قیمته یوم القبض لا یوم الهلاک. (الدرالمختار ۵: ۳۴۱ کتاب الرهن)

**جواب**: راهن د مرتهن بې اجازې مرهونه شی (تر دې چې قرضه بې ورته نه وي ادا کړې) په چا نه شي خرڅولای او که خرڅه یې کړي؛ نو دا بیع به موقوفه وي، کما فی شرح التنویر فی أوّلِ باب التصرُّفِ فی الرهنِ : توقف بیع الراهنِ رهنه علی اجازةِ مرتهنه أوْ قضاء دینه «۱» د مرتهن د مرافعې له امله دا بیع فسخ کېدلای شي، کما فی شرح التنویرِ : أوْ رفعَ الأمرَ الی القاضی لیفسخَ البیع «۲» په یاد صورت کې ددې جزئیاتو په اساس د احمد خان او ناصر خان ترمنځ بیع فسخ شوه، حاکم هم نه شي کولای چې په زوره په مرتهن باندې ځمکه خرڅه کړي، ځکه چې مرتهن هم شرعي مالك نه دی او د حاکم دا خرڅول هیڅ اعتبار نه لري. فلیراجعْ الی الهندیةِ ۱ : ۵۵۳: باب النفقاتِ «۳» وهو الموفق.

## د مرهونې ځمکې د ګټې اخیستلو حکم

**سوال**: مایقول العلماء السادة أئمة الدین نفع الله بهم المسلمین: هل یجوز الانتفاعُ بالمرهونةِ أمْ لا ؟ و قدْ جاء فی التنزیلِ (فَرِهَانٌ مَّقْبُوضَةٌ ) بینوا بالبرهان آجرکم الرحمن ؟

المستفتي: میراخان الأفغاني....... ۱۹۷۵ م/ ۱۲/ ۲۹/

---

«۱» (الدر المختار ۵: ۳۶۱ باب التصرف فی الرهن والجنایة علیه)
«۲» (الدر المختار ۵: ۳۶۱ باب التصرف فی الرهن والجنایة علیه)
«۳» وفی الهندیة: وإذا حبس للنفقة فما کان من جنس النفقة سلمه القاضی [illegible]ها بغیر رضاه بالإجماع وما کان من خلاف الجنس لا یبیع علیه شیئامن ذلک ولکن یامره أن یبیعه بنفسه وکذا فی سائر الدیون فی قول أبی حنیفة رحمه الله تعالی.
(فتاوی هندیة ۱ : ۵۵۳ باب النفقات)
وفی البزازیة: لیس للحاکم بیع الرهن إذا کان الراهن مفلسًا عند الإمام.
(البزازیه علی هامش الهندیة ۲ : ۷۳، ۷۴ کتاب الرهن: نوع فی تصرفهما فیه)

**جواب** اعلمْ أنَّ الرهنَ والارتهان جائزتانِ لقوله تعالى : (فَرِهَانٌ مَّقْبُوضَــةٌ)﴿۱﴾و لأنَّ النبى صلى الله عليه وسلمَ رهنَ درعه عند يهودىٍّ ،رواه البخـــارى﴿٢﴾و لا خلافَ فى جوزاهما﴿٣﴾نعم! اختلفوا فى حكم الانتفاعِ بالمرهونةِ ، قالَ أحمدُ بجوازِ انتفاعِ الركوبِ واللبنِ ، وقالَ الحنفيةُ بعدمِ الجوازِ مطلقاً اذا كان الانتفاعُ مشروعاً أوْ معروفاً﴿٤﴾لأنَّ كلَّ قرضٍ جرَّ نفعاً فهو رباً ، وهو لفظُ الحديثِ ، رواه الحارثُ فى مسنده﴿٥﴾ويؤيده ما رواه ابنُ ماجةَ مرفوعاً : اذا أقرضَ أحدكمْ قرضاً فأهدى اليهِ أوْحمله على الدابةِ فلا يركبها و لا يقبلها ،﴿٦﴾ و كذا ما رواه البخارىُّ فى

---

﴿۱﴾(سورة البقرة آيت : ٢٨٣)

﴿٢﴾(الصحيح للإمام البخارى ١: ٣٤١ باب الرهن عند اليهود وغيرهم)

﴿٣﴾ وفى شرح المجلة:الرهن مشروع بالكتاب والسنة وإجماع الأمة ...... وقد انعقد الإجماع عليه.(شرح المجلة ٣: ١٣١، المادة : ٧٠١، الكتاب الخامس فى الرهن)

﴿٤﴾قال العلامة وهبة الزحيلى رحمه الله تعالى: وقال الحنفية ليس للمرتهن أن ينتفع بالمرهون استخدامًا ولا ركوبًا ولا سكنى ولا قراءة فى كتاب إلا بإذن الراهن...... و أما الحنابلة فقالوا فى غير الحيوان لا يجوز الانتفاع به بغير إذن الراهن بحال وأما الحيوان فيجوز للمرتهن أن ينتفع به إن كان مركوبًا او محلوبًا على أن يركب و يحلب بقدر نفقته. (الفقه الإسلامى و أدلته ٦: ٤٢٨٩ تا ٤٢٩٣ ، انتفاع المرتهن بالرهن)

﴿٥﴾عن على رضى الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :كل قرض جر منفعة فهو ربًا، رواه الحارث بن أبى أسامه وإسناده ساقط وله شاهد ضعيف عن فضالة بن عبيد عند البيهقى و آخر موقوف عن عبد الله بن سلام عند البخارى. (بلوغ المرام من أدلة الأحكام ٢٨٢ رقم حديث ٨١٢)

﴿٦﴾(سنن ابن ماجة ١٧٧ ، باب القرض)

تاریخه مرفوعاً : اذا أقرضَ الرجلُ الرجلَ فلا يأخذْ هديته﴿۱﴾وكذا ما رواه البخاريُّ عنْ أبي بردةَ رضي الله عنهُ قال قدمتُ المدينةَ فلقيتُ عبدَ الله ابنَ سلامٍ فقالَ انك بأرضٍ فيها الربا فاشٍ فاذا كان لك على رجلٍ حقٌ فأهدى اليك حملَ تبنٍ أوْ حملَ شعيرٍ أوْ حبلَ قتٍ فلا تأخذه فانه ربا.﴿۲﴾وفى الهندية ۳: ۲۶۴ : قال محمدٌ فى كتاب الصرفِ أنَّ أبا حنيفةَ (رحمه الله) كانَ يكرهُ كل قرضٍ جرَّ منفعةً ، قال الكرخي هذا اذا كانت المنفعةُ مشروطةً فى العقد.﴿۳﴾و فى رد المحتار ۵: ۴۲۷: قال (طحطاوی) قلتُ والغالبُ من أحوالِ الناسِ أنهم يريدونَ عندَ الدفعِ الانتفاع و لو لاه لما أعطاه الدراهمَ و هذا بمنزلةِ الشرطِ لأنَّ المعروفَ كالمشروط ، ﴿۴﴾فانْ قلتَ ان الاذنَ معروفٌ فليكنِ الانتفاعُ جائزاً ؟ قلتُ : هذا مبيحٌ و كونُ انتفاعِ المرتهنِ معروفاً محرمٌ و ما اجتمعَ الحلال والحرام الا غلبَ الحرام على الحلالِ ، فافهمْ ، وما تمسك به الامام أحمد منسوخٌ ، لأنَّ الراوي لم يعملْ به أوْ محمولٌ على اذن الراهنِ أي اذا لم يكن مشروطاً و لا معروفاً أوْ على المروَةِ وفى المقامِ تفصيلٌ مزيدٌ ، وفيما ذكرنا كفايةٌ بفضله تعالى . وهو المصوب

## د هندوانو پرېښودل شوي مرهونې په قرض کې حسابول

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې د زيد سره د يو هندو دکان د دوه زره روپو په بدل کې ګرو ؤ، د هندوانو د تلو وروسته دکان د زيد سره پاتې شو، تر پنځه ويشت کالو پورې يې عمر ته په پنځه ويشت روپۍ کرايه

---

﴿۱﴾(مشكوة المصابيح ۲۴۶ باب الربوا)
﴿۲﴾( الصحيح للإمام البخاري ۱:۵۳۸ باب مناقب عبد الله بن سلام )
﴿۳﴾(فتاوى هندية ۳:۲۰۲ الباب [illegible]ع عشر فى القرض والاستقراض )
﴿۴﴾(رد المحتار ۵:۳۴۳ كتاب الرهن)

ورکړ، په اخري کال يې عمر ته د دکان د خالي کولو وينا وکړه، هغه ورته وويل: چې زه درته د دکان کرايه درکوم او د دکان څخه نه شم وتلای. په ديکښې خبره عدالت ته ورسېده، په عدالت کې زيد او عمر دواړه د يو بل مدعيان جوړ شوه او د حکومت په کور کې دکان د يو هندو په نوم دی، مهرباني وکړئ دا بيان کړئ چې دکان اوس د چا حق دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الحليم غورغشتوي کيملپور ...... ۱۳۹۷ هـ / ذی الحجه / ۱۱/

**جواب:** د هندوانو د ځمکو مالك به هغه څوك وي چې حکومت يې مالك جوړ کړي، كما يشير اليه في قوله تعالى: ﴿مَّا أَفَاءَ اللَّهُ﴾ (الآية)﴿۱﴾ نو که زيد د خپلو دوه زره روپو په بدل کې دغه ياده ځمکه قبضه کړې وي، بس دی يې مالك دی، لجواز أخذ الحقِّ من غيرِ جنسٍ كما في رد المحتارِ ۵:۳۷۳:﴿۲﴾ وهو الموفق.

## په رهن کې د اجارې دارومدار د طرفينو په نيت پورې اړه لري. نه يوازې د مرتهن په نيت

**سوال:** د دين عالمان په دې اړه څه وايي چې زيد د عمر نه په دوه زره روپو کې ځمکه ګرو (رهن) کړه؛ خو زيد ددې ګرو شوې ځمکې د پيداوار نه د ګټې اخيستلو په غرض عمر ته قلنګ يا اجاره ورکوي، ايا دا حيله جائز ده؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي عبد الباقي کالش والی. تحصيل بټګرام، ضلع مانسهره ۱۴۰۱ هـ / ۷ / ۶/

---

﴿۱﴾(سورة الحشر آيت: ۷)

﴿۲﴾وقال العلامه ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله و جوزه الشافعي) قدمنا في كتاب الحجر أن عدم الجواز كان في زمانهم، أما اليوم فالفتوى على الجواز (قوله وهو الأوسع) لتعينه طريقا لاستيفاء حقه فينتقل حقه من الصورة إلى المالية كما في الغصب والإتلاف.

(رد المحتار ۵: ۳۰ فروع كتاب الحظر والإباحة)

**جواب:** د شریعت په رڼا کې د مرتهن لپاره دا حیله ناکافي ده، ځکه چې د اجارې دارومدار د طرفینو په اراده او د هغوی په نیت پورې تړلې ده. ﴿۱﴾ یوازې د مرتهن نیت ته اعتبار نشته، همدا راز دا روپۍ د عامو خلکو د قیمت څخه کمې دي، فیندرج تحت کل قرض جر نفعاً فهو ربا ﴿۲﴾ دا راز په دې سره د بنده حق ساقطیږي او د الله تعالی حق الئن کما کان پاتې دی. وهو الموفق.

## د مرتهن په رهن باندې د قبضې نه بغیر راهن ته په اجاره ورکول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید خپله ځمکه د زرو روپو په بدل کې د بکر سره رهن ایښې؛ خو د رواج سره سم ځمکه بکر (مرتهن) ته ونه سپارل شوه، زید یې د نورو بزګرو په خبر کري او بکر ته دومره څه ورکوي چې نور خلك یې ورکوي او خپله د بزګرۍ په اندازه پیداوار اخلي، لس کاله وروسته زید د عمر برخه بنده کړه، عمر د خپلو روپو غوښتنه وکړه چې ماته مې روپۍ راکړه! زید ورته وویل: چې د لسو کالو حساب وکړه، که ستا د روپو په اندازه مې در رسولي وي؛ خو خیر او خلاص، که زما روپۍ تا ته رسېدلي وي، هغه به ماته راکړې! اوس سوال دا دی چې بکر ته کوم پیداوار ورکول شوی، ایا د هغې حسابول صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي پیر محمد ویسه، دارالعلوم تعلیم القرآن ضلع اټک ...... ۱۴۰۱ هـ / ۷ / ۸ /

﴿۱﴾ قال العلامه الحصکفی رحمه الله تعالیٰ: وشرعا تملیک نفع مقصود من العین بعوض. (الدر المختار ۵:۲ کتاب الإجارة)

﴿۲﴾ وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: (قوله کل قرض جرّ نفعًا حرام) أی إذا کان مشروطا. (رد المحتار ۴:۱۹۳ فصل فی القرض، مطلب کل قرض جرّ نفعًا حرام)

وعن علی رضی الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم کل قرض جرّ منفعةً فهو ربًا رواه الحارث ابن أبی أسامه.

(بلوغ المرام عن أدلة الأحکام ۲۸۲ رقم حدیث ۸۱۲)

**جواب:** دا معامله ناروا ده، د رهن لپاره قبضه ضروري ده،﴿۱﴾او که دا معامله د قبض نه وروسته شوې وي؛ نو بیا به رهن ته هیڅ اعتبار نه وي، فلیراجع الی الهندیة ۵: ۲۹۳:﴿۲﴾وهو الموفق.

## د مرتهن لپاره مرهونه ځمکه راهن یا بل چاته په اجاره ورکول

**سوال:** د دین عالمان په دې اړه څه وایي چې زید د بکر څخه زر روپۍ واخیستلې او د بکر سره یې خپله ځمکه ګرو کړه، د ګرو وروسته بکر ځمکه بېرته زید ته په اجاره یا زراعت باندې ورکړه، اوس دوی دواړو چې کوم عقد مزارعت یا اجاره کړې ایا دا روا دی؟ په راهن او مرتهن کې کوم ګناهګار دی او که نه؟ دغه راز که مرتهن د راهن نه بغیر د بل چا سره عقد مزارعت یا اجاره وکړي؛ نو ددې به څه حکم وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: حافظ سلطان محمود تور ډهیر

---

﴿۱﴾وفی الهندیة: قال محمد رحمه الله تعالیٰ فی کتاب الرهن لا یجوز الرهن إلا مقبوضا فقد أشار إلی أن القبض شرط جواز الرهن.

(فتاوی هندیة ۵: ۴۳۲، الفصل الأول فی تفسیر الرهن ورکنه الخ)

﴿۲﴾وفی الهندیة: ولو کان الرهن أرضا بیضاء فمزارعة الراهن و البذر من المرتهن جائزة والخارج علی الشرط، وقد خرجت من الرهن ولا تعود إلیه إلا بتجدید.

(فتاوی هندیة ۵: ۲۶۴ کتاب المزارعة، الباب الخامس عشر فی الرهن فی المزارعة)

وقال العلامه ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: (سئل) فیما إذا استأجر المرتهن الدار المرهونة من راهنها فهل یبطل الرهن؟ (الجواب) نعم! قال فی البزازیة فی أواخر الرهن وفی العتابیة استأجر المرتهن الأرض المرهونة بطل.

(فتاوی تنقیح الحامدیة ۲: ۲۵۵ کتاب الرهن)

**جواب:** كه مرتهن دا ځمكه په عقد اجاره سره راهن ته وركړي؛ نو د رهن معامله ختمه شوه، ټول پيداوار به د راهن وي او كه دربيم ګړي سړي ته يې په اجاره وركړي؛ نو كه د راهن په اجازه يې وركړې وي بيا هم د رهن عقد ختم شو او روپۍ به راهن اخلي، كه د راهن بې اجازې يې پردي سړي ته په اجاره وركړي؛ نو د رهن عقد شته؛ خو مرتهن ګناهګار شو او دا روپۍ به خامخا صدقه كوي، يدل عليه ما في الهندية ٥: ٤٨٩: ولو ارتهنَ الرجلُ دابَّـةً وقبضها ثمّ آجرها منَ الراهنِ لا تصحُ الاجارةُ ويكونُ للمرتهنِ أنْ يعودَ في الرهنِ و يأخذ الدابَّةَ و ان آجر المرتهن من أجنبي بأمر الراهنِ يخرج من الرهنِ و تكـون الأجرة للراهنِ و ان كانت الاجارةُ بغير اذن الراهنِ يكون الأُجـرةُ للمـرتهنِ و يتصدقُ به و للمرتهنِ أنْ يعيدها في الرهنِ«١» انتهى ، قلـتُ : والمزارعـةُ و الاجارةُ لا فرقَ بينهما في الحكمِ و لا في العلة ، فقط وهوالموفق .

## د مرهونې ګټه مرتهن ته بخښل يا ترې بې زاره كېدل

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې كه راهن او مرتهن د ګرو شوي ځاى او ځمكې پيداوار يو بل ته وبخښي، يا د ګرو شوي ځاى په بدل كې چې كومې روپۍ وركول شوي ددې د ادا كولو پرمهال يو بل ته پيداوار وبخښي او هبه يې كړي؛ نو ايا دا بخښنه د شريعت له مخې روا ده كه ناروا؟ بينوا بالكتاب توجروا يوم الحساب .

المستفتي مولوي عبد الرازق ملا كند ايجنسي ..... ١٣٩٩ هـ/ جمادى الثانى / ١١/

**جواب:** د مرهونې ګټه هسې هلاكيږي، په ديكښې يو بل ته بخښنه ضروري څه چې توبه به هم كوي، وفي رد المحتار ٤: ١٧٧: أوْ بعد الاستهلاك لا يتأتى رد عينه

«١»( الفتاوى الهندية ٥: ٤٦٤-٤٦٥ ،الباب الثامن في تصرف الراهن أو المرتهن في المرهون)

فتعينَ ردالمثلِ وهومحض حقّ العبدِ و يصحُّ ابراء العبد عنْ حقه﴿۱﴾انتهى،وهو الموفق .

## د مرتهن رهن واپس کول او د راهن څخه پیداوار سوالي غوښتل

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې يو مرتهن راهن ته ببرته خپله مرهونه ځمکه واپس کړه او وې ویل چې دا ځمکه کړه او پیداوار یې ماته راکوه: راهن دا ایښودل شوي شرط سره سم پیداوار مرتهن ته ورکوي، او س چې کله رهن بند شو؛ نو راهن دا پیداوار ببرته اخیستلای شي او که نه؟ د مرتهن لپاره ددې پیداوار استعمال روا دی - که نا روا او که صدقه کول یې واجب دي؟ په هلاك او استهلاك کې څه فرق شته او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: حاجي صديق خان مهتمم سراج العلوم کاهي ضلع هنګو ...... ۱۹۶۹ م / ۵ / ۷/

**جواب**: په حقیقت کې دلته مرتهن مستعير (سوالي) دی او راهن معير دی، مرتهن دا شرط لګولی چې ما به ددې مرهونې ځمکې بغير د کوم بدل نه مالك جوړوې او راهن ورسره منلې، دا شرط اګر که تاوان لرې کوي؛ خو رهن نه لرې کوي، قال العلامة الشامي ۵: ۴۵۲: فالعاريةُ توجب سقوط الضمانِ سواءٌ كانَ المستعيرُ هو الراهنُ أوِ المرتهنُ اذا هلك وقتُ الاستعمال و لاترفعُ عقد الرهنِ وحكمِ الوديعة كحكمِ العاريةِ﴿۲﴾انتهى بتفسيرٍ يسيرٍ، ددې پيداوار مالك به مرتهن شي او په مرتهن باندې يې صدقه کول واجب نه دي، يدلُّ عليه ما في الهندية ۳: ۲۶۶: رجلٌ قالَ لآخرَ أقرضني ألفاً على أنْ أعيرك أرضي هذه تزرعها ما دامت الدراهمُ في يدي فزرع المقرض (اصالةً أوْ وكالةً) لا يتصدقُ بشيءٍ و أكرهُ له هذا.﴿۳﴾انتهى قلتُ : وجه الدلالة

﴿۱﴾(رد المحتار ۴:۱۹۷، باب الربا، مطلب في الإبراء عن الربا)

﴿۲﴾(رد المحتار ۵:۳۶۳، باب التصرف في الرهن والجناية عليه وجنايته على غيره)

﴿۳﴾فتاوى هندية ۳:۲۰۲، الباب التاسع عشر في القرض والإستقراض)

أنّ كراهةَ الانتفاعِ على المرهونِ انما هي لأجلِ القرضِ و حكمُ الاعارةِ ابتداء والاعارةُ بعد الاستعارةِ لا فرق فيه ، فافهمْ ، وهو الموفق .

## د راهن قرض ادا كولو وروسته د مرتهن فك رهن انتقال نه كول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې يو سړي د بل سړي نه قرض واخيست، د قرض په بدل كې يې خپله ځمكه ورسره ګرو كړه او وې ويل: تر كله پورې چې مې روپۍ نه وي دركړي. ځمكه او ټولې ګټې يې ستا دي، تر ډېره وخته پورې ترې مرتهن خپله ګټه اخيستل، وروسته د ځمكې مالك دده روپۍ وركړې او خپله ځمكه يې لاس ته راوړه؛ خو اوس مرتهن د انتقال فك رهن څخه انكار كوي، ددې څه حكم دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد المنان مډل سكول تربت، سيالكوټ ايبټ آباد

۱۴۰۲ هـ / صفر المظفر / ۲۹/

**جواب:** د فك رهن انتقال نه شرعي مطلوب دی او نه هم شرعاً ممنوع دی؛ خو دومره ده چې د مرتهن او دده د وارثانو د فك رهن په نه انتقالولو كې د حرام خورۍ زياته خطره ده، ددې خطرې څخه د ځان ساتنې لپاره احتياط دا دی چې دا انتقال دې ورسره ومني (۱) وهو الموفق .

---

(۱) وفي المشكوٰة: وعن النعمان بن بشير قال قال رسول الله ﷺ: الحلال بيّن والحرام بيّن وبينهما مشتبهات، لا يعلمهن كثير من الناس فمن اتقى الشبهات استبراء لدينه وعرضه ومن وقع في الشبهات وقع في الحرام .

وفي المرقاة: قال النووي رحمه الله تعالى يحتمل وجهين : احدهما أن من يكثر تعاطى الشبهات يصادف الحرام وان لم يعمده.......... والمعنى حال من وقع في الشبهات حيث يخاف عليه أنه يقع في المحرمات كحال الراعي أي الرائع يرعى حول الحمى يوشك أن يرتع فيه.

(مرقاة المفاتيح ۶: ۳۶ باب الكسب ، الفصل الأول )

## مرتهن راهن ته ځمکه په زراعت ورکول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یو سړي بل سړي ته د اته سوه روپو (۸۰۰) قرض په بدله کې ځمکه په ګرو ورکړه، راهن خپله مرهونه ځمکه د مرتهن په خوښه کړل، په هر موسم کې به یې پیداوار مرتهن ته ورکولو، د راهن د خولې خبره ده چې ما د مجبورۍ له امله پیداوار مرتهن ته ورکولو، څو کاله وروسته چې راهن مرتهن ته خپلې اته سوه روپۍ ورسولې؛ نو ددې وروسته اوس د ځمکې پیداوار د چا حق دی؟ که د راهن حق وي؛ نو د استهلاک په وخت کې مرتهن باندې د ځمکې تاوان شته او که نه؟ مسئله راته ښه روښانه کړئ!
ایا په شریعت کې د سود نه بې زارې کېدلای شي او که نه؟ بینوا توجروا
المستفتي: حاجي صدیق خان مهتمم دار العلوم سراج العلوم، کاهی هنګو .......
۱۹۶۹م / ۲ / ۹/

**جواب:** که مرتهن د راهن سره عقد مزارعت قبل القبض کړی وي؛ نو له پیله د رهن عقد نه صحیح کېږي، عقد مزارعت بې هم فاسد دی، اګر که تخم د مرتهن له خوا وي، وفي الهندية ۵: ۴۶۲: قال محمدٌ رحمه اللهُ تعالى في كتاب الرهنِ لا يجوزُ الرهنُ الا مقبوضاً فقد أشارَ الى أنّ القبضَ شرطُ جواز الرهنِ﴿۱﴾(وفيها أيضاً ۵: ۴۶۲) و أما الثلثة الفاسدة فأحدها الخ والثاني أنْ يكونَ البذرُ من أحدهما والباقي من الآخرِ و ذلك فاسدٌ﴿۲﴾مرتهن ته ټوله برخه یا د تخم د اندازې نه بغیر ورکول ضروري دي، ﴿۳﴾که چیرې مرتهن د راهن سره عقد مزارعت د قبض وروسته کړی وي؛ نو راهن ته د قبضې ورکولو سره سم د رهن عقد ختم شو، لأنّ الاجارة حكمها ما ذكر فكذا يكونُ حكمُ المزارعة ما ذكر للشركةِ في العلة (قالَ في الهندية ۴ : ۴۳۵) كان أبو على النَسفي

﴿۱﴾(الفتاوى الهندية ۵: ۴۳۳، الفصل الأول في تفسير الرهن وركنه وشرائطه)
﴿۲﴾(الفتاوى الهندية ۵: ۲۳۸، الفصل الثاني في بيان أنواع المزارعة)
﴿۳﴾قال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالى: واذا كان (بقيه حاشيه اګلے صفحه پر)

يحكى عنْ أستاذه أنَّ المستأجرَ لو آجره من المؤاجرِ لا يصحُ ثمّ اذا كانتْ لا تصحُ عندنا ، هل يكونُ ذلك نقضاً للعقدِ الأوّلِ ، فيه اختلافُ المشائخِ والصحيحُ أنَّ العقدَ ينفسخُ، ذكره الطحاويُ كذا فى السراج الوهّاجِ،﴿۱﴾ انتهى لَم أجدِ التصريحَ فكفى هذا دلالةً و وجه الدلالـةِ فسـخُ العقـدِ فى الوجهينِ فافهمْ.

(۲) په حقوق الله كې ابراء نه صحيح كيږي، دلته د بندګانو د حقوقو پورې اړه لري او د بندګانو د حقوقو څخه ابراء صحيح ده ﴿۲﴾ فقط وهوالموفق .

## د ځمكې په كښت وركولو كې د بزګر څخه په ګرو اخيستل

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د اړتيا پرمهال د ځمكو ځيني مالكان د بزګرانو نه روپۍ اخلي، بيا دغه روپۍ د قرضې پـه نوم د ځمكې د مالك سره وي او بزګر هم پـه نيمـه باندې ځمكه كري، ايا دا جائز دي او كه نا جائز؟ بينوا توجروا

المستفتي: قاضى بشير الله عمر زئى ضلع چارسده

۱۴۰۱ هـ / صفر المظفر / ۱۲/

(بقيه حاشيه) البذر من العامل كان عليه لصاحب الأرض أجر مثل أرضه لأن العقد فى الحالتين يكون استئجارا ...... لا يطيب كل الخارج للمزارع وإنما يأخذ منه قدر بذره وقدر أجر مثل الأرض و يتصدق بالفضل الزائد.

( الفقه الإسلامى وأدلته۲:۲۹۹۸، المبحث الرابع حكم المزارعة الصحيحة والفاسدة )

﴿۱﴾( الفتاوى الهندية ۴:۴۲۵ تا ۴۲۶، الباب السابع فى إجارة المستأجر)

﴿۲﴾وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى : و بعد الاستهلاك لا يتأتى رد عينه فتعين رد المثل وهو محض حق العبد ويصح إبراء العبد عن حقه ......... أن الإبراء لا يعمل فى الربا لأن رده لحق الشرع.

(ردالمحتار۴:۱۰۹۷، باب الربا،مطلب فى الإبراء عن الربا)

**جواب:** ددې د جواز لپاره ځینې نورې بېلګې شته، لکه د ځمکې مالك چې د مستأجر نه رهن واخلي او د جامو مالك چې د خیاط څخه رهن واخلي، فلیراجع الی شرح المجلة ٣٨٧ المادة: ٧١٠، ﴿١﴾ وهو الموفق.

## امانتاً رهن اخیستل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زموږ ځینې خلك دا رواج لري، کله چې چا ته ځمکه په نیمه ورکوي؛ نو د بزګر نه څه روپۍ هم اخلي، د بېلګې په توګه په لس جریبه ځمکه باندې پنځه زره (٥٠٠٠) روپۍ د امانت په نوم له ځانه سره وړي، ددې لپاره چې بزګر ونه تښتي او د مالك روپۍ یا نور شیان له ځانه سره ونه تښتوي، کله چې بزګر تول وخت پوره کړي یا په نیمه کې بزګر کار پرېږدي؛ نو د حساب کولو پرمهال چې په چا باندې زیاتې روپۍ راشي هغه به ورکوي، ددې مسئلې شرعي حل څه دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد امتیاز د ساغي مندر پایان شبقدر ضلع چارسده او سېدونکی
١٩٩٠م / ٢ / ١٣/

**جواب:** د ارتهان دا معامله نه ده صحیح، لعدمِ صحّة الارتهانِ علی الأمانات کما فی شرحِ التنویرِ: ولا بالأمانات (هامش رد المحتارِ ٥: ٤٣٦) ﴿٢﴾ د مزارعت د عقد وړاندې او یا وروسته بیا د ارتهان عقد نه فاسدوي، واللّٰه أعلمُ بالصواب

﴿١﴾ وفی شرح المجلة: ویجوز أیضًا أخذ الرهن من المستأجر ببدل الإجارة...... ولو استأجر خیاطا لیخیط له ثوبا وأخذ من الخیاط رهنا بالخیاطة جاز.
(شرح المجلة لسلیم رستم باز ص ٣٨٧ المادة ٧١٠ الفصل الثانی فی شروط انعقاد الرهن)
(ومثله فی الفتاوی الهندیة ٥: ٣٣٥ الفصل الثالث فیما یجوز الارتهان به ومالایجوز)
﴿٢﴾ (الدر المختار ٥: ٣٥٠ کتاب الرهن: باب مایجوز ارتهانه ومالا یجوز)
وفی الأنقرویة: الرهن بالأعیان علی ثلاثة أوجه أحدها أن یکون بعین هی أمانة وهو باطل.
(فتاوی أنقرویة ٢: ٣٩٣، کتاب الرهن)

## قرض تر لاسه کول او بیا رهن نه ورکول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زید د ضرورت په اساس د عمر څخه سل روپۍ په قرض واخیستلې، عمر ورته وویل چې له ما سره څه شي ګرو کړه بیا روپۍ واخله؛ زید همداسې وکړه چې ۳۹/ تولې هنسلې «۱» یې له عمر سره کېښودلې او روپۍ یې واخیستلې، څه وخت وروسته زید عمر ته خپلې روپۍ ورکړې او د خپلو هنسلیو غوښتنه یې ترې وکړه، عمر ورته وویل چې تا راته په بیع راکړي دي، د جرګې په ذریعه پوره تحقیق وشو؛ خو د بیع ثبوت یې وړاندې نه کړ، اوس عمر ورته وايي چې زر (۱۰۰۰) روپۍ نوري راکړه او خپلې هنسلې واخله؛ که روپۍ ورنه کړل شي او هنسلې ترې لاس ته کړای شي؛ نو ددې په څه حکم وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: ............ عزیز الرحمن

**جواب:** په شرط ددې چې رښتیا او ثابت وي، د عمر په نوم سړی خیانت ګر او سود خور دی، «۲» د همدې له امله په ده باندې هم د نورو فاسقانو په څېر حکم جاري کيږي او هغه دا چې دی د وعیداتو حق دار دی «۳» وهو الموفق.

---

«۱» هنسلي د زیوراتو یو ډول دی او په غاړه کیږي (فیروز اللغات ص ۱۴۵۱)

«۲» وعن علی رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله ﷺ: کل قرض جر منفعة فهو ربا رواه الحارث بن أبی أسامة.

(بلوغ المرام عن أدلة الأحکام ص ۲۸۲ رقم الحدیث ۸۱۲)

«۳» قال الله تبارک وتعالی: يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ. (سورة البقرة آیت: ۲۷۸-۲۷۹)

وعن عبد الله بن حنظلة غسیل الملائکة رضی الله تعالی عنه قال: قال رسول الله ﷺ درهم ربا یأکله الرجل وهو یعلم أشد من ستة وثلثین زنیة.

(مشکوة المصابیح ص ۲۵۶ باب الربا)

**سپین زر (د رهن بدل) ورک شو، نو په راهن باندي کوم شی واجب دی؟**

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زید ځلوبښت کاله وړاندې بکر ته تقریباً د ۱۳/ سوه روپو سپین زر ورکړه او په بدل کې یې ترې ځمکه ګرو کړه، اوس بکر خپله ځمکه بندول غواړي او زید ته د اوسني زماني کاغذي دیارلس سوه روپۍ ورکوي، زید ورته وایي چې ما درته سپین زر درکړي ؤ، د هغه وخت سپین زر ددې وخت د کاغذي روپو دیارلس سوه سره برابر نه دي، بلکې د هغه وخت د دیارلس سوه روپو سپینو زرو په بدل کې چې اوس کوم نوټ برابر راځي هغه راته راکړه، ستاسو څخه هیله ده چې په زید او عمر کې څوک په حق او څوک ملامت دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: قاري عبد الخالق ګچبوری تحصیل بټګرام ضلع هزاره ...

۱۹۷۴م/ ۸/ ۷/

**جواب**: دا سکې غالب الفضه دي، په دې مستقرض (راهن) باندې ددې مثل یا دیارلس تولې سپین زر یا ددې اوسنی قیمت ورکول واجب دي، کما في رد المحتار في فصل القرض: والمرادُ بها دراهم غالبة الغشّ بخلاف ما كانت فضتها خالصة أو غالبة فانها أثمان خلقة فلا تبطل ثمنيتها بالكساد كما حققناهُ في أولِ البيوعِ، رد المحتارِ ۴: ۱۷۲: ﴿۱﴾ و صرحَ في البيوعِ بردِّ مثلها ۴: ۲۵ ﴿۲﴾ خو په مرتهن باندې د دې ځمکې ځلوبښت کاله مزدوري ورکول

---

﴿۱﴾ (رد المحتار ۴: ۱۹۲، فصل القرض)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: اعلم أنه إذا اشترى بالدراهم التي غلب غشها أو بالفلوس ولم يسلمها للبائع ثم كسدت والانقطاع عن أيدي الناس كالكساد، ويجب على المشتري رد المبيع لو قائما و مثله أو قيمته لو هالكا...... قال أبو الحسن لم تختلف الرواية عن أبي حنيفة في قرض الفلوس إذا كسدت أن عليه مثلها.

(رد المحتار ص ۲۶-۲۷ مطلب مهم في احكام النقود إذا كسدت أو انقطعت)

ضروري دي، لما في الخانية : رجلٌ استقرضَ انما أسكنه في داره عوضاً عـنْ منفعة القرضِ لا مجاناً ، و كذا لو أخذ المقرض من المستقرض حماراً ليستعمله الى أنْ يرده عليهِ الدراهم بحواله رد المحتارِ ٥: ٥٣:﴿١﴾ فافهم ،وهوالموفق.

**که د رهن بدل بې ځایه شي؛ نو د بې ځایه کېدو د ورځې قیمت به معتبر وي**

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د پاکستان د ازادی وراندې په باجوړ ایجنسی کې افغانی کرنسی د قِراني په نوم چلېدلې. د پاکستان نه مخکې به خلکو په افغانیو روپو د یو بل سره ځمکې ګرو کولې، اوس هغه قِراني روپۍ نشته، د رهن پرمهال قِراني روپۍ د پاکستانیو روپو دوه برابره وې، اوس د قِراني قیمت د ۶۰/ پاکستانیو څخه هم ډېر دی.

اوس د ځمکې مالکان دا کوشش کوي چې خپله ځمکه راخلاصه کړي او د روپو مالکان دا کوشش کوي:

چې دوی ته دي مخکینی قِراني روپۍ ورکول شي، ایا په راهن باندې پخوانی افغانی قِراني روپۍ د رهن د ورځې معتبر دي- که د انقطاع د ورځې قیمت او که اوسنی قیمت به معتبر وي؟ په داسې حال کې چې د څو کالو راهیسې مرتهن د ګرو شوي ځمکې څخه ګټه هم اخیستلې ده، که مرتهن خامخا قِراني روپۍ غواړي؛ نو راهن د خپلې ځمکې پیداوار غواړي؛ نو اخیر ددې دواړو مسئلو شرعي حل به څه وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي محمد ایوب، جار کالوني باجوړ ایجنسي

۱۴۰۹ هـ / رمضان/ ۹/

**جواب:** په یاد صورت کې به راهن مرتهن ته د ګرو شوي ځمکې د ،کوم بدل ؤ هغه به پوره ورکوي، والظاهرُ أنّ المعتبرَ قيمته يوم الانقطاعِ كما هو قـول محمد رحمه الله لعدم القضاء و لعدم الغصب ههنا﴿٢﴾

﴿١﴾(رد المحتار ٥: ٢٤٣ قبيل باب ضمان الأجير)

﴿٢﴾وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ: و يجب على المستقرض (ردُ) مثل (أفلس القرض إذا كسدت و اوجب محمد قيمتها يوم الكساد وعليه الفتوىٰ.

(الدر المختار ٣: ٢٧٠ باب الصرف)

په مرتهن باندې ضروري ده چې د رهن د وخت مزدوري راهن ته ورکړي، كما يدلُ عليه ما في رد المحتارِ ۶: ۶۳: قبيلَ باب ضمان الأجيرِ: رجلٌ استقرضَ دراهمَ و أسكنَ المقرضَ في داره قالوا يجب أجر المثل على المقرض لأنَّ المستقرضَ انما أسكنه في داره عوضاً عنْ منفعة القرضِ لا مجاناً فافهمْ«۱»وهو الموفق.

## د راهن په مړينې د قرض د ادا کولو لپاره رهن شوې ځمکه خرڅول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيانددې مسئلې په اړه څه وايي چې د زيد ځمکه د قرضې په بدل کې ګرو وه، زيد خپله قرضه ادا نه کړه او هغه وفات شو، ايا ددې قرض د ادا کولو لپاره ګرو شوې ځمکه خرڅول جائز دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي نصر الله زيارت سمندر، تحصيل ضلع لورالائی بلوچستان

۱۴۰۹ هـ / رمضان/ ۹/

**جواب:** جازَ بيع المرهَنِ بأمر الحاكمِ «۲»وكذا جاز بيع الوصى و من قامَ بمقامه من أهلِ المحلة أوْ أخِ الأكبرِ«۳» كما في آداب الأوصياء على هامشِ جامعِ الفصولينِ ۲: ۱۲۴: و ليسَ له بيعُ العقارِ الا لزيادةِ الثمنِ أوْ لضرورةِ الدينِ الخ. وهو الموفق

«۱»(رد المحتار ۵: ۴۴ قبيل باب ضمان الأجير)

«۲»وفي البزازية: وفي العتبة للمرتهن بيع الرهن بإجازة الحاكم وأخذ دينه إذا كان الراهن غائبا لا يعرف موته ولا حياته.

(بزازية على هامش الهندية ۲: ۷۴ كتاب الرهن، نوع في تصرفهما فيه)

«۳»قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: (مات الراهن باع وصيه رهنه بإذن مرتهنه وقضى دينه) لقيامه مقامه (فإن لم يكن له وصى نصب القاضي له وصيا...... هذا لو ورثته صغارًا فلو كبارا خلفوا الميت في المال فكان عليهم تخليصه.

(الدر المختار ۵: ۳۶۹ كتاب الرهن، قبيل فصل في مسائل متفرقة)

## د مرهونه ځمکې په پیداوار کې به عشر مرتهن ورکوي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د مرهونه ځمکې په پیداوار کې د عشر په ویستلو د راهن ذمه فارغیږي او که نه؟ غریب یې استعمالولای شي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: تاج محمود حسن ابدال کیملپور

**جواب:** په راهن باندې عشر نشته، بلکې مرتهن به عشر اداکوي، وقالا علی المستأجرِ کمستعیرٍ مسلمٍ ﴿۱﴾ مرتهن په کنبت او ګټې اخیستلو کې مستعیر دی او بې اجازې ګټه اخیستلو کې (په شرط ددې چې ثابت وي) غاصب دی. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د مرهونې څخه ګټه اخیستل او د مرتهن په امدن کې د خیرات او صدقو حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې (۱) د مرهونې څخه د ګټې اخیستلو والا راهن وي او که مرتهن څه حکم لري؟ ایا د دوی سره اړیکه ساتل پکار دي او که نه؟

(۲) د راهن په امدن او مرتهن په نغدو روپو کې صدقه او خیرات کول روا دي او که ناروا؟ بینوا توجروا

المستفتي: تاج محمود حسن أبدال کیملپور

**جواب:** (۱) مرتهن که په ناجائزه توګه د مرهونې څخه ګټه اخلي هغه فاسق دی، ﴿۳﴾.

(۲) جائز دی، وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ (الدر المختار ۱: ۱۰۶ باب العشر)

﴿۲﴾ قال العلامة سليم رستم باز: ليس للمرتهن الانتفاع بالرهن بدون إذن الراهن وإن فعل وهلك الرهن حالة استعماله ضمنه ضمان الغصب...... ولكن للمرتهن استعمال الرهن وأخذ ثمره ولبنه إذا أذنه الراهن ...... لأنه لما أباح له السكنى أخذ حكم العارية.

(شرح المجلة ۳۱۵-۳۱۶، المادة: ۷۵۰ الفصل الثاني في تصرف الراهن والمرتهن في الرهن)

﴿۳﴾ قال العلامة وهبة الزحيلي: إن شرط الانتفاع...... (بقيه حاشيه اگلے صفحه پر)

**تر څو چې بيع په دليل سره ثابته نه وي مرتهن د مرهونې مالک نه شي جوړېدای**

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د طاهر پلار د بارک خان سره خپله څه ځمکه په ګرو اېښې وه، د طاهر خان پلار د ځينو خبرو له امله بارک خان ته روپۍ نه ورکولې، چې په ديکښې شپېته اويا کاله تېر شوه، اوس طاهر دعوه کوي چې ګرو شوې ځمکه زما ملکيت دی، ايا طاهر د ګرو ځمکې مالک جوړېدای شي؟ اوس بارک خان د طاهر څخه د خپلو روپو غوښتنه کولای شي او که نه؟ اوس هم يو شاهد ژوندی دی چې وايي: په دغه قيمت باندې د طاهر پلار ځمکه په بارک باندې خرڅه کړې وه، په دې اړه شرعي حکم څه دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولانا محمد صفدر فاضل جامعه دار العلوم حقانيه، پير سباق ضلع نوشهره

**جواب:** ددې حديث لا يغلق الرهنُ الرهنَ په اساس مرتهن ددې مرهونې مالک نه جوړېږي؛ ﴿۱﴾خو که په دليل يا شرعي شهادت سره دا ثابته کړي چې راهن دا مرهونه مرتهن ته د هغو روپو په بدل کې پرې اېښې وه بيا يې مرتهن مالک جوړېدای شي، ﴿۲﴾ که ثابته يې نه کړي؛ نو خپلې روپۍ به اخلي او طاهر ته به ځمکه

(بقيه حاشيه) على الراهن فى العقد فهو حرام لأنه ربا ...... وكل قرض جر نفعًا مشروطًا أو متعارفًا فهو عند الحنفية ربا، وقد صرح ابن نجيم فى الأشباه: أنه يكره (تحريما) للمرتهن الانتفاع بالرهن. (الفقه الإسلامى وأدلته ۲ : ۴۲۹۰ كتاب الرهن، انتفاع المرتهن بالرهن)

وقال العلامة ابن عابدين: (وفاسق) من الفسق وهو الخروج عن الاستقامة ولعل المراد به من يرتكب الكبائر. (رد المحتار ۱ : ۴۱۴ قبيل مطلب البدعة خمسة اقسام)

﴿۱﴾ عن سعيد ابن المسيب أن رسول الله ﷺ قال لا يغلق الرهنُ الرهنَ من صاحبه الذى رهنه له غُنمه وعليه غُرمه. (مشكوة المصابيح ص ۲۵۰ باب السلم والرهن)

﴿۲﴾وفى الهندية: فإن صحت الدعوى سأل المدعى عليه عنها فإن أقر أو أنكر فبرهن المدعى قضى عليه. (فتاوى هندية ۴ : ۱۳، كتاب الدعوى، الباب الثالث فى اليمين)

ورکوي.﴿۱﴾ وهو الموفق

## د بيع الوفاء په صورت کې هم د مرهونې نه ګټه اخيستل ناروا دي

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې زيد د عمر څخه د روپو په بدل کې څه ځمکه په دې شرط ګرو کړې ده چې د دې ګټه به زما وي، ايا د مرتهن لپاره د دې ګټه اخيستل روا دي او که نه؟ که د عقد کولو پرمهال دا شرط ونه لګوي، بلکې د عامو خلکو د رواج سره سم چې د دليل قطعي مثال لري، د دې نه بغير مرتهن و راهن ته قرض روپۍ نه ورکوي، دا صورت روا دی او که ناروا؟ ځينې سپين لباسي وايي: چې دا معامله روا ده او دې ته بيع الوفاء ويل کيږي، بيع الوفاء روا ده، اوس تاسو مهرباني وکړئ د بيع الوفاء تعريف راته وکړئ او حکم يې بيان کړئ، که په دې صورتونو کې د مرتهن لپاره ګټه اخيستل روا نه وي؛ نو دا سود دی که هسې ګناه ده؟ که سود وي؛ نو ليکونکی، شاهد او سود کوونکي به ګناهګاره وي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: ولي محمد صاحب فاضل جامعه دار العلوم حقانيه مقام ترخېل بنو

۱۳۹۴ هـ / شعبان / ۲۸/

**جواب:** د مرتهن لپاره د مرهونې څخه ګټه اخيستل نا روا دي، مشهوره طريقه وي او که مشروطه، كما فى الهندية ۳: ۲۶۴: قال محمدٌ رحمه الله تعالى فى كتاب الصرف، انَّ أبا حنيفةَ رحمه الله كان يكره كل قرض جرَّ منفعة قال الكرخي هذا اذا كانت المنفعة مشروطةً فى العقد﴿۲﴾ وفى رد المحتار ۵: ۳۲۰: قال الطحاوى: قلتُ والغالبُ من أحوال الناس أنهم يريدون عندَ الدفعِ الانتفاعَ، ولو لاه لما أعطاه الدراهمَ، وهذا بمنزلة الشرط لأنَّ المعروفَ كالمشروطِ﴿۳﴾ بيع الوفاء د محققينو په نزد په رهن کې شامله ده،

﴿۱﴾ وفى شرح المجلة: من أخذ من مديونه رهنا فله أن يمسك الرهن إلى أن يستوفى جميع ماله من الدين بذمتها، فلو أدّى أحدهما ما عليه لم يكن له أن يقبض من الرهن شيئا.
(شرح المجلة ۳: ۱۸۳ المادة: ۷۳۰ الباب الرابع فى بيان أحكام الرهن)

﴿۲﴾ (فتاوى هندية ۳: ۲۰۲، الباب التاسع عشر فى القرض والاستقراض)

﴿۳﴾ (رد المحتار ۵: ۳۴۳ كتاب الرهن)

وصورته أنْ يبيعه العين بألف على أنه اذا ردَّ عليه الثمن ردَّ عليـه العين ، (الدر المختار ) قيلَ هو رهنٌ ، قال العلامة الشامی قدمنا آنفاً عن جواهر الفتاوى أنّه الصحيح ، (رد المحتار ٤: ٢٥٧ )﴿١﴾د حکم په اړه يې تفصيل راروان دی چې سود په اجماع د امت سره په دليل قطعي او يقيني سره حرام دی، د مرهونې څخه ګټه اخيستل ظني حرام او اختلافي دي، ددې له امله داګټه اخيستل مکروه تحريمي دي، کماصرَّحَ به فی رهن ردالمحتار﴿٢﴾ د بيع الوفاء په صورت کې ددې نه هم زياته اساني ده، لكونِ الأوّلِ اختلافاً بينَ العلماءِ و هذا اختلاف بين العلماءِ . وهو الموفق

## د مرتهن لپاره د مرهونه ځمکې څخه ګټه اخيستل

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې کوم پيداوار د مرهونه ځمکې څخه تر لاسه شي، د مرتهن لپاره د هغې استعمال څنګه دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: تاج محمود حسن ابدال کيملپور

**جواب:** روا دی خو ملك يې خبيث دی، د همدې له امله د تخم نه بغير نور پيداوارا صدقه کول غوره دي،﴿٣﴾ وهو الموفق

---

﴿١﴾(رد المحتار ٤: ٢٧٤ كتاب البيوع ،باب الصرف ،مطلب فی بيع الوفاء)

﴿٢﴾وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وما نقله الشارح عن الجواهر ايضًا من قوله لا يضمن يفيد أنه ليس بربا، لأن الربا مضمون فيحمل على غير المشروط، وما فی الأشباه من الكراهة على المشروط، ويؤيده قول الشارح الآتي آخر الرهن إن التعليل بانه ربا يفيد أن الكراهة تحريمية .(رد المحتار ٥: ٣٤٢ كتاب الرهن)

﴿٣﴾وفی شرح المجلة: ومنافع الغصب غير مضمونة إلا إذا كانت متولدة او بدلا عن جزء من اجزاء المغصوب كما صرحوا بذلك فی كتاب الغصب......(بقيه حاشيه اگلے صفحه پر)

## د ټاکلي مودې رهن حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایې چې د خاصې مودې لپاره رهن څنګه دی؟ که تر دوه یا درې کالو پورې یې رهن وکړ او مرتهن د راهن د مال نه ګټه واخیستل بیا به یې څه حکم وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: د اسلامیه مدرسې د کارکوونکو له خوا مدینة العلوم لورالائی بلوچستان ۱۹۷۷م / ۳۰/ ۱۰/

**جواب:** په شریعت کې د ټاکلي مودې لپاره رهن نشته، څه وخت چې راهن وغواړي د مرتهن روپۍ دي ورکړي بس هغه وخت د رهن معامله ختمولای شي او مرتهن به د څمکې اجر مثل ورکوي او یا به استبراء کوي، ﴿۱﴾ یدل علیه ما فی رد المحتار ۵: ۵۳: وهو الموفق.

---

(بقیه حاشیه) وعن هذا ما أفتی به فی الخیریة لو سکن المرتهن دار الرهن أنه لا تلزمه اجرة مطلقا إذن الراهن أو لا، معدة للاستغلال أو لا، حتی لو آجر المرتهن کانت الأجرة له لأنه العاقد لکنها لا تطیب له وسبیلها التصدق.

(شرح المجلة ۳: ۱۹۳، المادة: ۷۵۰، الفصل الثانی فی تصرف الراهن والمرتهن فی الرهن)

وفی الهندیة: وإن کانت الإجارة بغیر إذن الراهن یکون الأجر للمرتهن یتصدق به.

(فتاوی هندیة ۵: ۴۶۴، الباب الثامن فی تصرف الراهن أو المرتهن فی المرهون)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: وفی الخانیة رجل استقرض دراهم وأسکن المقرض فی داره، قالوا یجب اجر المثل علی المقرض لأن المستقرض إنما أسکنه فی داره عوضا عن منفعة القرض لا مجانا. (رد المحتار ۵: ۳۳ مطلب أسکن المقرض فی داره یجب أجر المثل: کتاب الإجارة)

﴿۲﴾ وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: وبعد الاستهلاک لا یتأتی رد عینه فتعین رد المثل وهو محض حق العبد ویصح ابراء العبد عن حقه.

(رد المحتار ۴: ۱۹۷ باب الربا، مطلب فی الإبراء عن الربا)

## د حکومتي قانون سره سم د ټاکلي مودې وروسته مرهونه د مرتهن ملک ګرځول او د رهن نه د ګټې اخیستلو د جواز صورت

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې (۱) د پاکستان حکومت اوسنی قانون دا دی چې مرهونه څمکه د ټاکلي مودې وروسته د مرتهن ملک ګرځوي، د حکومت په داسې کارکولو سره ایا شرعاً مرتهن د مرهونې مالک ګرځي او که نه؟ او ایا مرتهن ددې وروسته د مرهونې څخه ګټه اخیستلای شي او که نه؟

(۲) ستاسو په نزد د حکومت ددې کار له امله د مرهونې سره باید څه وکړل شي؟ ایا د راهن او مرتهن دواړو لپاره یو شان ګټه اخیستل ناروا دي؟ او په دوی کې د یوه لپاره هم د جواز صورت نشته؟ بینوا توجروا

المستفتي: .............. بنده سیف الله بنوي د دار العلوم حقانیه زده کوونکی

**جواب:** ددې قانون نه زه خبر نه یم، په شرط ددې که رښتیا وي؛ نو مرتهن نه ددې مرهونې مالک جوړېدای شي او نه هم دده لپاره ترې ګټه اخیستل روا دي، قال رسول الله صلی الله علیه وسلمَ:لایغلقُ الرهنُ الرهنَ من صاحبه الذی رهنه﴿۱﴾ (رواه الشافعی ) قال رسول الله صلی الله علیه وسلمَ ألا لا تظلموا ، ألا لا یحلُّ مال امرئ الا بطیبِ نفسٍ منه﴿۲﴾رواه البیهقی فی شعب الایمان .

(۲) بغیر له اجازې د دواړو لپاره د مرهونې نه ګټه اخیستل ناروا دي، د اجازت وروسته د دواړو لپاره ترې ګټه اخیستل روا دي، په شرط ددې چې دا ګټه اخیستل مشروط نه وي، که معروفه وي (کما فی زماننا )نو بیا هم ناروا ده، فی الدرالمختار:لاانتفاعَ به مطلقاً لاباستخدامٍ ولاسکنی ولالبس و لا اجارة و لا اعارة

﴿۱﴾(مشکوة المصابیح ۲۵۰باب السلم والرهن)

﴿۲﴾(مشکوة المصابیح ۲۵۵ باب الغصب والعاریه)

سواءٌ كانَ من مرتهنٍ أوْ راهنٍ الا باذن كلٍّ للآخر ، وقيلَ انهم يريدونَ عند الدفعِ الانتفاعَ ولو لاه لما أعطاه الدراهمَ و هذا بمنزلةِ الشرطِ لأنَّ المعروفَ كالمشروطِ وهو مما يعين المنعَ ﴿١﴾ وهو الموفق .

## د مرتهن سره رهن شوی دکان په کرایه ورکول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اړه څه وایي چې زید د بکر سره خپل دکان ګرو (رهن) کړ، بکر دریم سړي ته دا دکان په کرایه ورکړ او اوس هغه کرایه دی په خپل ذاتي استعمال کې راولي، ایا د ده لپاره شرعاً د دې کرایه اخیستل جواز لري او که نه؟

(۲) اوس زید ورته وایي چې د یادې کرایې څخه زما روپۍ کمې کړه؛ خو بکر د دې خبرې منلو ته هیڅکله تیار نه دی او وایي چې دا کرایه ماته زما د روپو په بدل کې د دکان څخه وصول شوي دي، ایا د بکر دا فکر صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: ............ پهلوان غلام محمد ګجرانواله ... ۱۳۹۵ هـ / صفر / ۱۷/

**جواب:** د زید د اجازې بغیر د بکر لپاره د دې دکان نه هیڅ ډول ګټه اخیستل روا نه دي، داسې هم جائز دي چې بکر یې په خپلو روپو کې زید ته شمار کړي بیا برابره خبره ده چې زید یې خپله استعمالوي او که بل ته یې په کرایه ورکوي، أما الأولُ فلما ثبتَ أنَّ كلَّ قرضٍ جرَّ نفعاً فهو رباً ﴿٢﴾ و أما الثانی فلما فی رد المحتارِ ٥: ٥٣: و فی الخانيةِ رجلٌ استقرضَ دراهمَ و أسكنَ المقرض فی داره،قالوا يجبُ أجرُ المثلِ على المقرضِ لأنَّ المستقرضَ انماأسكنه فی

﴿١﴾ الدر المختار مع رد المحتار ٥: ٣٢٢-٣٢٣ كتاب الرهن)

﴿٢﴾ عن علی رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله ﷺ ......(بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

داره عوضاً عنْ منفعةِ القرضِ لا مجاناً و كذا لو أخذ المقرض من المستقرضِ حماراً ليستعمله الى أنْ يردَّ عليه الدراهمَ«۱»انتهى ، وفيه أيضاً (۵: ۴۵۲) و أما الاجارةُ فالمستأجر انْ كانَ هُوالراهنُ (الى أنْ قال ) أوْ أجنبيـــاً بمباشـــرةِ أحدهما العقد باذنِ الآخرِ بطلَ الرهن والأجرةُ للراهنِ«۲»وهوالموفق .

## د رهن ځمکه ترلاسه شوې ګټه او د مشهور قیمت په حساب يې قرض کې مجرا کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اره څه وايي چې زيد د بکر ځمکه ځمکه ګرو کړه، په ځمکه کې بې د تصرف وروسته مشهور قيمت حساب کړې. د روپو د يوره کېدو وروسته يې ځمکه واپس کړه چې خپلې روپۍ مې په دې ګټې کې حساب کړې؛ نو په شريعت کې ددې څه حکم دی؟ بينوا توجروا

المستفتي...... محمد اعظم کريانه مرچنټ ، بيرون کوهاټي ګيټ پشاور ...
۱۹۷۰ م/ ۹/ ۱۲/

**جواب:** هذه الحيلةُ لمْ أرها ولا أجوزها لأنَّ منافعَ المغصوبِ غيرُ مضــمونةٍ فكيفَ منافع المرهونةِ معَ أنَّ الحرمة لحقِّ الله تعالى«۳» وهوالموفق .

---

(بقيه حاشيه) كل قرض جرَّ منفعة فهو ربا رواه الحارث بن أبي اسامة وإسناده ساقط، وله شاهد ضعيف عن فضالة بن عبيد عند البيهقي وآخر موقوف عن عبد الله بن سلام عند البخارى. (بلوغ المرام عن أدلة الاحكام ص ۲۸۲ رقم الحديث : ۸۱۲)

«۱»(رد المحتار ۵: ۲۴۳ قبيل باب ضمان الأجير)

«۲»(رد المحتار ۵: ۳۶۳ باب التصرف في الرهن والجناية عليه)

«۳»في شرح المجلة: لأن الرهن في تلك الحالة في يده مغصوب، ومنافع الغصب غير مضمونة إلا إذا كانت متولدة أو بدلا عن جزء من أجزاء المغصوب كما صرحوا بذلك في كتاب الغصب وعن هذا أفتى في الخيرية فيما لو سكن المرتهن دار الرهن انه لا تلزمه أجرة مطلقا إذن الراهن أو لا معدة للاستغلال أو لا .( شرح المجلة ۳: ۱۹۳، المادة : ۷۵۰ الفصل الثاني في تصرف الراهن والمرتهن)

## په مرهونه ځمکه باندې د قیمت نه زیات مصرف کول او د هغې ګټه ترلاسه کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زید د دوه زره (۲۰۰۰) روپو په بدل کې د بکر څخه ورانه ځمکه واخیستل، زید دغه ځمکه اباده کړه او ګټه یې ترې واخیستل، ایا د داسې رهن شوي ځمکې څخه ګټه اخیستل روا دي او که ناروا؟ مرتهن چې کومه ځمکه اباده کړې، ایا ددې ګټې خوړلو لپاره کومه حیله کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: ......... محمد اعظم کریانه مرچنټ، بیرون کوهاټي ګیټ پشاور ... ۱۹۷۰ م / ۹/ ۱۲/

**جواب:** لو انتفعَ من الأرضِ قدر ما زادَ من قيمة الأرضِ بعمارته فلمْ أرَ منْ أنكرَ عليه و يؤيده ما في كتب الأموالِ ۲۸۹: أنَّ عمرَ بنَ عبد العزيزِ كانَ يقضي في الرجلِ اذا أخذ الأرضَ فعمرها و أصلحها ثمَّ جاءَ صاحبها يطلبها أنه يقولُ لصاحبِ الأرضِ ادفعْ الى هذا ما أصلحَ فيها فانما عملَ لكَ فانْ قال لا أقدرُ على ذلك قالَ للآخرِ ادفعْ اليه ثمنَ أرضه ﴿۱﴾ انتهى وهو الموفق.

## مرتهن د راهن څخه د ځمکې قابل د کرلو جوړولو خرچه اخیستل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې خان زمان ۲۵۰/ کناله ځمکه د ۳۶۲ روپو په بدل کې په کال ۱۹۴۸ م کې ګرو کړې ده، اوس یو کال وروسته کال ۱۹۴۹ کې د رهن تاکلې موده او روپۍ دواړه ویوځېدلې، راهن خپله ګرو کړې ځمکه غواړي؛ خو مرتهن وربانديې د ترقی حیثیت دعوه کړې ده او وایي چې ماته مې خپلې روپۍ راکړه؛ غرض دا چې په اسلامي قانون کې مرتهن د ترقئ حیثیت کېدو د خرچې

﴿۱﴾ (كتاب الأموال للقاسم بن سلام ۱: ۳۶۷ رقم: ۷۱۲ باب احياء الأرضين، دارالفكر بيروت) و (كتاب الأموال لابن زنجويه ۲: ۶۳۲ رقم: ۱۰۶۷، باب إحياء الأرض و احيازها)

حق دار دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: ........... مظفر خان ولد خان زمان فضل آباد مردان

۱۳۹۹ هـ / رمضان / ۱۷/

**جواب:** که د ترقۍ حیثیت نه مراد دا وي چې ځمکه يې د کرلو قابله ګرځولې وي؛ نو مرتهن ددې خرچې د غوښتلو حق لري، ﴿۱﴾او که ددې نه مراد بل څه وي؛ نو مهرباني وکړئ وضاحت يې راولیږئ! وهو الموفق .

## د پنځوسو کالو راهيسې تر لاس لاندې ځمکه باندې د رهن دعوه کول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د مدعی علیه سره د پنځوسو کالو راهيسې د پلار او نیکه نه يوه ځمکه ورپاتې وه، دومره وخت وروسته اوس يو سړی رایورته شوی او دعوه يې کړې چې دا زموږ ځمکه ده ستا د پلار او نیکه سره موږ رهن ایښې وه، مدعي ورته وایي چې دا ځمکه ستا پلار او نیکه زما په پلار او نیکه باندې په دولس سوه روپۍ خرڅه کړې وه، قاضي د مدعی علیه څخه د شاهدانو د وړاندې کولو غوښتنه وکړه، هغه ورته خپل شاهدان وړاندې کړه، قاضي د مدعی علیه په حق باندې فیصله وکړه، څو ورځې وروسته قاضي وویل چې زه په خپله فیصله کې غلط شوی یم، اوس ستاسو څخه هیله ده تر څو موږ د شرعي مسئلې نه خبر کړئ! بینوا توجروا

المستفتي: ........... مولوي حکم زمان ..... ۱۴۰۴ هـ / ربیع الأول / ۱۷/

﴿۱﴾في كتاب الأموال :أن عمر بن عبد العزيز كان يقضي في الرجل إذا أخذ الأرض فعمرها واصلحها ثم جاء صاحبها يطلبها أنه يقول لصاحب الأرض ادفع إلى هذا ما اصلح فيها فإنما عمل لك فإن قال لا أقدر على ذلك قال للآخر ادفع إليه ثمن أرضه.

(كتاب الأموال للقاسم بن سلام رحمه الله تعالى ۱:۳۶۷،رقم : ۷۱۲ باب إحياء الأرضين ،دار الفكر بيروت)

و (كتاب الأموال لابن زنجويه ۲:۲۴۶ رقم :۱۰۶۷ ،باب إحياء الأرض و إحيازها)

**جواب**: په ظاهره ددې مدعي دعوه د زائد الميعاد (ډېر وخت وروسته) له امله د اورېدو وړ نه ده، ﴿۱﴾ ددې له امله چې قاضي د داسې دعوې د اورېدلو نه منع دی، همدارازحکَم (فيصله کوونکی) هم د داسې خطرناکې مسئلې د حل کولو نه منع دی، ﴿۲﴾ دغه راز کله چې مدعی عليه دا ځمکه د خپل نيکه ملکيت مني؛ نو د نورو ترونو د موجودوالي په حالت کې په ټولو مدعی عليهم باندې دده دعوه څنګه شي؟ والله أعلمُ بالصوابِ.

---

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدين: إذا ترک الدعوى ثلاثًاوثلاثين سنة ،ولم يكن مانع من الدعوى ثم ادّعى لاتسمع دعواه لأن ترک الدعوى مع التمكن يدل على عدم الحق ظاهرًا.
(ردالمحتار: ۴: ۳۸۲ كتاب القضاء ،مطلب إذا ترک الدعوى ثلاثاوثلاثين سنة الخ)

﴿۲﴾وقال العلامة ابن عابدين :إن عدم سماع الدعوى بعد هذه المدة إنما هو للنهى عنه من السلطان فيكون القاضي معزولًا عن سماعها ......وسبب النهى قطع الحيل والتزوير.
(ردالمحتار ۴: ۳۸۱ كتاب القضاء ،مطلب هل يبقى النهى بعد موت السلطان)

# كتاب القسمة

قال الله تبارک وتعالیٰ

وَنَبِّئْهُمْ اَنَّ الْمَآءَ قِسْمَةٌ بَيْنَهُمْ.

(سورة القمر)

# كتاب القسمة

قال الله تعالى: وَنَبِّئْهُمْ أَنَّ الْمَاءَ قِسْمَةٌ بَيْنَهُمْ (سورة القمر)

## د شاملاتو د تقسيم طريقه

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د شاملاتو د تقسيمولو طريقه څه ده؟ بينوا توجروا

المستفتي .......... نامعلوم ..... ۱۴۰۳ هـ / ذی القعده / ۱۷/

**جواب:** كه شاملات د شريكې بې تقسيمه ځمكې نوم وي؛ نو ددې د تقسيم طريقه د نورو شريكو ځمكو د تقسيم څخه بېله نه ده. هغه دا چې خپل شريكان او د هغوى برخې بايد لومړى معلومې شي او د هغې په تناسب دې شاملات تقسيم شي، لأنَّ القسمةَ تعين الحصةِ الشائعةِ يعنى احراز الحصصِ بعضها من بعضٍ كما فى شرح المجلة ۶۱۸﴿۱﴾و فيها أيضاً : ينبغى للقسامِ اذا أرادَ قسمة دار أنْ يصورها على قرطاسٍ و يمسح بالذراعِ عرصتها ويقومَ أبنيتها ويعادلَ بين الحصص بحسبِ أنصباء أصحابها الخ ۲۳۶﴿۲﴾.

كه اصلي برخې معلومول نا ممكن وي؛ نو په استصحاب الحال باندې دې عمل وكړې، يدلُّ عليهِ ما فى شرحِ المجلة ۲۰ الأصلُ بقاء ما كانَ على ما كانَ و يقالُ لذلك الاستصحابُ وهو الحكم بقاء أمر محقق لَمْ يظنَّ عدمه وهو على نوعينِ ... الثانى اتخاذ الحالِ الحاضرِ دليلاً على ماكانَ عليه الشيئ فى الزمن السابق﴿۳﴾وهو الموفق .

﴿۱﴾(شرح المجلة ۶۱۸، المادة ۱۱۱۴، الباب الثانى فى القسمة)

﴿۲﴾(شرح المجلة ۲۳۶، المادة ۱۱۵۱، الفصل الخامس فى كيفية القسمة)

﴿۳﴾(شرح المجلة ۲۰، المادة ۵)

## د یو شریک په غوښتنه به تقسیم کوي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې مونږ درې ورونه او یوه خور یو، مونږ څلور واړه په شریکه د پلار په میراث کې یو جوړ کور لرو، اوس زمونږ خور په زوره زمونږ نه تقسیم غواړي او مونږ یو ورور هم ورباندې خوښ نه یو، ایا په شریعت کې زمونږ خور ته دا حق شته چې دا یوازې د تقسیم غوښتنه وکړي؟ بینوا توجروا

المستفتي: بسك استاذ چار باغ صوابی ..... ۱۳۸۹ هـ / رجب المرجب / ۱۷/

**جواب:** دا چې د تقسیم سبب موجود دی؛ نو خامخا به تقسیم ورته کیږي، که خامخا ورونه ددې جوړ کور نه ګټه اخلي؛ نو په حرامو کې د مبتلا کېدو خطره ده، (في الهندية ۵: ۳۲۷) و أمّا سببها فطلب الشركاء أوْ بعضهم الانتفاع بملكه على وجه المخصوص﴿۱﴾ كذا في التبيين وبمعناه في الدرالمختار﴿۲﴾ وهوالموفق .

## په شریکي ځمکه کې د تقسیم نه وړاندې تصرف کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یو سړي په میراث کې ځمکه پرېښوده، د هغه سړي یوه لور ده او وایي چې که په میراث کې زما حق وي؛ نو د یوې ګوتې په اندازه بې هم خپلو ورونو ته نه بخښم، اوس که ددې سړي وارثان د خپلې خور خبرې ته اعتبار ورنه کړي او ځمکه هدیرې ته وقف کړي؛ نو په داسې ځمکه کې د مړو ښخول څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: .......... عبد الستار دوړ شمالي وزیرستان ..... ۱۴۰۲ هـ / رجب المرجب / ۲/

﴿۱﴾(فتاوی هندية ۵: ۲۰۴، كتاب القسمة )

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: و سببها طلب الشركاء او بعضهم الانتفاع بملكه على وجه الخصوص فلو لم يوجد طلبهم لا تصح.

(الدر المختار ۵: ۱۶۸، كتاب القسمة )

**جواب:** په شریکې ځمکه کې داسې تصرفات کول منع دي، (شرح المجلة) ﴿۱﴾

وهوالموفق .

## د مصلحت په تقسیم کې د دواړو طرفونو خوشحالي ضروري ده

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې:

(۱) د حبیب الله او کلیم د مور او پلار چې کوم کور دی، په یوې کوټې، یوې برنډې او یوې حویلی (سرای) باندې مشتمل دی، ددې کور نیمه برخه حبیب الله ته ورکوو او نیمه کلیم الله ته، د پلار د علاج په باره کې مو د دواړو دعوې لرې کړې دي.

(۲) د کلیم الله د جنوب دېوال خواته چې کومه خالي ځمکه ده، د حبیب الله له خولې چې دا مې د خپل زوی نثار احمد د کور لپاره خاص کړې ده، زه دا ځای په خوښه کلیم الله ته ورکوم او د کلیم الله دعوې ته د ځمکې په باره کې اعتبار نشته.

اوس د شریعت له مخې تاسو فیصله وکړئ چې زما دعوه چې د صلحې له امله ساقطه شوې ده، ایا د دې اعتبار شته نو دي چې شرعي او قطعي

﴿۱﴾و فی شرح المجلة :لیس لأحدهم التصرف فی المال المشترک بلا إذن الباقین لأن الشرکة لا تتضمن الوکالة فکان کل واحد منهم أجنبیا فی حصة غیره.

(شرح المجلة ۳: ۱۱ ،المادة ۱۰۲۹ ،الفصل الثانی فی بیان کیفیة صاحب الملک)

وقال العلامة المرغینانی رحمه الله تعالی: فشرکة الأملاک العین یرثها رجلان و یشتریانها فلا یجوز لأحدهما أن یتصرف فی نصیب الآخر إلا بإذنه و کل واحد منهما فی نصیب صاحبه کالأجنبی.

(الهدایة ۳: ۶۲۳ ،کتاب الشرکة)

فیصله نه وي شوې؟ بینوا توجروا

المستفتي: ........ بسك استاذ چارباغ صوابی .... ۱۳۸۹ هـ / رجب المرجب / ۱۷/

**جواب** که د حبیب الله نور وارثان نه وي او خپله په دې فیصلې باندې راضي وي؛ نو دا فیصله به د دوارو په خوښه او رضا نافذه وي، که نه نو له سره به فیصله کوي ﴿۱﴾ وهو الموفق .

## تر ډېره وخته پورې د ویجاړې ځمکې د تقسیمولو طریقه

**سوال** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د یو قوم خلکو څه وخت مخکښې داسې ځمکه واخیستل چې تقریباً د یو نیم سل (۱۵۰) کالو راهیسې همداسې ویجاړه پرته وه. اوس قوم غواړي چې دا ځمکه په خپل منځ کې تقسیم کړي، اوس سوال دا دی چې تر دومره وخته پورې پرته ځمکه به خامخا د چا میراث وي، ددې نه وړاندې کله تقسیم نه دی شوی، اوس به ددې تقسیم حکم څه وي؟ او ددې تقسیم به څنګه کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: ......... مولوي عبد الرؤف مدرس مدینة العلوم ژوب .....
۱۴۰۲ هـ / شعبان / ۲۸/

---

﴿۱﴾ قال الدکتور وهبة الزحیلی رحمه الله تعالی :فقال الحنفیة: القسمة نوعان ......قسمة رضائیة و هی التی یفعلها الشرکاء بالتراضی و هی تعتبر عقدا من العقود ......إلی أن قال بعد ثلثة أوراق ،اشترط الحنفیة شروطاً فی قسمة التراضی......رضاء الشرکاء فیما یقسمونه بأنفسهم إذا کانوا من أهل الرضاء أو رضا من یقوم مقامهم فإن لم یوجد الرضا لا تصح القسمة .
(الفقه الإسلامی و ادلته ۷ ،۴۷۳۲، ۴۷۳۳،المبحث الثانی، أنواع القسمة)

و فی شرح المجلة: یشترط فی قسمة التراضی رضا کل واحد من المتقاسمین بناء علیه إذا غاب أحدهم لا تصح قسمة التراضی .
(شرح المجلة ۳: ۶۹، المادة ۱۱۲۸)

**جواب**: په یاد صورت کې دې د نیکونو د سرونو په سر ځمکه تقسیم کړي، که نه نو بیا دې وارثان خپلې متعینې برخې یوسي، کوم چې مشکوک دي په هغوی کې دې توقف وکړي، کما فی شرح التنویرِ علی هامشِ رد المختارِ ۶: ۷۹۸: فلو جهلَ عینه أعطی کل بالیقینِ و وقف المشکوك فیهِ حتی یتبینَ أوْ یصطلحوا (شرح المجمع)﴿۱﴾وهو الموفق.

## د تقسیم نه وروسته د بل شریک په ونو باندې دعوه کول

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان دې مسئلې په اړه څه وایي چې د زید په ملکیت کې کومې ځمکې وې، نو ټولې یې وارثانو (چې د زید خپل زامن دي عمر، خالد او ولید) په خپل منځ کې تقسیم کړې؛ خو ونې یې په خپل زور حالت پرېښودې، ځکه چې هغه ډېرې وړې وې، څوارلس کاله وروسته خالد وایي د عمر په ځمکه کې چې کومې ونې دي هغه زما دي، اوس د شریعت له مخې تاسو مونږ ته فیصله وکړئ چې دا ونې به د چا وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: ............ مولوي فضل مولی موضع فاطمه، ضلع وتحصیل مردان ..... ۱۹۷۲م/ ۱۰/ ۴/

**جواب**: د خالد دعوه باطله ده او هیڅ اعتبار نه لري، یدلُّ علیه ما فی الهندیة ۵: ۲۳۹: ویدخل الشجر فی قسمةِ الأراضـی و ان لم یـذکروا الحقـوقَ والمرافقَ کما تدخل فی بیع الأراضی﴿۲﴾وهو الموفق.

---

﴿۱﴾(الد رالمختار ۲: ۷۹۸ کتاب الفرائض: فصل فی الغرقی والحرقی، ایچ ایم سعید)

وفی الهندیة: و إن علم موت احدهما أوّلاً ولایدری أیهم هو أعطی کل واحد الیقین و وقف المشکوک حتی یتبین او یصطلحوا کذا فی خزانة المفتین.

(فتاوی هندیة ۶: ۴۵۷، الباب الثامن فی المفقود والأسیر والغرقی)

﴿۲﴾(فتاوی هندیة ۵: ۲۱۵ کتاب القسمة، الباب الرابع فیما یدخل تحت القسمة الخ)

وفی شرح المجلة: تدخل الأشجار فی قسمة...... (بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

## د پلار او نیکه ځمکه د تقسیم وروسته د وارثانو ملکیت منل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې په یو کلي کې څو قومانو په شریکه خپله ځمکه تقسیم کړې، د هغوی د لومړي تقسیم نه څوك خبر نه دي چې نیکه ګانو یې څه ډول تقسیم کړې وه؛ خو دومره معلومه ده چې دا ځمکه د کوم مسلمان یا کافر حاکم بې اجازې تقسیم شوې ده، ددې ځمکې څلور واړه حدود هم معلوم دي او هر مالك پکښې خپل مالکانه تصرف هم کوي، لکه: خرڅول، اخیستل، اجاره او دا لړۍ د میراث په نوم همداسې روانه ده، سوال دا دی چې دا تقسیم شوې ځمکه د دوی خپل ملکیت دی او که نه؟ او یوازې تقسیم د ملك سبب جوړیږي او که نه؟ تفصیلي بیان راته ولیکئ؛ بینوا توجروا

المستفتي: ........... مولوي عالمګیر حقانی تحصیل پټن ضلع کوهستان
..... ١٤٠٨ هـ / شعبان/ ٢٢/

**جواب:** دا تقسیم صحیح او نافذ دی، کوم خلك چې اوس ددې ځمکو مالکان دي دا د دوی ملکیت ګڼل کیږي، ﴿١﴾دا خو د بزګرو خلکو چل وي چې هغوی لومړی ځنګه ځمکه لاس ته راوړي؟ وهوالموفق .

---

(بقیه حاشیه) الأراضي من غير ذكر ...... كقولهم بجميع مرافقها أو بجميع حقوقها أو بالتصريح بذكرها .(شرح المجلة ٣: ١٠٨، المادة ١١٦٣، الفصل الثامن في بيان أحكام القسمة)

﴿١﴾و قال العلامة ابن عابدين :قال المحقق ابن حجر المكي ......إنا نحكم للوى الأملاك والأوقاف ببقاء أيديهم على ما هي عليه......فان استمرار اليد عليه والتصرف فيها تصرف الملاك في أملاكهم أو النظار فيما تحت أيديهم الأزمان المتطاولة قرائن ظاهرة أو قطعية على اليد المفيدة لعدم التعرض لمن هي تحت يده و عدم انتزاعها منه...... إن الأراضي التي في أيدي الناس بمصر والشام المجهول انتقالها إليهم تقر في أيدي أربابها ولا يتعرض لهم فيها بشئ أصلا .....باحتمال أنها كانت مواتا فأحييت أو أنها انتقلت إليهم بوجه صحيح.
(ردالمحتار ٣: ٢٨١،باب العشر والخراج والجزية، مطلب ليس للامام أن يخرج شيئا من يد أحد الخ)

## د تقسيم پوره کېدو وروسته څوک د رجوع حق نه لري

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قاضي محمد فيضان (چې حکومتي قاضي او د جامع جومات خطيب هم دی) په فيصله کې د دولسو کالو يو هلك خپل ورور وکيل جوړ کړی دی او قاضي هم د هغه وکالت ومنلو، دې وکيل د شريکانو څخه خپله برخه معلومه کړه او ترې ببله يې کړه، د وکيل په واسطه يې په خپله ځمکه کې يو جوړ کور هم واخيست، اوه کاله کيږي چې په دې کور کې مالکانه تصرف کوي، د تقسيم وروسته د ماشوم وکيل شريکانو ته دا اقرار وکړ چې دا تقسيم مې په خپله خوښه کړی دی، په راروانه زمانه کې به هيڅکله په دې ياد تقسيم کې څه مداخله نه کوم، اوس اوه (۷) کاله وروسته دوی غواړي چې زوړ تقسيم يو ځل بيا لغو اعلان کړي، ايا دا جائز دي که ناجائز؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الرزاق موضع سيد اباد ملاکنډ ايجنسی...... ۱۹۶۹م / ۲ / ۲۲/

**جواب:** په شرط ددې چې رښتيا وي دا تقسيم لازم شو او ددې وروسته بيا دا تقسيم نه فسخ کيږي، فى رد المحتار ناقلاً من النهاية و لا رجوع بعد تمام القسمة (۵: ۲۲۹) ﴿۱﴾ (وَ فى الهندية ۵: ۲۴۱) يجب أنْ يعلمَ بأنَّ الملك لا يقع لواحدٍ منَ الشركاءِ فى سهمٍ بعينه بنفسِ القسمة بل يتوقف ذلك على أحد معانٍ أربعةٍ اما القبض أوْ قضاء القاضى أو القرعة أوْ بأنْ يوكلوا رجلاً يلزم كل واحدٍ منهمْ سهماً ﴿۲﴾ وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ (رد المحتار ۵: ۱۸۳ كتاب القسمة، مطلب فى الرجوع عن القرعة)

﴿۲﴾ (فتاوى هندية ۵: ۲۱۷، الباب الخامس فى الرجوع عن القسمة)

و فى شرح المجلة: بعد تمام القسمة لا يسوغ الرجوع.

(شرح المجلة ۴: ۱۰۲ المادة ۱۱۵۷، الفصل السابع فى بيان فسخ القسمة)

## د بلوغ وروسته تقرير نه كولو باندې د حكم تقسيم غير لازم دی

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې يو سړی مړ شو، دده په وارثانو كې يو هوښيار هلك او دوه بالغ نارينه وو، د قاضي محمد فيضان په وړاندې ماشوم يو بالغ سړی خپل وكيل جوړ كړ، قاضي صاحب يې وكالت ومنلو او د تقسيم اجازه يې وركړه، د تقسيم وروسته د تقسيم خط او اقرار خط دواړه راوړل شوه چې بيا به هيڅكله هم يو په بل باندې هيڅ قسم دعوه نه كوي، ددې نه مخكې فتوى كې دا ليكل شوي ؤ كومه چې ستاسو په خدمت كې وړاندې شوې وه.

«دا تقسيم خو د قاضي په اجازه شوی ؤ، دغه راز د بلوغ وروسته تر ډېره وخته پورې يې تقرير كړی ؤ؛ نو تقسيم يې صحيح ؤ» الخ

اوس قاضي محمد فيضان حكم (دريم ګړی) سړی دی، په حكومت كې د قضا منصب نه لري، يوازې حكومتي امامتي لري؛ نو په ياده مسئله كې د قاضي او حكم تر منځ كوم توپير شته او كه نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الرزاق موضع سيد اباد ملاكنډ ايجنسي

**جواب:** د يتيمانو د وكالت مسئله د قاضي نه اعلى حاكم طرف ته سپارل كيږي، نه دا چې حكم ته، ددې له امله د حكم تقسيم غير لازم دی، په شرط ددې چې دې ماشوم د بلوغ وروسته تقرير نه وي كړی.﴿۱﴾وهو الموفق.

﴿۱﴾ وفي شرح المجلة: وإذا كان في جملتهم صغير فوليه أو وصيه قائم مقامه وإن لم يكن للصغير ولي ،ولا وصي كان موقوفا على أمر الحاكم فينصب وصي من طرف الحاكم وتصير القسمة بمعرفته المراد بعدم الصحة في قوله لا تصح عدم النفاذ لما تقدم في المادة (۱۱۲٦)من أنها تصح موقوفة على إجازة الغائب أو إجازة الصغير بعد بلوغه .

(شرح المجلة ۳: ۷۰،المادة :۱۱۲۸)

## د حق د پوره کېدو د اقرار او تصرفاتو وروسته د غبن دعوه کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې شریکانو په خپله خوښه د ځمکې د تقسیمولو پرمهال باراني ځمکه لږه او للمه ځمکه یې زیاته وټاکله، ددې وروسته یې دغه یاده ځمکه د قرعه اندازۍ په حساب په خپل منځ کې تقسیم کړه، د تقسیم وروسته ټولو دا لیکلی اقرار وکړ چې موږ دا تقسیم په خپله خوښه کړی، ددې وروسته موږ په یو بل باندې د هیڅ دعوې حق نه لرو، د تقسیم وروسته د لومړی برخې مالك د خپلې ځمکې نه یو څه ځمکه خرڅه کړه، تر اوه کاله پورې یې په دې ځمکه کې مالکانه تصرف وکړ، د دویمې برخې مالك په خپله ځمکه خرچه وکړه او قابل یې ددې کړه چې کرلو ته تیاره شي، اوس د اوه کالو وروسته د لومړی برخې مالك د غبن دعوې ته اعتبار شته او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي عبد الرزاق موضع سید اباد، ډنډ ډهیری مالاکنډ ایجنسی ۱۹۶۹م/ ۲/ ۲۲/

**جواب:** دا غبن فاحش نه دی او د اقرار خط څخه معلومیږي چې تقسیم یې په خپله خوښه کړی دی، د غبن دعوې ته یې هیڅ اعتبار نشته، (فی الهندیة ۵: ۲۵۱) ﴿۱﴾ادعی أحد المتقاسمین الغلط فی القسمة من حیثُ القیمة بأنْ ادعی غبناً فی القسمة فانْ کانَ یسیراً لَا تسمعُ دعواهُ وَ لاتقبلُ بینته وَ انْ کَانَ فاحشاً، فانْ کَانَتْ بتراضی الخصمین لا بقضاء القاضی لَمْ یذکر فی الکتاب وحکي عن الفقیه أبي جعفر أنه کانَ یقولُ انْ قیلَ تسمع فله وجهٌ، وانْ

﴿۱﴾(فتاوی هندیة ۵: ۲۲۶، الباب الحادی عشر فی دعوی الغلط فی القسمة)

وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالیٰ: و لو ظهر غبن فاحش فی القسمة فان کانت بقضاء بطلت و لو وقعت بالتراضی بطل ایضا فی الاصح و تسمع دعواه ذلک ان لم یقر بالاستیفاء و ان اقر به لا تسمع دعوی الغلط والغبن للتناقض .(در مختار مختصرا)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: قید بالفاحش لانه لو یسیرا یدخل تحت تقویم المقومین لا تسمع دعواه ولا تقبل بینته .(ردالمحتار ۵: ۱۸۷ کتاب القسمة)

قیلَ لا تسمع فله وجهٌ كذا فی الفتاوی الصغری ، وهو الصحیح وعلیه الفتوی ، كذا فی الغیاثیة و ذكر الاسبیجابی فی شرحه. هذا كله اذا لمْ یقر الخصم بالاستیفاءِ ، اما اذا أقرَّ بالاستیفاءِ فانه لا تصحُّ دعواهُ الغلط والغبنُ . وهو الموفق

## د تقسیم وروسته د یو شریک برخه په استحقاق کې تلل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د هر وخت مخکښې زما پلار په نولس سوه (۱۹۰۰) روپۍ څمکه اخیستې وه، په دیکښې یې هغه ته یو ملکري دري سوه (۳۰۰) روپۍ ورکړې او ځان یې ورسره په دریمه ۳/۱ برخه کې شریك کړ؛ خو هغه وخت هغوی تقسیم نه و کړی، د پلار د وفات وروسته مې د شاهدانو په وړاندې د هغه په خوښه دده ۳/۱ برخه ورته ورکړه، یو کال ۹ میاشتې وروسته ددې شریك په ځمکه کوم حق داري دعوه وکړه، اوس سوال دا دی که دا برخې والا پردی سړی که ځمکه وګټي؛ نو د خپل شریك سره به زه په تاوان کې شریك یم او که نه؟

(۲) که په دې ځمکه دعوه وشي او خرچه وربانديې وشي؛ نو ایا په کې به هم زه تاواني کېږم او که نه؟ په داسې حال کې چې زموږ دواړو تر منځ خو تقسیم په خوښه شوی دی او د دواړو تر منځ پولې هم موجودې دي، بینوا توجروا

المستفتي: نور محمد کریانه مرچنټ مین بازار هنګو ضلع کوهاټ

۱۳۸۹هـ/ شوال /۲۶/

**جواب:** که ددې شریك بعض یا ټوله ځمکه بل مستحق سړی په دعوه کې وګټي؛ نو بې شکه چې ته به له هغه سره برابر شریك یې او که په تا راشي؛ نو هغه به هم ستا سره په تاوان کې برابر شریك وي، وفی الهندیة ۵: ۲۴۹، ألوجه الثانی اذا استحقَّ جزء بعینه مما أصابَ واحدٌ منهمْ وفی هذا الوجهِ القسمة صحیحة فیما بقی بعد الاستحقاقِ، الا أنَّ للمستحقِّ علیهِ الخیارلأنّه تعیبَ نصیبه بسبب الشركةِ

فانْ نقض القسمة عاد الأمرُ الى ماكانَ قبلَ القسمة و تستأنف القسمة فيما وراء المستحق ، وانْ أجازَ القسمة يرجعُ على صاحبه بعوضِ المستحقِّ﴿۱﴾وهو الموفق.

## د تقسیم د پوره کېدو وروسته د یوه شریک برخه هلاکېدل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې درې وروڼه د میراخوان، زکی او عظیم په نامه دي، دوی د پلار د مړینې وروسته خپله ځمکه تقسیم کړه، لس کاله وروسته د دوه وروڼو میراخوان او زکي ځمکه سیند یوړه چې اوس هیڅ شی پکښې نه کرل کیږي، ایا ددې دوه وروڼو د حق پوره کولو لپاره دربیم ورور بیا د تقسیم کولو حق لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: مدرسه تعلیم القرآن کرک ........ ۱۴۰۱

**جواب:** که د تقسیم وروسته کومه ځمکه هلاکه شي؛ نو دا به د مالك ځمکه هلاکه وي، دغه هلاکه شوې ځمکه به شریکي نه وي، لما فی شرح المجلةِ م ۱۶۲ ص ۶۴۳ : كل واحدٍ من الشركاءِ يصبح بعد القسمة مالكاً لحصته بالاستقلالِ ولا يبقى لأحدهمْ علاقة فى حصةَ الآخرِ ، هذا لوْ كانت القسمة صحيحةً أما الفاسدةُ فلا تفيد الملك الا بالقبضِ﴿۲﴾وهو الموفق.

---

﴿۱﴾(فتاوی هندیة ۵: ۲۲۳،الباب العاشر فی القسمة يستحق منها شئ)
و قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالىٰ: و إن استحق بعض معين من نصيبه لا تفسخ القسمة اتفاقا......بل المستحق منه يرجع بحصة ذلک فی نصيب شريكه إن شاء أو نقض القسمة دفعًا لضرر التشقيص .(در مختار ۵: ۱۸۶،۱۸۷،كتاب القسمة )
﴿۲﴾(شرح المجلة لسليم رستم باز رحمه الله ۶۴۳ ،المادة ۱۱۶۲ ،الفصل الثانی فی احكام القسمة)
و فی الهندية: و أما حكمها فتعين نصيب كل واحد منهم من نصيب صاحبه بحيث لا يبقى لكل واحد منهم تعلق بنصيب صاحبه كذا فی التبيين .
(فتاوی هندية ۵: ۲۰۴ كتاب القسمة، الباب الأول فی تفسير ها )

## د تقسیم وروسته د طرفینو د یو بل په برخه کې مداخله کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زید او عمر دواړه د تره زامن دي، د دوی د نیکونو ترمنځ ځمکه تقسیم شوې وه، اوس د زید ځمکه یو زوروا کي (غاصب) په خپله ولکه کې راوستې ده، زید د زوروا کي سره په څه چل سوله وکړه، ایا د زید لپاره دا جائز دي چې د عمر (تره زوی) کور ته راشي او د څه شي په غوښتلو مداخله وکړي؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد سعید دیر ......... ۱۴۰۱

**جواب:** د تقسیم وروسته زید او عمر د یو بل څخه بېل شوي، نه د یو بل څخه د څه شي تقاضا کولای شي او نه هم د بل په کار کې مداخله کولای شي، كما في شرح المجلة م ۱۱۶۲ ص ۶۴۳ كلُّ واحدٍ منَ الشركاءِ يصبحُ بعد القسمة مالكاً لحصته بالاستقلالِ و لا يبقى لأحدهمْ علاقة فى حصةِ الآخرِ «۱» وهو الموفق.

## د اجازې ورکولو وروسته تقسیم نافذیږي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د یو قوم د کبنت شریکي ځمکه وه، د قوم مشر (سر خېل) ټوله ځمکه په خپلو قومیانو تقسیم کړه، دومره ځمکه وه چې معلومه اندازه هر چا څومره د کبنت لپاره تیار کړه، هغه دده لپاره شوه؛ خو ځمکه اوس هم بنه ډېره ده او څوك چې اوسهال د ځمکې د برابرولو وس نه لري؛ نو کله چې یې وس وموند؛ نو خاټته دي ځمکه تیاره کړي.

---

«۱» (شرح المجلة ۶۴۳ بالمادة ۱۱۶۲، الفصل الثامن فى احكام القسمة)

و فى الهندية و اما حكمها فتعين نصيب كل واحد منهم من نصيب صاحبه بحيث لا يبقى لكل واحد منهم تعلق بنصيب صاحبه.

(فتاوى هندية ۵: ۲۰۴ كتاب القسمة، الباب الأول فى تفسيرها)

که د قرعه اندازی نه بغیر دا ځمکه تقسیم شي؛ نو ایا د شریعت له مخې دا تقسیم جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: سلطان محمد دولت زئی ......... ۱۹۸۴ م / اپریل / ۱۸/

**جواب:** که قوم ته د قوم سرخېلو اجازه ورکړې وي؛ نو د دوی تقسیم باقاعده نافذ دی، ﴿۱﴾ برابره خبره ده چې قرعه اندازي شوې وي او که نه. وهو الموفق

## په تقسیم کې د غلطی ثابتېدو وروسته بل تقسیم کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې که تقسیم کوونکو ته څو کاله وروسته معلومه شي چې په تقسیم کې غلطي شوې ده؛ نو بېرته له سره تقسیم کول شرعاً روا دي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الرؤف ......... ۱۹۶۹ م / ۶ / ۲۴/

**جواب:** په تقسیم کې د غلطی ثابتېدو وروسته له نوي سره بل تقسیم کول روا دي او که د تقسیم په غوښتنه کې خنډ وشي؛ نو دعوې ته هیڅ زیان نه رسوي، والدلیل علی الأمر الأوّل (ما فی الخلاصة الفتاوی ۲: ۴۱۰) وفی الأصلِ دعوی الغلط فی القسمة علی ثلثة أوجه ، الثانی لو قالَ نصیبی النصفُ و ما وصلَ الی الا الثلث و الباقی فی یدك و أنكرَ الآخرُ تحالفاً و ترادا كالبیعِ﴿۲﴾، وفی الخانیة علی هامشِ الهندیة ۳: ۱۹۰، ثمّ الغلطُ فی القسمة علی وجوهٍ منها أنْ یكونَ الخصومةُ فی القبض فقالَ أحدهما لم أقبضْ حقی وقالَ الآخرُ

﴿۱﴾و فی شرح المجلة :قسمة الرضا القسمة التی تجری بین المتقاسمین فی الملک المشترک بالتراضی او برضی الكل عند القاضی ......فلو قسم القاضی بطلب جمیع الشركاء كانت قسمة رضا .

(شرح المجلة ۴: ۵۸،المادة ۱۱۲۱)

﴿۲﴾(خلاصة الفتاوی ۴: ۲۱۰،الفصل الثانی فی دعوی الغلط فی القسمة)

قبضته فانهما يتحالفان ويترادان القسمة لأنّ القبض له شبة بالعقد ﴿۱﴾وفى الهندية ٥: ۲٥۳، قاسمٌ قسمَ داراً بينَ رجلينِ وأعطى أحدهما أكثر من الآخرِ غلطاً، وبنى أحدهما فى نصيبه قال (محمدٌ) يستقبلونَ القسمة فمنْ وقعَ بناءه فى قسم غيره رفعَ بناءه و لا يرجعانِ على القاسمِ بقيمةِ البناء و لكنهما يرجعان بالأجرِ الذى أخذه كذا فى الظهيرية﴿۲﴾وفى البدايعِ ۷: ۲٦: و أما صفاتُ القسمة فأنواعٌ، منها أنْ تكونَ عادلةً غير جائرةٍ الى أنْ قالَ فاذا وقعتْ جائرةً لَم يوجد التراضى ولا افراز نصيبه بكماله لبقاء الشركةِ فى البعضِ فلمْ تجزْ وتعاد و على هذا اذا ظهر الغلط فى القسمة المبادلة بالبينة بالاقرارِ تستأنفُ لأنه ظهر أنه لمْ يستوفِ حقه فظهرَ أنّ معنى القسمةِ لمْ يتحققْ بكماله ﴿۳﴾وفى مبسوط السرخسى ١٤: ٩٤، اذا قسمَ القوم أرضاً ميراثاً بينهمْ أوْ شركاءَ وتقابضوا ثمّ ادعى أحدهمْ غلطاً فى القسمةِ فانه لا يشتغلُ باعادةِ القسمةِ بمجردِ دعواه ولكن انْ أقامَ البينةَ على ذلك فقدْ أثبتَ دعواهُ بالحجةِ فتعادَ القسمة بينهمْ حتى يستوفى كل ذى حقٌ حقه لأنَّ الخ بالاختصارِ﴿٤﴾(و فى تكملةِ البحر الرائقِ ) قسم القسامُ الدارَ فاعطى أحدهمْ أكثرَ منْ حقه غلطاً وبنى فيها فانهم يستقبلونَ القسمةَ فان وقعَ البناءُ فى قسم غيره دفع نفقته ولا يرجعُ على القاسم﴿٥﴾

﴿۱﴾(الفتاوى الخانية على هامش الهندية ۳: ۱٥۳، كتاب القسمة)

﴿۲﴾(الفتاوى الهندية ٥: ۲۲۸، الباب الحادى عشر فى دعوى الغلط فى القسمة)

﴿۳﴾(بدائع الصنائع ٥: ٢٧٥ كتاب القسمة: صفات القسمة)

﴿٤﴾(مبسوط السرخسى ١٥: ٦٤ باب دعوى الغلط فى القسمة)

﴿٥﴾(تكملة البحر الرائق ٨: ١٥٢ كتاب القسمة)

والدليلُ على الأمرِ الثاني ما في الأشباه((أنَّ الحقَّ لايسقطُ بتقادمِ الزمان))﴿۱﴾ رواه في رد المحتار ۴: ۴۷۶، وفيه أيضاً الثاني أنَّ النهي حيثُ كانَ للقاضي لا ينافي سماعها من المحكمِ﴿۲﴾(وفيه ۵: ۴۴۹) ثمَّ اعلمْ أنَّ عدمَ سماعها (عند رؤية التصرف و تأخير الدعوى ) ليسَ مبنياً على بطلانِ الحقِّ حتى يردَ أنْ هذا قولٌ مهجورٌ لأنه ليس ذلك حكماً ببطلانِ الحقِّ و انما هو امتناعٌ من القضاةِ الخ﴿۳﴾(قلتُ انَّ المحكومَ ليسَ بممنوعٍ )نو نتیجه دا شوه چې د غلطی د ثبوت وروسته بیا تقسیم جائز دی وهو الموفق

## د هلاکېدو وروسته په پاتې مال کې به د برخو په سر تقسیم کېږي

**د شفوي سوال خواب دی:**

**جواب:** باسم ملهم الصواب: روښانه دي چې د حاجي محمد عیسی خان، عبد الله خان، عبد الرحمن او نواب ده داسې ؤ چې هر یو ملګري یې یو - یو لک درهمه او عبد الرحمن-نواب دوی یکښې څلور - څلور لکه دراهمه جمع کړه، عبد الرحمن او نواب به سودا اخیستل، څلور لکه د عام شراکت او اته لکه یې د خصوصي شرکت لپاره پرېښودې، ددې وروسته ځینې سودا حکومت ونیول، ځینې مالونه هلاك شوه او ځینې نور یې پاتې دي، کوم چې پاتې وه هغه مو په دولسو برخو تقسیم کړه، پنځه برخې عبد الرحمن واخیستلې او پنځه برخې نواب، پاتې یوه برخه یې حاجي محمد عیسی خان او بله برخه یې عبد الله خان واخیسته

## د پلار د تقسیم نه پنځوس کاله وروسته د زامنو د غبن دعوه د اورېدو قابله نه ده

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې کهٔ د دوه سرو تر منځ د پنځوسو

﴿۱﴾(الأشباه والنظائر ۳۲۲: كتاب القضاء والشهادات والدعاوى)

﴿۲﴾(رد المحتار ۴: ۳۸۱مطلب هل يبقى النهي بعد موت السلطان)

﴿۳﴾(ردالمحتار ۵: ۵۲۳مسائل شتى)

کالو مخکې یوه ځمکه تقسیم شوې وي؛ خو اوس پنځوس کاله وروسته د یوې ډلې زامن یې دا دعوه لري چې ستا برخه زیاته او زما د کمه ده. ایا د داسې دعوه کوونکي دعوه د اورېدو وړ ده؟ بینوا توجروا

المستفتي ډاکټر ظهور محمد دیر ......... ۱۹۸۳م / اګست / ۳۱/

**جواب**: په شرط ددې چې مستفتي رښتونی وي:﴿۱﴾نو دا دعوه د اورېدو قابله نه ده، وهو الموفق .

---

﴿۱﴾وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى : إذا كان المدعى ناظرًا او مطلعا على تصرف المدعى عليه لا تسمع الدعوى على ورثته، و كذا لو مات المدعى لا تسمع دعوى ورثته...... باع عقارا أو حيوانا أو ثوبا و إبنه أو امرأته او غيرهما من أقاربه حاضر يعلم به، ثم ادعى الإبن مثلاانه ملكه لا تسمع دعواه و جعل سكوته كالإفصاح قطعا للتزوير والحيل.

(فتاوى تنقيح الحامدية ۲ :۳، كتاب الدعوى)

وفى الخانية: دعوى الغلط إنما تسمع إذا لم يقر بالاستيفاء اما إذا أقر بالاستيفاء لا تسمع دعوى الغلط والغبن.

(الفتاوى الخانية على هامش الهندية ۳: ۱۵۳، كتاب القسمة)

و فى ردالمحتار :رجل تصرف زمانا فى أرض و رجل آخر يرى الأرض والتصرف و لم يدع و مات على ذلك لم تسمع بعد ذلك دعوى ولده فتترك على يد المتصرف .(ردالمحتار ۵: ۵۲۴ مسائل شتّى)

إنّ النّبیّ

صلی اللّٰه علیه وسلّم

عامل أهل خیبر علی نصف ما یخرج

من ثمر و زرع.

(متفق علیه)

# کتاب المزارعة

اِنَّ النبیَّ صلی اللّٰه علیه وسلمَ عاملَ اَهلَ خیبرَ علی نصفِ ما یخرجُ منْ ثمرٍ اوْ زرعٍ (متفقٌ علیهِ)

## د زراعت ګټې

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د زراعت ګټې څه دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: احسان الحق رائی وند ..... ۱۳۹۸ هـ / ۹ / ۳

**ځواب:** د زراعت ګټې د بخاري شریف په شروحاتو کې شته، تولې ګټې راته یو ځای نه دي تیرې شوي، ﴿۱﴾ وهو الموفق .

---

﴿۱﴾ عن انس رضی اللّٰه تعالی عنه قال قال رسول اللّٰه ﷺ ما من مسلم یغرس غرسا أو یزرع زرعا فیأکل منه طیر أو انسان أو بهیمة إلا کان له به صدقة.

وقال العلامة بدر الدین العینی رحمه اللّٰه تعالیٰ: ذکر ما یستفاد منه: فیه فضل الغرس والزرع واستدل به بعضهم علی أن الزراعة أفضل المکاسب...... فحیث کان الناس محتاجین إلی الأقوات أکثر، کانت الزراعة أفضل للتوسعة علی الناس...... وفیه حصول الأجر للغارس والزارع وإن لم یقصدا ذلک حتی لو غرس وباعه أو زرع وباعه کان له بذلک صدقة لتوسعته علی الناس فی أقواتهم.

(عمدة القاری ۱۲: ۱۵۵، کتاب المزارعة، باب فضل الزرع والغرس إذا أکل منه)

وقال العلامة ابن حجر : وحمل حدیث الباب علی اتخاذها للکفاف أو لنفع المسلمین بها وتحصیل ثوابها وفی روایة لمسلم إلا کان له صدقة إلی یوم القیامة ومقتضاه ان أجر ذلک یستمر مادام الغرس أو الزرع مأکولا منه.

(فتح الباری ۵: ۴ کتاب الحرث والمزارعة، باب فضل الزرع والغرس الخ)

## د کلي د ضرورت سره – سره بل شی کرل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د یوې ځمکې مالك په خپله ځمکه کې تمباکو کري. په داسې حال کې چې ددغه ځای ټول خلك غلې ته اړتیا لري؛ نو ایا د تمباکو کرل جائز دي؟ بینوا توجروا
المستفتي: صوفي عبد الرحمن، ډاکخانه بانیان بټگرام هزاره..... ۱۳۸۷ هـ/ رجب/ ۳/

**جواب:** په شریعت کې د ځمکې مالك ته اختیار دی؛ خو خلکو ته د خدمت او خیر رسولو تقاضا بیا دا ده چې د خلکو څه ته ضرورت وي هغه شی وکرل شي.﴿۱﴾ وهو الموفق.

## عمل او تخم په مزارع تاکلو سره زراعت فاسدیږي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یو سړی بل ته وواېي: یو غویی او دوه برخې تخم به زه درکړم او یوه برخه تخم به ستا وي او کوم پیداوار چې وکړي، دوه برخې به زما او یوه برخه به ستا وي، د مزارعت دا صورت صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا
المستفتي: حافظ محمد شفیع مدرس مدرسه نجم المدارس کلاچی ډیره اسماعیل خان..... ۱۴۰۲ هـ/ شعبان/ ۸/

**جواب:** د مزارعت دا صورت فاسد دی، ځکه چې د کوم علت له امله عمل او تخم په مزارع تاکلو سره عقد فاسدیږي؛ نو دغه راز په مزارع باندې عمل او بعض تخم تاکلو سره هم دا عقد فاسدیږي، كما فى الهندية ٥: ٢٣٨: و أمّا الثلاثة الفاسدة فأحدها أنْ تكونَ الأرض والبقرُ من أحدهما والباقى من الآخرِ فذلك فاسدٌ ؛ وعنْ أبى يوسفَ رحمه الله انه يجوزُ لمكان العرف،

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: والذى استقر عليه رأى المتأخرين أن الإنسان يتصرف فى ملكه وإن أضر بغيره مالم يكن ضررًا بيّنًا.
(ردالمحتار ٥: ١٩١ قبيل كتاب المزارعة)

والفتوى على ظاهرِ الروايةِ لأنّ منفعةَ الأرضِ لا تجانس منفعةَ البقرِ .... فاذا لم تكن منفعةُ البقرِ من جنسِ منفعة الأرضِ لا يكونُ البقرُ تبعاً للأرضِ فيبقى استيجار البقرِ مقصوداً بشيءٍ من الخارجِ وذلك فاسدٌ﴿۱﴾ فافهمْ . وفي الخانيةِ : فانْ كانتِ الأرضُ لأحدهما وشرطا أنْ يكونَ البذرُ منهما انْ شرطا العملَ على غيرِ صاحبِ الأرضِ و شرطا أنْ يكونَ الخارجُ بينهما نصفينِ كانت فاسدةً (الفتاوى الخانية على هامش الهندية ۳: ۱۷۷)﴿۲﴾ والله أعلمُ.

## مزارع مالك ته د ټاكلې برخې وركولو نه دُ انكار په صورت كې د مزارعت حكم

**سوال:** د دين عالمانو او مفتيانو ددې مسئلې په اړه څه وايي چې څلوېښت كناله ځمكه د يو مزارع په لاس كې ده، د ځمكې مالك دا ځمكه د يو سړي نه اخيستې وه، هغه به د مزارع نه يو سل شل روپۍ (۱۲۰) اجاره اخيستله. اوسني مالك مزارع ته خبر وركړ چې زما او ستا معامله به نيم په نيمه وي، مزارع ورسره ومنل، څلور كاله كيږي چې مزارع يې نه مني، د ځمكې مالك د خپلې ځمكې غوښتنه كوي او وايي چې ماته مې د ځمكې په پيداوار كې نيمايي برخه راكړه! مزارع ددې خبرې نه انكار كوي او نه هم مالك ته ځمكه

﴿۱﴾(الفتاوى الهندية۵ :۲۳۸، الباب الثاني في بيان أنواع المزارعة)

﴿۲﴾ (الفتاوى الخانية على هامش الهندية ۳: ۱۷۷، كتاب المزارعة)

وفي الفتاوى الكاملية: سئلت عمن دفع أرضه إلى آخر ليزرعها بنفسه وبقره ونصف البذر منه والنصف الآخر من العامل والمتحصل بينهما نصفين وعمل العامل على ذلك فهل لا تكون هذه المزارعة صحيحة؟ فالجواب نعم! لا تكون صحيحة بل هي فاسدة.

(الفتاوى الكاملية ۲۳۳ كتاب المزارعة)

سپاري، بلکې وايي چې په پخواني طريقې به عمل وکړو، هغه دا چې ته به هم زما نه يو سل شل روپۍ واخلې او بس؛ ددې معاملې د فسخ کېدو له امله د مزارع لرې کول روا دي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم..... ۱۹۷۷م / ۹ / ۷/

**جواب:** د مستفتي د بيان سره سم زړه اجاره د طرفينو په خوښه ختمه شوه او د مزارعت عقد لازم شو، دا چې مزارع يو بزګر وي؛ نو دا عقد هم له هغه وخته ختم شوی چې د ځمکې مالك ورته ځواب ورکړی ؤ، د هغې وروسته تر اوسه پورې دا مزارع غاصب ګڼل کيږي او په هغه باندې اجر مثل ورکول لازم دي،﴿۱﴾ دغه راز د مزارعت نه لرې کېدل په ده واجب او فرض، مخالفت يې حرام دی.﴿۲﴾ وهو الموفق.

## د ځمکې د ساتنې او د مالك د خدمت په شرط د مزارعت حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ په خوا کې داسې رواج دی چې کله څوك خپله ځمکه چاته په زراعت ورکوي؛ نو د ځمکې او مالك دواړو ساتنه په مزارع باندې فرض ده. د ځمکې نيم پيداوار به مالك ته ورکوي او نيم به مزارع ته، د ثلث او ربع لپاره نور شرطونه دي،

﴿۱﴾ وفى الهندية: وسئل شيخ الإسلام عطاء بن حمزة عمن زرع أرض إنسان ببذر نفسه بغير إذن صاحب الأرض هل لصاحب الأرض أن يطالبه بحصة الأرض؟ قال نعم ان جرى العرف فى تلك القرية أنهم يزرعون الأرض بثلث الخارج أو ربعه او نصفه او بشئ مقدر شائع يجب ذلك القدر الذى جرى به العرف.

(الفتاوى الهندية ۵: ۱۴۳ كتاب الغصب، الباب العاشر فى زراعة الأرض المغصوبة)

﴿۲﴾ وفى شرح المجلة: ليس للمستاجر استعمال الماجور بعد انقضاء الإجارة إلا بإذن صاحبه فلو فعل كان غاصبًا...... ولو انقضت الإجارة وأراد الآجر قبض ماله يلزم المستاجر تسليمه إياه. (شرح المجلة ۲: ۲۹۳، المادة: ۵۹۲،۵۹۳)

اوس که مزارع نیمه برخه واخلي او د مالك خدمت نه کوي؛ نو ایا دا عقد به صحیح وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: مشرف خان ..... ۱۹۷۴م/ ۴/ ۳/

**جواب:** دا معامله حرامه ده، ځکه چې دا مزارعت فاسده دی، والعقودُ الفاسدةُ في حكمِ الربوا كما صرحوا به﴿۱﴾، وفي الدرالمختارِ : والمزارعةُ والمعاملةُ لأنهما اجارةٌ ، وفي رد المحتارِ ۴: ۲۲۷ فيكونان معاوضة مال بمالٍ فيفسدانِ بالشرط الفاسدِ و لا يجوزُ تعليقهما بالشرطِ﴿۲﴾انتهى بقدر الضرورة . وهوالموفق .

## د مسافرو او یتیمانو سره شریکه ځمکه د خپلې برخې نه زیاته کرل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د یو قوم ډېره ځمکه ده؛ خو زموږ په قوم کې هم لکه د نورو قومونو مسافر او یتیمان شته او د قوم ځیني نور خلك چې همدلته اوسیږي د خپلې ځمکې سره - سره د هغوی ځیني ځمکه کري؛ نو ایا ددې دهقانانو لپاره ددې کښت څخه د غلې یا دانو نه کټه اخیستل روا دي او که ناروا؟ بینوا توجروا

---

﴿۱﴾وفي حاشية شرح الوقاية: وكل أنواع الربوا في فحصنا بلغت السبعة كما في تطهير الأموال...... وربما الفساد كما في البيوع الفاسدة.

(تكملة عمدة الرعاية على هامش شرح الوقاية ۳: ۲۳، باب الربوا، حاشيه: ۱)

﴿۲﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۴: ۲۵۳ ما يبطل بالشرط الفاسدة ولا يصح تعليقه به)

وفي الهندية: والأصل أن صاحب الأرض مع المزارع إذا شرط في عقد المزارعة شرطًا فاسدًا ينظر إليه إن كان في الشرط فائدة لأحدهما فهو على وجهين إن كان الشرط داخلًا في صلب العقد...... فإن المزارعة تفسد بهذا الشرط ولا تعود جائزة.

(الفتاوى الهندية ۵: ۲۳۵، الباب الثالث في الشروط في المزارعة)

المستفتي: عبد الستار بلوچي د دار العلوم حقانیه زده کوونکی ..... ۱۴۰۱ هـ / ربیع الثانی / ۱۴/

**جواب:** که دا ځمکه شرعاً شریکي ملك وي؛ نو د مزارعینو لپاره د خپلې برخې نه د زیاتي ځمکې کرلو پرمهال د پیداوار نه یې ګټه اخیستل ناروا دي، ﴿۱﴾ که دا ځمکه د موات د قبیل څخه وي او عرفي شریکي ځمکه وي بیا یې په کرلو کې ګناه نشته ﴿۲﴾ وهو الموفق .

## د حکومت په اجازه د شاملاتو ځمکه کرل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زما د ځمکې سره نږدې د شاملاتو ځمکه ده چې څوك يې د پوښتنې نشته. ایا زه یې د خپلې ځمکې د کرلو پرمهال یو ځای کړلای شم او که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۹۷۹ م / جولائی / ۱۵/

**جواب:** د حکومت په اجازه ددې ځمکې کرل جائز دي. په دې شرط چې حکومت

---

﴿۱﴾ وفی شرح المجلة: کلّ من الشرکاء فی شرکة الملك أجنبی فی حصة سائرهم فلیس احدهم وکیلا عن الآخر ولا یجوز له ان یتصرف فی حصة شریکه بدون إذنه.
(شرح المجلة ۶۰۱، المادة: ۱۰۷۵)

﴿۲﴾ وفی شرح المجلة: من أحیی ارضامن الأراضی الموات بالإذن السلطانی صار مالکًا لها وان أذن السلطان أو وکیله لرجل بإحیاء أرض علی ان لا یتملّکها بل لمجرد الانتفاع بها، فذلك الرجل یتصرف بتلك الأرض کما أذن له ولکنه لا یکون مالکا لها.
(شرح المجلة ۲۸۸، المادة: ۱۲۷۲)

اعتراض ونه لري ،يدلُّ عليه ما في رد المحتار ٥: ٣٨١ ﴿١﴾ وهو الموفق .

## د حکومت د زرعي اصلاحاتو حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې ايا دا زرعي اصلاحات د قرآن او يا حديث څخه ثابت دي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد اياز خان قريشي محله، قريشيان اکوړه خټک ..... ۱۹۸۴م / اپريل / ۲۸/

**جواب:** غالبه دا ده چې زرعي اصلاحات ﴿٢﴾ د شريعت سره ټکر لري

وهو الموفق

## په مالک او مزارع دواړو باندې د تراکتور (ټريکټر) خرچه ملل

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ په ځای کې د ځمکو د کرلو دا رواج وي چې غوبې او تخم د ځمکې د مالک وي او عمل يوازې د بزګر (مزارع) وي او کوم پيداوار چې لاس ته راځي: نو دوه برخې يې دمالك او يوه برخه د بزګر وي، اوس په پوره ته صورت کې يو بل رواج

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدين: وفي الملتقى: أرض لا ينتفع بها عادية أو مملوكة في الإسلام ليس لها مالك معين مسلم أوذمي ...... ملكها جواب قوله إذا أحيا أي ملك رقبة موضع احياه دون غيره ..... إن أذن له الإمام في ذلك وقالا يملكها بلا إذنه وقول الإمام هو المختار ولذا قدمه في الخانية والملتقى كعادتهما وبه أخذ الطحاوي وعليه المتون. (ردالمحتار ٥: ٣٠٦،٣٠٧ كتاب إحياء الموات)

وفي شرح المجلة: من أحيى ارضًا من الأراضي الموات بالإذن السلطاني صار مالكًا لها. (شرح المجلة ٢٨٨ الفصل الخامس في إحياء الموات)

﴿٢﴾ د زرعي اصلاحاتو څخه دپاچا بهټو زرعي اصلاحات مراد دي چې د مالك د خوښې پرته دهغه ځمكه پردي دهقان ته ورکړي (مفتي سيف الله حقاني)

بیا داسې هم جوړ شوی دی چې نن سبا خلك د غوبې په ځای تراکتور راولي؛ نو په هغې کې دوه برخې خرچه مالك ورکوي او یوه برخه خرچه یې بزګر ورکوي، په دې صورت کې د تراکتور چې کوم رواج دی ایا شرعاً دا معتبر دی او که نه؟ که دا ناجائز وي؛ نو د تراکتور د استعمالولو کوم صورت جائز کیدای شي؟بینوا توجروا

المستفتي: مولوي محمد صدیق ..... ۱۹۸۶م/ ۹/ ۶/

**جواب**: په کومو ښارونو کې چې د ځمکې د اړولو بغیر د فصل خوند نه وي، هلته بیا اړول په مزارع باندې لازم دی. کما یدل علیه مافی الهندیة۵:۲۳۷ ﴿۱﴾ خو کله چې د عقد په وخت کې غوا د ځمکې په مالك لازمه شوه؛ نو د غوبې په ځېر د تراکتور خرچه هم په ده باندې لازمه ده، یدلُ علیه ما فی الهندیة ۲۴۰: ۲۴۴؛ نو په مزارع باندې د تراکتور بعض خرچه راوستل عقد فاسدوي.﴿۲﴾ وهو الموفق.

**یادونه**: زموږ ستاسو د ښارونو مزارعت نه صحیح شراکت او نه هم صحیح مزارعت دی. والله أعلمُ

---

﴿۱﴾ وفی الهندية: ومنها ولاية جبر المزارع على الكراب وعدمها وهذا على وجهين إما إن شرط الكراب فی العقد أو سكتا عن شرطه، فإن شرطاه يجبر عليه وإن سكتا عنه ينظر إن كانت الأرض مما تخرج الزرع بدون الكراب زرعًا معتادًا يقصد مثله فی عرف الناس لا يجبر المزارع عليه، وإن كانت لا تخرج أصلا أو تخرج شيئًا قليلاً لا يقصد مثله بالعمل يجبر على الكراب. (الفتاوی الهندية ۵:۲۳۷ كتاب المزارعة ، الباب الأول)

﴿۲﴾ وفی الهندية: وفی كل موضع لم تفسد المزارعة إذا شرط البقر على أحدهما لا تفسد المزارعة إذا شرط استيجار البقر على أحدهما، وإن شرط فی المزارعة عقد آخر وهو استيجار البقر فيكون صفقةً مشروطةً فی صفقة..... وأما إذا شرطت الدابة على أحدهما والعلف على غير صاحبها فهی فاسدة كذا فی محيط السرخسی. (الفتاوی الهندية ۵:۲۴۰،۲۴۴، الباب الثانی فی أنواع المزارعة، الباب الثالث فی الشروط فی المزارعة)

## د حکومت د زرعي اصلاحاتو د قانون مطابق د يوه سړي زياته ځمکه لاندې کول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که پلار خپلو بچيانو ته هبه وکړي او قبضه هم ورکړي او د ځمکې ګټه هم بچيان خوري ايا دا د دوی لپاره جائز دي او که ناجائز؟ دغه راز د موجوده قانون سره سم که پلار د ځمکې تقسيم کړی وي او د زرعي اصلاحاتو د قانون مطابق د هغه سره يوازې د هغه خپله ځمکه وي؛ خو ياد قانون دی د مجرم په توګه جرمانه کړي او دده نوره زياتې ځمکه چې د زامنو ملکيت يې دی هغه هم قبضه کړي او په جرمانه کې يې حساب کړي، ايا د حکومت لپاره دا جائز دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد اياز خان قريشي محله، قريشيان اکوړه خټک...... ۱۹۸۴م/ اپریل/ ۸/

**جواب:** پلار د ځمکو مالک دی، دده هبه او دغه راز بل څوک يې مالک جوړولای شي، ﴿۱﴾ برابره خبره چې په خوله وي او که د ليکلو په صورت کې وي؛ خو دومره ده چې د تقوی له لحاظه د ځينو تصرفاتو څخه پلار هم منع دی، ﴿۲﴾ په هر حال کوم قانون چې د پلار د شرعي تصرفاتو لاره بندوي؛ نو دغه قانون بدلبدلای شي، دا اسلامي اصول نه دي. ﴿۳﴾ وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: وشرائط صحتها في الواهب العقل والبلوغ والملك. (الدرالمختار ۴: ۵۶۷ كتاب الهبة)

﴿۲﴾ وفي الهندية: رجل وهب في صحته كل المال للولد جاز في القضاء ويكون آثما فيما صنع كذا في فتاوى قاضي خان. (فتاوى هندية ۴: ۳۹۱، الباب السادس في الهبة للصغير)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدين: وليس للإمام أن يخرج شيئا من يد أحد إلا بحق ثابت معروف. (ردالمحتار ۳: ۲۸۱ مطلب ليس للإمام أن يخرج شيئا من يد أحد)

وفي شرح المجلة: لا يجوز لأحد ان يأخذ مال...... (بقيه حاشيه اگلے صفحه پر)

## د مزارعت په ځمکه کې د مزارع د لاس کښېنول شوو ونو حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې يو مالك بزګر ته د کرلو لپاره ځمکه ورکوي او وايي چې زما خدمت به کوې او ددې ځمکې چې څومره پيداوار وي هغه يې ستا. په دېکښې د ځان لپاره کور جوړ کړه او ونې ولګوه؛ د وخت په تېرېدو سره د ځمکې مالك د بزګر نه خپله ځمکه بېرته اخلي او غواړي چې د کور په لرګيو او ونو باندې هم قبضه وکړي، د مزارع د خوارۍ هيڅ بدله نه ورکوي او نه هم څه مزدوري ورکوي، په دې اړه مو په شرعي فتوی باندې ونازوئ! بينوا توجروا

المستفتي: مولوي عبد الکريم باجوړ ايجنسي

**جواب:** دا مزارع د لرګيو او ونو مالك دی. د ځمکې په مالك باندې فرض دي چې بزګر ته مزدوري ورکړي او يا هم څه برخه ورکړي. ﴿۱﴾ وهو الموفق.

---

(بقيه حاشيه) أحد بلا سبب شرعي أي لا يحل في كل الأحوال وذلک کالغصب والسرقة...... فمن تناول مال أحد بإحدى هذه الطريق فهو ظالم غاصب يجب عليه رده قائمًا او مثله أو قيمته هالکًا. (شرح المجلة ۱: ۲٦۳، ۲٦۵، المادة: ۹۷)

﴿۱﴾ قال العلامة سليم رستم باز: لو أحدث المستاجر بناء في العقار الماجور او غرس شجرة فالآجر مخير عند انقضاء مدة الإجارة إن شاء قلع البناء والشجرة وإن شاء ابقی ذلک وأعطی قيمته کثيرةً کانت أو قليلةً. (شرح المجلة ۲۹۰، المادة: ۵۳۱)

وقال العلامة الحصکفي: وتصح إجارة الأرض للبناء والغرس...... فإن مضت المدة قلعهما وسلمها فارغة إلا أن يغرم له المؤجر قيمته أي البناء والغرس...... ويتملکه او يرضی المؤجر بترکه أي البناء والغرس فيكون البناء والغرس لهذا والأرض لهذا، مختصرًا.

(الدر المختار ۳: ۲۰، ۲۱، کتاب الإجارة)

## تخم او مزدوري په عامل باندې تاکل

**سوال** : دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زيد خپله ځمکه بکر ته په مزدوري باندې ورکړه، هغه داسې چې تخم او مزدوري به په بکر باندې وي، زيد ته به يوازې د پيداوار دريمه برخه ورکوي. ايا د مزارعت دا صورت جائز دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: (تنگ اسلاف) صلح الدين د دارالعلوم حقانيه زده کوونکی .....
۱۴۰۲ هـ / ربيع الأول/ ۱/

**جواب**: دا صورت جائز دی، لما فى رد المحتار ۵: ۲۴۲: أرضٌ وبذرٌ كذا أرض كذا عمل من واحدٍ ذی ثلاث كلها قبلتْ ﴿۱﴾ وهوالموفق .

## غويي او مزدوري په مزارع او تخم نيم په نيمه اچول

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زيد خپله ځمکه بکر ته په دې شرط ورکړه چې غويي او مزدوري به ته وراچوې او تخم به نيم په نيمه وي، پيداوار به هم نيم ستا او نيم به زما وي. ايا دا صورت جائز دی؟ بينوا توجروا

المستفتي (تنگ اسلاف) صلح الدين د دارالعلوم حقانيه زده کوونکی .....
۱۴۰۲ هـ / ربيع الأول/ ۱/

**جواب**: دا د مزارعت فاسده صورت دی، رد المحتار ۵: ۲۴۴ ﴿۲﴾ وهوالموفق .

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار ۵: ۱۹۵، کتاب المزارعة)

وفى الهندية: فاحدها أن تكون الأرض من احدهما والبذر والبقر والعمل من الآخر وشرطا لصاحب الأرض شيئاً معلومًا من الخارج جاز.

(فتاوى هندية ۵: ۲۳۸، کتاب المزارعة، الباب الثانى فى بيان أنواع المزارعة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: دفع رجل أرضه إلى آخر على أن يزرعها بنفسه وبقره والبذر بينهما نصفان والخارج بينهما كذلك.....(بقيه حاشيه اگلے صفحه پر)

## په مزارعت کې خرج شوي روپۍ نیم په نیمه تقسیمول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې په مزارعت کې د مزارع او د ځمکې د مالك نه چې کومې روپۍ مصرف شوي دي؛ نو نیم په نیمه تقسیم بې څنګه دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد اسحاق کوهستاني ..... ۱۹۷۲ م / ۷ / ۱۸/

**جواب:** که دا شرط يې لومړی لګولی وي؛ نو دا د فاسد مزارعت صورت دی، که د اول نه شرط شوی نه وي، بلکې غیر معروف وي بیا جائز دی، يدلُّ عليه الأصل المذكور فى الهندية (٥: ٢٧٢) ﴿۱﴾ فقط.

## د ځمکې د مالك په مرګ د مزارع نه ځمکه اخیستل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې د محمد شریف تره او پلار یې

(بقيه حاشيه) فعملا على هذا فالمزارعة فاسدة.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله على أن يزرعها) أى الآخر وكذا الضميران بعده فالمزارعة فاسدة لما سيذكر من اشتراط الإعارة.

(ردالمحتار مع الدر المختار ٥:١٩٧، كتاب المزارعة)

﴿۱﴾ وفى الهندية: وأما الشروط المفسدة للمزارعة فأنواع..... ومنها شرط البقر عليه ومنها شرط الحصاد والرفع إلى البيدر والدياس والتذرية والأصل أن كل ما يحتاج إليه الزرع قبل إدراكه وجفافه مما يرجع إلى إصلاحه من السقى والحفظ وقلع الحشاوة وحفر الأنهار ونحوها فعلى المزارع وكل عمل بعد تناهى الزرع وإدراكه وجفافه قبل قسمة الحب مما يحتاج إليه لخلوص الحب وتنقيته يكون بينهما على شرط الخارج وكل عمل يكون بعد القسمة من الحمل إلى البيت ونحوه مما يحتاج إليه الإحراز المقسوم فعلى كل واحد فى نصيبه. (فتاوى هندية ٥:٢٣٧ كتاب المزارعة، الباب الأول)

حاجي مهربان ته د کرلو لپاره ځمکه ورکړې وه، اوس محمد ابراهيم چې د حاجي مهربان زوی دی هغه ځمکه کري، اوس زه غواړم چې دده نه خپله ځمکه بېرته واخلم؛ نو په شريعت کې زما لپاره څه حکم دی؟ زه محمد ابراهيم په ځمکه باندې همداسې پرېږدم، که مزدوري ترې واخلم او که بې مزدوری يې پرېږدم؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**جواب**: که دا ځمکه ستا پلار حاجي مهربان ته په اجاره ورکړې وي او اوس ستا پلار او تره مړ شوی وي؛ نو د هغوی په مرګ سره هم دا عقد نور خلاص شو، که ته او ستا وارثان ده ته په مزارعت باندې خوشحاله نه يئ؛ نو خپله ځمکه ترې بغير د مزدوری او څه خبرو اخيستلای شئ. په شرط ددې چې کښت رسېدلی وي او که کښت لا کچه وي؛ نو تر پخېدو پورې به انتظار ورته کوئ؛ نو بيا به عقد مزارعت پای ته ورسيږي. لما في الدرالمختار: بخلاف ما لوْ ماتَ أحدهما قبلَ ادراك الزرعِ حيث يكونُ الكلُّ على العاملِ أوْ وارثه لبقاء العقد استحساناً ﴿۱﴾ که دا ځمکه عاريتاً (سوالي) ورکول شوې وي، د کښت د کرلو نه دي وراندې ترې نه اخلي. په مستعير (دهقان) باندې لازم دي چې اوس دي د ځمکې مالك ته روپۍ ورکړي او د پخولو تر وخته پورې دې خپل کښت پرېږدي، لما في الدرالمختار: ولوْ استعارها ليزرعها لمْ تؤخذْ منهُ قبل أنْ يحصد الزرع وقتها أوْ لا فترك بأجر المثل مراعاة للحقين ﴿۲﴾ فقط.

﴿۱﴾ (الدرالمختار ۵: ۱۹۷، کتاب المزارعة)

وفي الهندية: إذا دفع الرجل إلى رجل أرضا مزارعة والبذر من قبل المزارع فمات رب الأرض بعد ما نبت الزرع قبل أن يستحصد فالقياس أن تنقض المزارعة ولورثة رب الأرض أن يأخذوا أرضهم وفي الإستحسان يبقى العقد إلى أن يستحصد الزرع ولا يجب إجارة مبتداة. (فتاوى هندية ۵: ۲۵۴، الباب التاسع فيما إذا مات رب الأرض الخ)

﴿۲﴾ (الدرالمختار ۴: ۵۶۳ كتاب العارية)

وفي الخانية: ولو أن رجلا أعار أرضا ليزرعها......(بقيه حاشيه اګلے صفحه پر)

## په مزارعت کې مزارع د ځمکې د مالک نه د قرض اخیستلو شرط لګول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ په ځایونو کې داسې رواج دی چې مزارع د ځمکې د مالك نه تقریباً لس زره (۱۰۰۰۰) روپۍ قرض اخلي، ددې لپاره چې په مزارع د کومو خلکو قرض هغه ورته ادا کړي او یا هم د کښت لپاره د غوا او یوې غم وکړي، مزارع بیا دا روپۍ د ځمکې مالك ته هغه وخت ورکوي چې دی مزارعت پرېږدي؛ نو ایا ددې روپو اخیستل او ورکول روا دي او که ناروا؟ بینوا توجروا

المستفتي: ملا عبید الله تحصیل و ډاکخانه دوکی ضلع لورالائی بلوچستان..... ۱۹۹۹م / ۳ / ۲۱/

**جواب:** که دا شرط د عقد په منځ کې لګول شوی وي یا مشهور وي؛ نو دا عقد بیا فاسد دی، ﴿۱﴾ وهوالموفق.

---

(بقیه حاشیه) وقت لـلـك وقتًا أولم يوقت فلما تقارب الحصاد أراد أن يخرج المستعير في القياس له ذلك، وفي الاستحسان لا يكون له ذلك حتى يحصد الزرع فيترك الأرض في يده إلى الحصاد بالأجرة.

(فتاوىٰ قاضي خان على هامش الهندية: ۳:۳۸۳، فصل فيما يضمن المستعير)

﴿۱﴾ وفي الهندية: والأصل أن صاحب الأرض مع المزارع إذا شرطا في عقد المزارعة شرطًا فاسدًا ينظر إليه إن كان في الشرط فائدة لأحدهما فهو على وجهين، إن كان الشرط داخلا في صلب العقد...... فإن المزارعة تفسد بهذا الشرط ولا تعود جائزة.

(فتاوىٰ هندية ۵:۲۲۵، الباب الثالث في الشروط في المزارعة)

وقال العلامة الحصكفي: والمزارعة والمعاملة أي المساقاة لأنهما إجارة، (الدر المختار)

وفي ردالمحتار: (قوله لأنهما إجارة) فيكونان معاوضة مال بمال فيفسدان بالشرط الفاسد ولا يجوز تعليقهما بالشرط. (ردالمحتار ۳:۲۵۳ مايبطل بالشرط الفاسد ولا يصح تعليقه به)

وفي شرح المجلة: المعروف عرفًا كالمشروط شرطًا.

(شرح المجلة ۱:۱۰۰، المادة:۴۳)

## د تمباکو د کرلو حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د تمباکو د کرلو څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: حاجي عبد الله چارسده ..... ۱۴۰۲ هـ / ذی الحجه / ۲۴/

**جواب:** د تمباکو کرل روا دي، ځکه چې تمباکو خپله یو مباح شی دی، کما فی أشربةِ رد المحتارِ﴿۱﴾وهو الموفق .

## د افیونو د کرلو حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د افیونو کرل او تجارت څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: گل حبیب ، ډاکخانه گوهاټي بنگله، تحصیل صوابی ضلع مردان..... ۱۹۷۲ م / ۹/ ۱۹/

**جواب:** د خش خاشو لپاره د افیونو کرل او په مزدوری باندې د افیونو کرل د تعاون علی المعصیت له امله مکروه دي.﴿۲﴾ولأنّ هذه الارادةَمعصيةٌ كارادةِ الخمريةِ عند العصرِ ، ولأنّ

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: (قوله والتتن الخ) أقول قد اضطربت آراء العلماء فيه..... فإنه لم يثبت إسكاره ولا تفتيره ولا إضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة: الأصل فی الأشياء الإباحة.

(ردالمحتار ۵: ۳۲۶ کتاب الأشربة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: (قوله وصحّ بيع غير الخمر)..... ثم إن البيع وإن صحّ لكنه يكره كما فی الغاية.

(ردالمحتار ۵: ۳۲۳، کتاب الأشربة)

المعصيةَ قائمةٌ بعينِ الخارجِ أشيرَ اليهِ فى رد المحتارِ ۵: ۳۴۵ ﴿۱﴾ وهوالموفق .

## د افيون او تمباکو د کرلو حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د تمباکو او افيونو کرل حلال دي او که حرام؟ بينوا توجروا

المستفتي: گل مست خان پشاور ..... ۱۹۷۳م / ۴ / ۱۱/

**جواب:** د خرڅولو لپاره د افيونو کرل ناجائز او د دوايي لپاره يې کرل جائز دي، رد المحتارِ ۵: ۶: فانه لم يثبتْ اسکاره و تفتيره ولا اضراره بل ثبتَ له منافع فهو داخلٌ تحت قاعدة : الأصلُ فى الأشياء الاباحةُ﴿۲﴾ وفيهِ أيضاً ۵: ۴۰۱: ثم انّ البيعَ وانْ صحَّ لکنه يکرهُ کما فى الغايةِ﴿۳﴾ فافهمْ . هوالموفق

## د مالک بې اجازې د ځمکې کرل

**سوال:** ما يقولُ العلماء الکرامُ فى المسئلةِ الآتيةِ : رجلٌ زرعَ فى أرض المهــاجرينَ بدونِ اذنِ صاحبه فى أرضِ أفغانستانَ هلْ يجوزُ أمْ لا؟ للمهاجرينَ وغيرِه معَ أنَّ الزرعَ

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالیٰ: (قوله لا عصرها لقيام المعصية بعينه) فيه منافاة ظاهرة لقوله سابقًا لأن المعصية لا تقوم بعينه...... ولعلّ المراد هنا عصر العنب علی قصد الخمرية فإن عين هذا الفعل معصية بهذا القصد.

(ردالمحتار ۵:۲۷۷، فصل فى البيع، کتاب الحظر والإباحة)

﴿۲﴾ (ردالمحتار ۵: ۳۲۶ کتاب الأشربة)

﴿۳﴾ (ردالمحتار ۵: ۳۲۳ کتاب الأشربة)

فاسدةٌ للمسلمين؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم فاضل جامعه دارالعلوم حقانيه ..... ۱۴۰۴ھ / جمادی الثانی/۸/

**جواب:** جازتِ الزراعةُ عندَ الاذنِ صريحاً اَوْ دلالةً «۱» وهوالموفق .

«۱» في الهندية: وأما ركنها فالإيجاب والقبول وهو أن يقول صاحب الأرض للعامل دفعت اليک هذه الأرض مزارعة بكذا ويقول العامل قبلت ورضيت أو مايدل على قبوله ورضاه فإذا وجدا تم العقد بينهما.

(فتاوىٰ هندية ٥:٢٣٥ كتاب المزارعة، الباب الأول)

# کتاب احیاء الموات

قال النبی صلی اللّٰہ علیہ وسلّم
من احیٰی أرضًا میتة فهی له .
(دار قطنی)

# کتاب احیاء الموات

قالَ النبیُّ صلی اللّٰه علیه وسلمَ: منْ احیی أرضاً میتةً فهی له (دار قطنی)

## د موات تعریف او ددې د وقف کولو حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د موات د ځمکې تعریف څه دی؟ تفصیلي لیکل راته وکړئ او داسې ځمکه چې څلورو خواوو ته یې غر وي. یوازې یو دعوه دار یې وي، ایا دا ځمکه موات ده؟ ایا د داسې ځمکې وقف کول صحیح دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**ځواب:** الأرض المواتُ هی أرضٌ خارجُ البلدِ لم تکنْ ملکاً لأحدٍ ولا حقاً له خاصاً فلا یکونُ داخلَ البلدِ مواتٌ أصلاً و کذا ما کانَ خارجُ البلدِ عنْ موافقها محتطباً بها لأهلها أوْ مرعی لهمْ لا یکونُ مواتاً حتی لا یملك الامامُ اقطاعها و کذلك أرضُ الملحِ والقارِ والنفطِ ونحوها مما لا یستغنی عنها المسلمونَ لا تکونُ أرضٌ مواتٌ بحذفٍ یسیرٍ (بدائع ۶: ۱۹۴)﴿۱﴾ قلت أما أرض المسؤل عنها ان کانت یصدق علیها هذا التفسیر فلا یصحُّ وقفها لعدمِ الملك و شرطٌ فی الوقفِ الملك کما فی الهندیة ۲: ۳۶۶: و منها الملك وقت الوقفِ﴿۲﴾ انتهی بقدرِ الضرورةِ وهوالموفق.

## د موات ځمکې د ابادولو وروسته څرخول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د شاملاتو په ځمکه د خلکو قبضه

---

﴿۱﴾ (بدائع الصنائع ص ۲۸۳، کتاب الأراضی)

﴿۲﴾ (فتاوی هندیة ۲: ۳۵۴ کتاب الوقف، الباب الأول فی تعریفه ورکنه الخ)

کول روا دي او که ناروا؟ او ددې نه ګټه اخيستل څنګه دي؟ دغه راز ددې ځمکې خرڅول څنګه دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: عمر خان بنو ..... ۱۹۷۶ م / ۶/ ۱۰/

**جواب:** که دا ځمکه موات وي؛ نو چا چې اباده کړه او د کښت لپاره يې تياره کړه، بس هغه يې شرعي مالك دی، بيا د دغه سړي لپار يې خرڅول او کرل دواړه جائز دي، والتفصيلُ في رد المحتارِ ۵: ۳۸۱، ۳۸۲﴿۱﴾او که دا ځمکه موات نه وي؛ نو مالکانه تصرف پکښې کول ناجائز دي، لعدمِ الملك فيها ، دغه راز په موات کې يوازې دومره نه کافي کيږي چې دا د فلاني ځمکه ده، لأنَّ سببَ الملك هو الاحياءُ ﴿۲﴾فافهمْ ! وهوالموفق .

## د شاملاتو د ونو حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په مانسهره کې درې قسمه ځمکې دي، يو خو هغه ځنګلات دي چې ځمکې او ونې يې د حکومت تر لاس لاندې دي، دويم قسم هغه شاملات دي چې مالکان يې نژدې

---

﴿۱﴾وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: إذا أحيا مسلم أو ذمي أرضًا غير منتفع بها وليست بمملوكة لمسلم ولا ذمي وهي بعيدة من القرية إذا صاح من بأقصى العامر وهو جهوري الصوت لا يسمع بها صوته ملكها عند أبي يوسف وهو المختار. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وفي الملتقى: الموات أرض لا ينتفع بها عادية أو مملوكة في الإسلام، ليس لها مالك معين مسلم أو ذمي، وعند محمد إن ملكت في الإسلام لا تكون مواتًا...... (قوله ملكها ) جواب قوله إذا أحيا أي ملك رقبة موضع أحياه دون غيره. (ردالمحتار ۵: ۳۰۶-۳۰۷ كتاب إحياء الموات)

﴿۲﴾في الهندية: والملك في الموات يثبت بالإحياء بإذن الإمام عند أبي حنيفة رحمه الله تعالى وعندهما يثبت بنفس الإحياء.

(فتاوى هندية ۵: ۳۸۶، كتاب إحياء الموات ، الباب الأول)

اوسېدو والا خلك دي، درېيم قسم هغه ځمکه ده چې د خلکو ذاتي وي او ونې پکښې پيدا شي، د ځنګلي ځمکو لکه شاملاتو چې انګريزانو په خپل وخت کې يوازې د خپلو وفادارو خلکو په نوم کړي دي؛ خو اوسمهال قبضه يوازې د هغو خلکو په لاس کې ده چې خواته يې اوسيږي؛ نو اوس سوال دا دی چې دغه د انګريزانو وفادار وايي چې دا ځمکې زموږ دي او ګټه به يې هم زموږ لاسونو ته راځي او هغه خلك چې نژدې ورته پراته دي هغوی بيا وايي چې د ځمکې ګټه به په شريکه استعمالوو، تاسو مهرباني وکړئ او د شرعي مسئلې نه مو خبر کړئ! بينوا توجروا

المستفتي: ..... نور احمد مانسهره هزاره

**جواب:** که دا ځمکې يقيني شاملات وي؛ نو دا ځمکې او د ځمکو ټولې ګټې د نژدې کليوالو خلکو دي ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## د موات ځمکې د اباد وونکو څخه بېرته اخيستل ناجائز دي

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې يو سړي په خپله خواري او په خپلو روپو يوه مواته ځمکه اباده کړه، تر اوسه پورې دا دی سل کاله پوره کېدو والا دي خلکو کتل او يو سړي هم اعتراض نه درلود، اوس چې کله د ځمکې قيمت پورته شو؛ نو ځينې زورواکي خلك راپورته شوه او دعوه

﴿۱﴾ قال العلامة سليم رستم باز رحمه الله تعالى: الأشجار النابتة بلا غرس في ملك واحد هي ملكه ليس لآخر أن يحتطب منها إلا بإذنه فإن يفعل يكن ضامناً ".

(شرح المجلة ص ۶۷۸، المادة ۱۲۴۴، الفصل الأول في الأشياء المباحة وغير المباحة)

وفي البدائع: وأما الآجام المملوكة في حكم القصب والحطب فليس لأحد أن يحتطب من اجمة رجل إلا بإذنه لأن الحطب والقصب مملوكان لصاحب الأجمة ينبتان على ملكه وإن لم يوجد منه الإنبات أصلا. (بدائع الصنائع ۵: ۲۸۲، كتاب الأراضي)

کوي چې دا ځمکه زموږ ده او دلیل هم وایي: چې په شریعت کې هم دا زموږ کیږي، ځکه چې ددې ځمکې سره خوا کې زموږ ځمکه ده، ایا دا شرعي دلیل جوړیدای شي؟ ددې ځمکې ابادوونکي غریبانان خلك دي، په حکومت کې هیڅ لاس نه لري او زموږ مقابله ډله هم په حکومت کې وراندې دي او هم د دنیا له لحاظه مخکې دي؛ نو اوس شرعي حکم څه دی؟ که موږ د حکومت په خلاف ودریږو؛ نو ددې به څه حکم وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد المتین ضلع وتحصیل دیر ..... ۱۴۰۲ هـ / جمادی الثانی /۵/

**جواب**: ومنه الصدقُ والصوابُ : په شرط ددې چې دا ځمکه موات وي؛ نو ابادوونکي یې شرعي مالکان دي، د ابادوونکو څخه یې ددې ځمکې اخیستل ناجائز دي، لحدیثِ: منْ أحيى مواتاً من الأرضِ فهو لــه، رواه فی شرحِ السنةِ وغیره﴿۱﴾وفی شرحِ التنویرِ علی هامش رد المحتارِ۵: ۳۸۱ اذا أحيی مسلمٌ أوْ ذمی أرضاً ..... ملکها﴿۲﴾د صاحبینو په نزد بیا خبره یو څه اسانه ده، ځکه چې د هغوی په نزد د امام اجازه شرط نه ده، د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد اګر که د امام اجازه ضروري ده؛﴿۳﴾ خو د اوسنیو حاکمانو د عام اجازت او په ابادولو یې د انعام ورکولو له امله هیڅ اشکال هم نشته،

وهو الموفق .

﴿۱﴾عن سعید بن زید عن النبی ﷺ قال: من أحيى أرضا میتة فهی له ولیس لعرق ظالم حق.(أبوداؤد ص ۴۳۷، باب إحیاء الموات )

﴿۲﴾الدر المختار ۵: ۳۰۶، کتاب إحیاء الموات)

﴿۳﴾وفی الهندیة: والملک فی الموات یثبت بالإحیاء بإذن الإمام عند أبی حنیفة وعندهما یثبت بنفس الإحیاء.

(فتاوی هندیة۵: ۳۸۶ کتاب إحیاء الموات)

## په متحده هندوستان کې د انګریزانو له طرفه د ورکول شوو ځمکو حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي کومه ځمکه چې د مغلو په وخت کې د خلکو شخصي ملکیت وو، انګریزانو ته د خدمت کولو له امله هغوی دا ځمکې ځینو خاصو خلکو ته ورکړې.

(۲) دا چې اوس مسلمان حاکمان لري؛ نو اوس ددې ځمکو څه حکم دی؟ په پورته صورت کې چې کوم پیداوار ترلاسه شي: نو په هغې کې د زکات څه حکم دی؟ ایا زکات ورکول یې جائز دي او که ناجائز؟ که ناجائز وي؛ نو ددې ځمکو مالکان به بیا څوک وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: تول اند ستري کمپني پوسټ بکس..... ۱۷۵۰ لاهور

**جواب:** هغه وخت چې په هندوستان کې انګریزان وو، عالمان په دې باندې مختلف وو چې ایا هندوستان دار الحرب دی او که نه؟ نو راجحه دا وه چې هندوستان دارالحرب نه دی. ﴿۱﴾ لهذا کومې ځمکې چې انګریزانو خپلو وفادارو خلکو ته ورکړې وي، که د دغو ځمکو مالکان وي او خپلې ځمکې ورته معلومې وي؛ نو مالکانو ته دې وسپارل شي ﴿۲﴾ او که دا معلومول ګران وي؛ نو بیا د دوی

﴿۱﴾ قال العلامة محمود حسن الكنكوهي رحمه الله تعالى: د هندوستان په اړه عالمان اختلاف لري، خو زیاتره عالمان وایي: چې هندوستان دارالحرب دی او ځینې یې انکار کوي، په فتاوی رشیدیه کې بېلې-بېلې فتاوی شتون لري، د ځینو عبارتونو څخه دارالحرب راجح معلومیږي او ځینې یې ددې په عکس باندې دي، د شاه عبد العزیز رحمه الله دلیکلو نه دځینې عالمانو په قول هندوستان دارالحرب نه دی او ځینې یې وایي چې دارالحرب دی او د مولانا عبد الحی رحمه الله دلیکو څخه معلومیږي چې هندوستان د هیڅ چا په نزد دارالحرب نه دی

(فتاوی محمودیة ۱۶:۳۶۸ – ۳۷۳ باب الربا).

﴿۲﴾ وفي البدائع: اما الأراضي المملوكة العامرة فليس لأحد..... پاتې په بل مخ باندې

نه دا ځمکې اخيستل او نورو ته ورکول ناجائز دي،﴿۱﴾ فقط ، هو الموفق .

## د قوم په شريكي شاملات كې د تصرف كولو له امله ملک نه ثابتيږي

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زيد د عمر په هغه ځمکه دعوه کړې چې شاملات ده او وايي چې دا ځمکه زما ده، ځکه چې دا زما په تصرف کې ده او کله وايي چې دا راته په تقسيم کې رسېدلې ده، په داسې حال کې چې زيد او عمر دواړه د تره زامن دي او د يو بل نه يې د ځمکې تقسيم مخکې کړی دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: سعيد الرحمن مالا كند ايجنسى ..... ۱۹۷۹ م/۶/۱۸/

**جواب:** كه شاملات د موات نوم وي؛ نو دا ځمكه د هغه چا ده چا چې اباده كړې وي،﴿۱﴾ كه د شريكي ملكيت او بې تقسيمه ځمكې نوم وي بيا به د هر وارث پوره برخه وركوي،

---

(بقيه حاشيه) أن يتصرف فيها من غير إذن صاحبها لأنّ عصمة الملك تمنع من ذلك .........لأن الملك فيها قائم وإن طال الزمان حتّى يجوز بيعها وهبتها وإجارتها وتصير ميراثًا إذا مات صاحبها.(بدائع الصنائع ۵: ۲۸۱،كتاب الأراضى)

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ان الأراضى التى فى أيدى الناس بمصر والشام المجهول انتقالها إليهم تقرفى يد أربابها ولا يتعرض لهم فيها بشيئ أصلا ......باحتمال أنها كانت مواتًا فاحييت أو أنها انتقلت إليهم بوجه صحيح.

( رد المحتار۳: ۲۸۱، باب العشر والخراج ، مطلب ليس للإمام أن يخرج شيئًا من يد أحد إلا بحق ثابت معروف )

﴿۱﴾عن عائشة عن النبى ﷺ قال: من عمّر أرضًا ليست لأحد فهو أحق.

(صحيح البخارى ۱: ۳۱۴، باب من أحيى أرضًا الخ )

وفى الهندية : الملك فى الموات يثبت بالاحياء بإذن الإمام عند أبى حنيفة رحمه الله تعالى.(فتاوى هندية۵: ۳۸۶،كتاب إحياء الموات ، الباب الأول فى تفسير الموات الخ)

په دیکښې بیا دتصرف اونه تصرف دلیل نیول بې کټي دي. ﴿۱﴾ وهو الموفق .

## د موات ځمکې په احیاء کولو سره مالک جوړېدل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي تقریباً اوولس (۱۷) کاله کیږي چې یوه مواته ځمکه مي اباده کړې ده؛ نو ایا اوس په هغې کې راسره د بل چا حق شته؟ بینوا توجروا

المستفتي: میا مستقیم خطیب ، سواتي مسجد ، بټ خېله ، ضلع مردان

...... ۱۳۹۶ هـ / ذی الحجه / ۳۰/

**جواب:** کـه دا ابـاده شـوې ځمکـه د چـا ملکیـت نـه وي، دغـه راز د نـزدې اوسېدونکو څه حقوق هم ورپورې نه وي تړلي؛ نو دا به د ابادوونکو خلکو ځمکه وي، د هغه نه یې په زوره اخیستل جائز نه دي. ﴿۲﴾ وهو الموفق .

---

﴿۱﴾ وفي شرح المجلة لسليم رستم باز رحمه الله تعالى: كلّ من الشركاء في شركة الملك أجنبي في حصة سائرهم فليس أحدهم وكيلًا عن الآخر، ولا يجوز له من ثمّ أن يتصرف في حصة شريكه بدون إذنه. (شرح المجلة ۱ /۶۰۱، المادة ۱۰۷۵ )

﴿۲﴾ عن سعيد بن زيد عن النبي ﷺ قال: من أحيى أرضًا ميتة فهي له وليس لعرق ظالم حق. (أبوداؤد ۲۳۷، باب إحياء الموات )

وفي شرح التنوير: إذا أحيا مسلم أو ذمي أرضًا غير منتفع بها وليست بمملوكة لمسلم ولا ذمي...... وهي بعيدة من القرية إذا صاح من بأقصى العامر لا يسمع بها صوته ملكها. (الدرالمختار ۵: ۳۰۷، كتاب إحياء الموات )

وفي الهندية: قال القدوري: فما كان عاديًا أي قدم خرابه لا مالك له أو كان مملوكًا في الإسلام لا يعرف له مالك بعينه وهو بعيد عن القرية......فهو موات...... والملك في الموات يثبت بالإحياء.

(فتاوى هندية ۵: ۳۸۶، كتاب احياء الموات ، الباب الأول في تفسير الموات)

## د افغان مهاجرینو څخه د پاتې شوو ځمکو حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې دلته په زرګونو جریبه ځمکه بې کښته او بې کرلو همداسې ورانه ویجاړه پرته ده، په دې ځای کې یوازې به خلکو ګډې څرولې، د پاکستان جوړېدو نه مخکښې د باتوزیو قوم افغانستان ته هجرت وکړ، تر اوسه پورې هلته اوسیږي، دلته راته خبره لږ واضحه کړئ چې د انګریزانو په دور کې به د ځمکو ټیکس یوازې ددې ځای اوسېدونکو قومونو ورکولو، اوس د دومره وخت وروسته چې کله د پاکستان د ځمکو د تقسیم وخت راورسېد؛ نو ایا په افغانستان کې د اوسېدونکو قومونو حق په دې ځمکه کې شته او که نه؟ که وي نو څرنګه به تقسیمیږي، د نارینه او ښځینه وو فرق هم راته بیان کړئ! بینوا توجروا

المستفتي نامعلوم..... ۱۹۸۷م/ ۱۱/ ۱۰/

**جواب:** داسې ځمکې په حقیقت کې موات ګڼل کیږي، د یو سړي په نامه یې یادول دا رواجي خبره ده، کوم شرعي کار نه دی، ﴿۱﴾ که بیا هم دا شرعي حق ومنل شي؛ نو مفتي بیا عالم الغیب نه دی چې ملکیتي ځمکه متعین کړي؛ خو د جنګ د ختمولو لپاره دا حکم ورکولای شي چې دغه مهاجرین هم په دغو ځمکو کې حق لري، لعدمِ الأسبابِ التی یخرج بها الشیئُ عنِ الملك﴿۲﴾ او که پخواني پلرونه اونیکه ګان معلوم وي؛ نو له هغوی څخه دې د ځمکې تقسیم

﴿۱﴾ وفی شرح التنویر: إذا احیا مسلم او ذمی ارضًا غیر منتفع بها ولیست بمملوکة لمسلم ولا ذمی ......وهی بعیدة من القریة إذا صاح من باقصی العامر وهو جهوری الصوت لا یسمع بها صوته ملکها.

(الدر المختار ۵:۳۰۷ کتاب إحیاء الموات)

﴿۲﴾ قال العلامة سلیم رستم باز رحمه الله تعالی: اسباب التملک ثلاثة، الأول الناقل للملک من مالک إلی مالک آخر کالبیع والهبة ......(بقیه حاشیه اګلے صفحه پر)

شروع کړي، تر دې اوسنې نسل پورې دي ورسوي او په موجوده خلکو کې دي ښځو ته هم په تقسیم کې برخه ورکړي، وهوالموفق.

## د موات ځمکې یا د عامو حقوقو سره تړلې ځمکې د خایي پښتنو په نوم خاص کول لوی ظلم دی

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې که لوهار یا بل مولوي صاحب په ورانه ځمکه کې ځان ته کور جوړ کړي، یا هغه د کرلو لپاره جوړه کړي؛ نو خلك هغه ته وايي چې دا د پښتنو ځمکه ده، ستا حق په دیکښې نشته، د شریعت له مخې ددې ځمکې څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد حکیم باجوړ ..... ۱۹۸۹ م / فروري /۲۷/

**جواب:** کومه ځمکه چې موات وي، یا عام حقوق وریپورې تړلي وي؛ نو هغه په خایي پښتنو پورې خاص کول لوی ظلم دی،﴿۱﴾ وهوالموفق.

---

(بقیه حاشیه) والثانی أن یخلف واحد الآخر کالإرث، والثالث إحراز شیئ مباح لامالک له. (شرح المجلة : ۶۷۹، المادة ۱۲۴۸، الفصل الثانی فی کیفیة استملاک الأشیاء المباحة)

﴿۱﴾ عن سعید بن زید عن النبی ﷺ: قال من أحیی أرضا میتةً فهی له ولیس لعرق ظالم حق. (أبو داؤد ۲: ۳۳۷، باب إحیاء الموات)

وفی الفقه الإسلامی وأدلّته: ویجوز إحیاء کلّ من یملک المال لأنّه فعل یملک به کالاصطیاد.

(الفقه الإسلامی وأدلّته ۶: ۴۶۲۵، شروط الإحیاء)

وفی الهندیة: الملک فی الموات یثبت بالإحیاء باذن الإمام عند أبی حنیفة رحمه الله تعالی. (فتاوی هندیة ۵: ۳۸۶، کتاب إحیاء الموات، الباب الأول فی تفسیر الموات)

## د شریکې ځمکې کاریز هم شریکې دی

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې په یوه ځمکه کې تر ټولو وړاندې یو قوم اباد شو او په هغه ځای کې د هغه کاریز هم مالکان شول، وروسته بل قوم راغلو او د لومړي قوم نه یې یوه شپه او یوه ورځ اوبه په پیسو واخیستلې بیا د لومړي قوم سره د کاریز په پاکولو کې یې پوره برخه واخیستل، د دواړو ډلو تر منځ څه غیر اباده ځمکه پرته وه، د اولني قوم خلکو په دې ځمکه کې نښې کېښودې. دویم قوم ورته وویل چې لومړی ددې ځمکې تقسیم وکړئ او بیا یې اباده کړئ؛ اولنی قوم ورته وایي: چې په دیکښې ستاسو برخه نشته، ایا په دیکښې د دویم قوم حق شته او که نه؟ په داسې حال کې چې په عرف کې دغه ځمکه د دواړو قومونو تر منځ شریکه ګڼل کیږي. بینوا توجروا

المستفتي: عبد الرحیم بلوچستان ..... ۱۴۰۳ هـ / شعبان /۲۱/

**جواب:** که دغه ځمکه موات وي؛ نو اول، دویم او نور ټول قومونه یو شان حق پکښې لري، که دا ځمکه د اولې ډلې شریك ملکیت وي؛ خو تقسیم کړی یې نه وي؛ نو بیا اول قوم حق لري چې کورونه پکښې جوړ کړي، ﴿۱﴾ او که دا ځمکه ددې ابادو شویو کلیو مالچر (چراګاه) وي؛ نو بیا دویم قوم هم پوره

﴿۱﴾ عن سعید بن زید عن النبی ﷺ: قال من احیی ارضا میتةً فهی له ولیس لعرق ظالم حق. (ابو داؤد ۲: ۳۳۷، باب إحیاء الموات)

وقال العلامة سلیم رستم باز رحمه الله تعالی: الاوّل أن تکون الأرض غیر مملوكة لأحد سواء كان فيها آثار العمارة او لا، لأنها لو كانت مملوكة لمسلم او ذمی لم تكن مواتًا وإن مضت عليها القرون وصارت خربة.

(شرح المجلة ۲۸۸، المادة ۱۲۷۰، الفصل الخامس فی إحیاء الموات)

حق لري، و لا بعيدَ أنَّ هذه الأراضی بالأراضی المتروكة﴿۱﴾وهوالموفق .

## تولي ځمکې بې تقسیمه ګڼل د اباحیه ډلې یوه حیله ده

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي کومې ځمکې چې د وخت بادشاه نه وي تقسیم کړې، ایا دا په موات کې شامل دي او که نه؟ او دا ځمکې بل ته ورکولای شي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: ګل کریم جان ملا کنړ درګئ ..... ۱۹۷۹ م / جولانی/۱۹/

**جواب:** زموږ په ښارونو کې تولې ځمکې تقسیم شوې دي، دا ځمکې بې تقسیمه ګڼل د اباحیه ډلې یوه حیله ده، په حکومت باندې لازم دي چې د اباحیه ډلې څخه دا ځمکې واخلي او په ځایي بې کوره خلکو بې تقسیم کړي، ځکه چې دا ځمکې دوی د بهتو پاچا په وخت کې نیولې دي. وهوالموفق .

## اسمي او رسمي توګه شریکې ځمکې په موات کې شامل دي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د یو قوم داسې شریکې ځمکه ده چې د کرل کېدو ده، د قوم ملکانو اعلان وکړ چې د معلومې اندازې مطابق دې هر سړی ځان ته ځمکه اباده کړي؛ خو ځمکه دومره ډېره ده چې د معلومې اندازې نه هم زیاته ده او کوم چې غریبانان خلک دي هغوی یې اوس د ابادولو وس نه لري؛ نو کوم وخت چې دوی د ابادولو وس پیدا کړ بیا یې ابادولی شي، ایا ددې ځمکې ابادول ددې خلکو لپاره روا دي؟ او ددې ځمکې د پیداور نه کټه اخیستل روا دي او که ناروا؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الستار دولت زئی ..... ۱۹۸۴ م / مارچ /۱۲/

---

﴿۱﴾وفی شرح المجلة: الأراضی القریبة إلی العمران تترک إلی الأهالی مرعًی ومحتصدًا ومحتطبًا ويقال لها الأراضی المتروكة.

(شرح المجلة ۳:۲۰۳، المادة ۱۲۷۱، الفصل الخامس فی إحياء الموات)

**جواب:** دا ابادي جائز ده، ددې پیداوار حلال دی، ځکه چې په حقیقت کې دا د موات ځمکه ده، په اسمي او رسمي توګه شریکي ده وهو الموفق .

## شریکي شاملات د خپلې برخې په اندازه ابادول

**سوال:** دّدین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زموږ په ځای کې شپږ سوه (۶۰۰) ایکړه ځمکه شاملات موجود ده، پنځه سوه (۵۰۰) کسان پکښې شریك دي؛ خو تر اوسه پورې ددې ځمکې تقسیم نه دی شوی، څو تنو برخو والا په دې ځمکو قبضه اچولې او ځای - ځای یې ځان ته کورونه، باغونه او کښتونه کړلي دي، د نورو شریکانو څخه یې پوښتنه هم نه ده کړې، ایا د نورو شریکانو بې اجازې داسې تصرف کول په غصب کې شمارل کیږي او که نه؟ او ایا د دوی لپاره په بې تقسیمه ځمکه باندې باغونه او کورونه جوړول جائز دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد عثمان کوټه ...... ۱۴۰۲ هـ / شعبان /۲۳/

**جواب:** که دا شاملات موات وي؛ نو په دیکښې هر قسم تصرف کول بې اجازې هم جائز دي، ﴿۱﴾ خو که دا دخلکو ملکیت وي او تقسیم کړی یې نه وي؛ نو بیا په دې شرط

---

﴿۱﴾ وفی شرح التنویر: إذا أحیا مسلم أو ذمی أرضًا غیر منتفع بها ولیست بمملوکة لمسلم ولا ذمی ...... وهی بعیدة من القریة إذا صاح من بأقصی العامر ...... لا یسمع بها صوته ملکها.

(الدر المختار ۵:۳۰۷ کتاب إحیاء الموات)

وفی الهندیة: قال القدوری فما کان عادیا أی قدیم خرابه لامالک له أو کان مملوکًا فی الإسلام لایعرف له مالک بعینه وهو بعید عن القریة ...... فهو موات.

(فتاوی هندیة ۵:۳۸۶، کتاب إحیاء الموات، الباب الأول فی تفسیر الموات الخ)

﴿۲﴾ عن سعید بن زید عن النبی ﷺ: قال من أحیی ...... (بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

په خپله برخه کې تصرف جائز دی چې نورو شریکانو ته پکښې ضرر نه وي.
(د شرح المجله نه اخیستل شوی: ۶۰۴ او ۶۰۵ مخ) ﴿۱﴾ والله تعالی اعلم.

## کله چې د ځمکې موات او ملکیت معلوم نه وي، نو قبضه لرونکي سړي ته دي مصلحتاً پریږدي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زموږ د پلار یو څه شاړه ځمکه وه، په هغې کې یې ځان ته کور جوړ کړی ؤ او یو ځنګل هم پکښې ؤ، کله چې زموږ پلار وفات شو؛ نو کور همداسې وران پروت ؤ او ځنګل هم زموږ د کمزورۍ له امله خراب شو، اوس چې کله موږ وس پیدا کړ او د ځمکې د ابادولو اراده مو وکړه؛ نو یو سړی پیدا شو چې دا ځمکه زما ده او ستاسو پلار زما نه په زوره اخیستې وه، اوس زموږ لپاره څه کول پکار دي؟ زموږ لپاره یا د مدعیانو لپاره شاهدان ضروري دي او که قسم؟ که شاهدان په موږ وي؛ نو څه ډول یې پېش کړو او که په هغوی باندې وي؛ نو څه ډول به یې پېش کوي؟ بینوا توجروا
المستفتي: سعید الرحمان شریک دوره حدیث دار العلوم حقانیه اکوړه خټک

---

(بقیه حاشیه) أرضًا میتةً فهي له ولیس لعرق ظالم حق.

(أبوداؤد ۴۳۷، باب إحیاء الموات)

وفي شرح التنویر: إذا أحیا مسلم أو ذمي أرضًا غیر منتفع بها ولیست بمملوكة لمسلم ولا ذمي...... وهي بعیدة من القریة......ملكها.

(الدرالمختار ۵:۳۰۷ کتاب إحیاء الموات)

﴿۱﴾وفي شرح المجلة لسلیم رستم باز رحمه الله تعالی: انتفاع الحاضر بالملك المشترك بوجه لا یضر الغائب یعد رضی من الغائب.

(شرح المجلة ۶۰۴-۶۰۵، المادة ۱۰۷۹)

**جواب**: که په دې ځمکه کې تقسیم جاري شوی وي بیا دا مملوکه ځمکه ده او په دیکښې د ملکیت ټول حکمونه جاري کیږي، که تقسیم پکښې نه وي شوی، دا بیا په موات کې شامله ده او د موات حکمونه پرې جاري کیږي، هغه داسې چې چا د کرلو لپاره تیاره کړه؛ نو ځمکه به هم د هغه وي او که د کرلو لپاره یې تیاره نه کړه؛ نو بیا به غیر مملوکه ګڼل کیږي، که څوك وربانديې دعوه کوي، دعوې ته به یې هیڅ اعتبار نه وي. ﴿۱﴾ د چا په قبضه کې چې وي، مصلحتاً او رفعاً للنزاع به د هغه په قبضه کې پاتې وي او د هغه د اجازې بغیر د بل چا تصرف بنه کار نه دی. یدلُ علیه جمیعُ ما مرّ فی الهندیة ٥: ٤٢١ وأراضی ما وراء النهرِ و خوارزم لیستْ بموات لدخولها فی القسمة انتهی ، و فیها أیضاً : ومن أحیی أرضاً میتةً بغیرِ اذنِ الامامِ لا یملکها فی قولِ ابی حنیفةَ رحمه اللّٰه ، و قالَ صاحباهُ یملکها ،﴿۲﴾ انتهی قلتُ : ولا بدّ منَ الافتاء علی قولهما فی الأوطانِ التی لا امام لهمْ للضرورةِ ، و فی البدائعِ : والمباحةُ نوعانِ أیضاً نوعٌ هو مرافقُ البلدة محتطباً أوْ مرعًی لمواشیهمْ و نوعٌ لیسَ من مرافقها وهو المسمی بالموات (٦: ١٩٢ ، ١٩٣ )﴿۳﴾ و قالَ فی(ص:١٩٤) فالأرض المواتُ هی أرضٌ خارج البلدِ و لم تکنْ ملکاً لأحد ولاحقاً له خاصاً فلا یکونُ داخلُ البلدِ مواتٌ أصلاً ، و کذا ماکانَ خارجُ البلدة منْ مرافقها محتطباً لأهلها أوْمرعی لهمْ لا یکونُ مواتاً

---

﴿۱﴾ عن سعید بن زید عن النبی ﷺ: قال من أحیی أرضا میتةً فهی له ولیس لعرق ظالم حق. (ابوداؤد ص ٤٣٧ ، باب احیاء الموات)

وفی شرح المجلة :: الاول ان تکون الارض غیر مملوکة لأحد سواء کان فیها آثار العمارة أولا، لأنها لو کانت مملوکة لمسلم أو ذمی لم تکن مواتًا وان مضت علیها القرون وصارت خربة. (شرح المجلة ص ٦٨٨ ، المادة ١٢٧٠)

﴿۲﴾ (فتاوی هندیة٥: ٣٨٦ کتاب إحیاء الموات ، الباب الأول فی تفسیر الموات الخ)

﴿۳﴾ (بدائع الصنائع ٥: ٢٨١، کتاب الاراضی)

حق لا يملك الامام اقطاعها لأنّ ما كانَ منْ مرافقِ أهلِ البلدةِ فهوَ حقُّ أهلِ البلدةِ كفناءِ دارهمْ و فى الانقطاعِ ابطالُ حقهمْ﴿۱﴾الخ وفى كتاب الخراج (ص: ۶۳) فاذا لم تكنْ فى هذه الأرضينَ أثر بناء و لا زرع و لم تكن فيئاً لأهلِ القريةِ و لا مسرحاً و لا موضعُ مقبرةٍ و لا محتطبهمْ و لا موضعُ مرعى دوابهمْ و أغنامهمْ وليسَ بملك لأحدٍ و لا فى يدِ أحد فهى مواتٌ﴿۲﴾ د كتاب الخراج د عبارت نه معلومیږي چې د يد او قبضې له امله هم ځمکه د موات د حکم څخه وځي، دا او ددې په څېر نوري ځمکې د موات او بيت المال دواړو احتمال لري، د فساد او جنګ ختمولو لپاره داسې ځمکې د هغه چا وي، د چا چې ورباندې قبضه وي. فقط والسلام، وهو الموفق.

## په ملکيتي ځمکه کې د کوهي لپاره د حريم حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په وطن کې زموږ ځمکه ده او په خوا کې يې د بل سړي ځمکه هم ده، هغه په خپله ځمکه کې په ماشين باندې کوهی شروع کړی دی، اوس دغه کوهی زموږ کوهي ته زيان رسوي، ځکه چې د دوی کوهی دې ته ېبيخي نژدې دی، ايا اوس موږ دغه کوهی بندولای شو او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۹۸۶م / ۴ /۶/

**جواب:** دا دويم سړی د کوهي د کنستلو نه څوك نه شي منع کولای. كما فى شرحِ المجلةِ ۶۹۴ ، المادة : ۱۲۹۱ : لا حريمَ لبئرٍ حفرالانسانُ فىْ ملكه وللجارِ أيضاً أنْ يحفرَ بجانبها بئراً أخرى فى ملك نفسه و ليسَ للأوّلِ منعه منْ حفرِ البئرِ بقوله أنّه

﴿۱﴾(بدائع الصنائع ۵ :۲۸۳ كتاب الأراضى)

﴿۲﴾(كتاب الخراج ۱۳۷، فى موات الأرض فى الصلح والعنوة وغيرهما)

يجذب ماء بئرى﴿۱﴾وهوالموفق .

## يوازې په ننبو د ځمکې د احياء حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ ځينې داسې ځمکې هم شته چې اوه اته کاله کيږي د ټول قوم تر منځ شريکه ده او هيڅ تقسيم يې نه دی شوی، په هغې کې غرونه او ونې هم شته، ځينې داسې ځمکې هم شته چې خلکو ابادي کړي دي، په هغې کې دوه قومه دي، يو قوم پکښې د ځان لپاره ځمکې کرلي دي او د سېلابونو د درېدو لپاره يې ځمکې ته ديوالونه هم وهلي چې کښت يې خراب نه کړي. بل قوم راغی او هغوی دعوه لري چې دا زموږ ځمکه ده، په دې باندې موږ ننبې ايښې وې، اولني قوم ورته ووېل: چې موږ دلته ننبې نه دي ليدلي او اوس موږ قبضه کړې، بلکې ابادي کړې مو هم دي. لهذا دا اوس زموږ خپلې ځمکې دي، اوس تاسو شرعي فيصله وکړئ؛ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**جواب:** په ظاهره کې خو داسې څرګنديږي چې لومړي قوم موات ځمکه اباده کړې ده، په ديکښې اګر که د حاکم له خوا سرعام اجازه نه وي؛ خو دلالةً اجازه وي او دا قاعده ده کله چې موات ځمکه يو قوم د حاکم په اجازه اباده کړي؛ نو دا بيا د هغه خپله ځمکه شي، يوازې په ننبو سره موات ځمکه نه قبضه کيږي، لهذا دا ځمکه د لومړي قوم ده، دويم قوم ته اختيار نشته چې په دې ځمکه بې ځايه قبضه وکړي، يدل عليه ما في الدر المختار : اذا أحيي مسلمٌ أوْ ذمي أرضاً غير منتفعٍ بها وليست بمملوكةٍ لمسلمٍ ولا ذمي و هي بعيدةٌ منَ القرية ملكها انْ

﴿۱﴾(شرح المجلة لسليم رستم باز رحمه الله تعالى ۵۹۳ ، المادة : ۱۲۹۱ ، الفصل السادس في حريم الآبار المحفورة والمياه المجراة الخ )

وقال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي :لو حفر بئراً في أرضه فأدى إلى نضوب ماء بئرالجار وجب سد ماء البئر عند الحنابلة ولا شيئ عليه عند الحنفية لأن الماء الموجود تحت الأرض غير مملوك لأحد. (الفقه الإسلامي وأدلته ۲۳۷:۲ه، احكام إحياء الموات)

أذنَ له الامامُ في ذلك ، وقالا يملكها بلا اذنه ، انتهى مختصراً «۱» وفيه : ومنْ حجرَ أرضاً أى غيره منها بوضعِ علامة منْ حجرٍ أوْ غيره ثمَّ أهملها ثلثَ سنينَ دفعت الى غيره وقبلها هو أحقُّ بها وانْ لم يملكها بالاحياءِ والتعميرِ لا بمجرد التحجيرِ ، فقط «۲» وهوالموفق .

## د غرونو ونې د چا ملكيت نه دي

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د غرونو ونې د چا ملكيت دي او كه چا كاټ كړې بس د هغه دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**جواب**: ظاهره دا ده چې دا ونې د چا ملكيت نه دي. كما يشيرُ اليهِ عبارةُ الهنديةِ ۱: ۱۹۷: و ما يجمع من ثمار الأشجار التى ليستْ بمملوكةٍ كأشجارِ الجبالِ يجبُ فيها العشرُ كذا فى الظهيريةِ ،«۳» كه دا قوم خپل ملكيت ثابت نه كړي؛ نو ددې ونو مالك به هغه څوك وي چا چې ماتي كړې. وهوالموفق

## غير مملوكه شاملات هر څوك ابادولاى شي نه شاملات مملوكه

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په (دالئى ميلئ) نومي ځاى كې د دوري خېل(قوم) اوغوبز خېل (قوم) شاملات شمكه ده،

---

«۱» (الدر المختار ۵: ۳۰٦-۳۰۷ ، كتاب إحياء الموات)

«۲» (الدر المختار ۵: ۳۰۷، كتاب إحياء الموات)

«۳» (فتاوى هندية ۱: ۱۸٦ ، الباب السادس فى زكاة الزروع والثمار)

وفى شرح المجلة :" الأشجار التى تنبت بلا غرس فى الجبال المباحة يعنى غير المملوكة مباحة. (شرح المجلة ۲: ۱۸۲ ، المادة ۱۲۴۳ ، الباب الرابع فى بيان شركة الإباحة الخ)

زما تره اسمعیل خان هم په دې شاملاتو کې د نهه (۹) کناله ځمکې مالك دی، ددې دواړو قومونو ځینو خلکو یې خپلې برخې ابادې کړې او زیاتره خلك یې یا له بې وسی او یا هم د لریوالي له امله همداسې پرېښودې، په کال (۱۹۶۶) کې ددې دواړو قومونو ځینو نورو خلکو هم د ځمکو ابادولو نیت وکړ، د دوري خېل قوم دوه سپين ږيرو لکه حاجي سپين ګل او محراب ګل (چې دواړه ورونه دي) غوښتل يې چې د خېل پلار او نيکه ځمکه اباده کړي؛ خو موږ ابادولو ته پرې نښودل، ځکه چې بو ځل مو ورسره ضد وکړ؛ خو بيا هم د شخړو وروسته مو محراب ګل ته د نيمي ځمکې اجازه ورکړه، موږ يوه ورځ خېل زور وکړ؛ خو په بله ورځ يې رانه ټوله ځمکه ونيول، ايا زموږ لپاره په دې شاملات ځمکه کې برخه شته او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: امين خان پتی الګډی کرك ..... ۱۹۸۳م / جولائی /۲۴/

**جواب:** ومنهُ الصدقُ والصوابُ: که شاملات د غير مملوکه (موات) نوم وي؛ نو هر قومي او غير قومي سړی يې ابادولای شي. ﴿۱﴾ که شاملات ځمکه د چا ملکيت او بې تقسيمه ځمکه وي؛ نو په هغې کې د ټول قوم حق شريك دی، بعضي خلك اجازه نه لري چې يوازې يې وخوري ﴿۲﴾ فقط، وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ عن سعيد بن زيد عن النبی ﷺ قال من احيیٰ ارضا ميتةً فهی له وليس لعرق ظالم حق.

(ابو داؤد ۲: ۲۳۷، باب إحياء الموات)

وفی الهندية: ومن احيا ارضًا ميتةً بغير إذن الإمام لا يملكها فی قول ابی حنيفة رحمه الله تعالیٰ وقالا صاحباه يملكها.

(فتاوی هندية ۵: ۳۸٦، كتاب احياء الموات، الباب الأول فی تفسير الموات)

﴿۲﴾ وفی شرح المجلة: كل من الشركاء فی شركة الملك اجنبی فی حصة سائرهم فليس احدهم وكيلاعن الآخر ولا يجوز له أن يتصرف فی حصة شريكه بدون إذنه.

(شرح المجلة لسليم رستم باز رحمه الله تعالیٰ ۱: ٦۰۱، المادة: ۱۰۷۵)

## موات ځمکه د اباد وونکو وروسته د وارثانو ملکیت دی

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې تقریباً درې سوه کاله وړاندې غیر اباده یو ځنګل همداسې وران او ویجاړ د ابادۍ نه دوه درې میله لرې په غرونو کې پروت ؤ، زید دا پخوانی ځنګل د ځان لپاره جوړ کړ او ونې یې ترې کاټ کړې، تر دې چې د اوبو نهر یې هم ورته راتېر کړ، د زید د اباد ولو نه وړاندې په دې وطن کې کافران وو او دا ځای دار الحرب ګڼل کېده، د مجاهدینو په لاس دا ځای فتح شو چې په هغوی کې یو د زید نیکه هم شریك ؤ او د کافرو په لاس شهید شو، ددې ځای نه اوس زید ګټه اخلي، څه وخت وروسته دې ځمکې ته نژدې خلکو باندې د حکومت ولکه راغله او ځینې خلك یې په حکومتي چارو کې بوخت شول، یو سړی چې عمر نومېږي په حکومت کې یې غټو رتبو ته لاس ورسېد او په دې غیر اباد ځنګل یې د خپل ملکیت دعوه وکړه چې زه ددې ځای اوسېدونکی او ته د بل ځای نه راغلی یې! لهذا دا زما حق کیږي او په زوره یې په زید باندې ددې ځمکې اجاره ومنل، څه وخت وروسته د پاکستان حکومت جوړ شو، د زید وارثانو د عمر وارثان د اجارې نه منع کړه او د عمر وارثانو ته یې وویل: چې دا ځنګل زموږ دی او د کافرانو څخه یې د خپلې وینې په نذرانه کولو نیولی او موږ اباد کړی دی، ستاسو هیڅ حق په دیکښې نشته، ایا اوس شرعاً دا ځمکه د زید رسیږي او که نه؟ ددې اجارې له امله دا ځمکه د زید له لاسه وځي او که نه؟ او عمر چې دې ځمکې ته نژدې اباد دی ایا ددې ځمکې زیات حق دار دی او که زید چې لومړی یې اباده کړې ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: عزیز الرحمن ضلع هزاره تحصیل بټګرام ...... ۱۹٦۹م / ۹/۷/

**جواب:** په شرط ددې چې مستفتي رښتینی وي؛ نو دا ځمکه د زید او دده د وارثانو ده، عمر او دده وارثان په دې ځمکه کې هیڅ حق نه لري، قال رسول الله صلی الله علیه و سلم: مَنْ عَمَّرَ أَرضاً لیستْ لأحدٍ فهوَ أحقُّ

( رواه البخاری)﴿۱﴾وفی الدر المختارِ : اذا أحیی مسلمٌ أوْ ذمی أرضاً غیر منتفع بها ولیست بمملوکةٍ لمسلمٍ ولا ذمی وهی بعیدةٌ منَ القریةِ ملکهاانْ اذنَ له الامامُ فی ذلك، وقالا یملکها بلا اذنه،انتهی مختصراً﴿۲﴾او په یاد صورت کې د عمر د ملکیت لپاره هیڅ سبب نشته، د زید لپاره د صاحبینو په مذهب ملك ثابت دی، د همدې امله یوازې زید به یې مالك وي، وهو الموفق .

## د قوم په شریکي شاملات کې نارینه وو ته برخه ورکول او ښځي بې برخي پرېښودل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زموږ په خای کې یو شریکي خای ؤ، یو قوم چې د باتوزی په نامه یادیږي ځمکه یې په خپلو نارینه وو (بالغ او نابالغو ) باندې تقسیم کړه، یوې ښځې ته یې هم پکښې برخه ورنه کړه، د تقسیم وروسته اوس هم نیمه ځمکه پاتې ده، مهرباني وکړئ داسې حیله راته وښیئ چې موږ هم خپله برخه ځمکه ترلاسه کړو؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الستار بلوچستان ..... ۱۴۰۲ هـ / رجب المرجب /۱/

**جواب:** که دا ځمکه غیر اباده وي،نو دا په حقیقت کې موات ده،﴿۳﴾ددې مملوکه کېدل

﴿۱﴾ (صحیح البخاری ۱:۳۱۴، ابواب الحرث والمزارعة وما جاء فیها ، باب من احییٰ أرضاً الخ)

﴿۲﴾ (الدر المختار ۵:۳۰٦-۳۰۷، کتاب إحیاء الموات )

﴿۳﴾ وفی شرح التنویر : إذا أحیا مسلم أو ذمی أرضاً غیر منتفع بها ولیست بمملوکة لمسلم ولا ذمی......وهی بعیدة من القریة إذا صاح من بأقصی العامر وهو جهوریّ الصوت لا یسمع بها صوته ملکها.(الدر المختار ۵:۳۰۷، کتاب إحیاء الموات)

وفی الهندیة :قال القدوری فما کان عادیا أی قدم......(بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

رواجي او کاغذي دي، په دیکښې د نارینه وو لپاره برخه ورکول هیڅ د اعتراض ور نه دي، ﴿۱﴾ وهوالموفق .

## د غره په لمن کې د حوض جوړولو له امله شاوخوا خلك منع کول

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې ما د غره په لمن کې یو حوض جوړ کړی دی او شاوخوا عامره ځمکه لري، اوس چې ددې شاوخوا کوم خلك قبر کني او یا هم قبضه کوي؛ نو زما لپاره د دوی منع کول جائز دي او که ناجائز؟ او زما دا قبضه صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: رحمان الدین ضلع کوهاټ ډاکخانه کربوغه ..... ۱۹۹۰ م / ۳/۲۸/

**جواب**: که دا شاوخوا ځمکه د حکومت په کاغذونو کې د چا پسې وي؛ نو هغه یې مالك دی او که دا ځمکه د چا په نوم نه وي؛ نو بیا به عرف او رواج ته اعتبار وي، لکه د کوهي په مسئله کې چې فتاوی هندیه ۵: ۳۸۷ لیکلي دي: و اذا حفرَ بئراً فی أسفلِ جبلٍ ملکه الی أعلاه کذا فی الغیاثیـــةِ ﴿۲﴾ وفی المجلة المادة : ۳۶، العادة محکمة یعنی أنَّ العادة عامة کانتْ أوْ خاصة تجعـــلُ حکماً لاثباتِ حکمٍ شرعی﴿۳﴾ دغه راز لکه څرنګه چې وړوکی نهر

---

(بقیه حاشیه) خرابه لا مالک له أو کان مملوکًا فی الإسلام لایعرف له مالک بعینه وهو بعید عن القریة......فهو موات.

(فتاوی هندیة ۵: ۳۸۶ ، کتاب إحیاء الموات ، الباب الأول فی تفسیر الموات)

﴿۱﴾ وفی شرح المجلة : یعمل أیضًا بسجلات المحاکم إذا کانت قد ضبطت سالمة عن الفساد والحیلة علی الوجه الذی یذکر فی باب القضاء.

(شرح المجلة ۵: ۳۸۷ ، المادة ۱۷۳۸ ، الفصل الأول فی بیان الحجج الخطیة)

﴿۲﴾فتاوی هندیة۵: ۳۸۷ ، کتاب إحیاء الموات ، الباب الأول فی تفسیر الموات الخ)

﴿۳﴾(شرح المجلة لسلیم رستم باز رحمه الله تعالی ۳۴ ، المادة ۳۶ )

حریم لري؛ نو حوض هم حریم لري، کما یدل علیه ما فی الهندیة ۵: ۳۹۱: و کذا العینُ والحوضُ الذی دخلَ فیهِ الماء بغیرِ احرازٍ و احتیالٍ فهوَ بمنزلةِ النهرِ الخاصِّ، ﴿۱﴾فافهمْ ، وهوالموفق .

## د موات یا شریکي ځمکې په ابادولو د مالک جوړېدو حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زموږ قومي شریکي ځمکه ده، نیمه باراني ده او نیمه اوس هم د کرلو ده، نیمه یې تقسیم شوې ده او نیمه یې لا پاتې ده، اوس هغه باراني ځمکه هم خپلې اوبه لري او قیمت یې پورته شوی دی، په متنازع فیه ځمکه کې یو سړي د کرلو والا ځمکه خرڅه کړه، دویمه ډله ورته په هغه باراني ځمکه کې خپله برخه نه ورکوي او په زوره یې د هغوی په باراني ځمکه قبضه کړې ده، دا دویمه ډله په قانوني او شرعي توګه دا باراني ځمکه خپل حق ګڼي، اوس تاسو موږ ته شرعي فیصله وکړئ چې دا جنګ ختم شي؟ بینوا توجروا

المستفتي: قوام الدین تجوړي بنو

**جواب:** که متنازع فیه ځمکه موات وي؛ نو ابادوونکی یې شرعي مالك دی، که ځمکه شریکي بې تقسیمه وي؛ نو ابادوونکی یې په ابادولو مالك نه جوړیږي، لما فی شرحِ المجلةِ ص ۶۸۸ : الأولُ أنْ تکونَ الأرضُ غیرَ مملوکةٍ لأحدٍ سواءٌ کانَ فیها آثارُ العمارةِ أوْ لا ، لِأنّهـــا لوْ کانت مملوکةً لمسلمٍ أوْ ذمی لمْ تکنْ مواتاً وانْ مضتْ علیها القرونُ وصارتْ خربةً﴿۲﴾وهوالموفق.

﴿۱﴾فتاوی هندیة ۵: ۳۹۱، کتاب الشرب، الباب الأول فی تفسیره ورکنه)

﴿۲﴾( شرح المجلة۳: ۲۰۲،المادة ۱۲۷۰ ، الفصل الخامس فی إحیاء الموات)

## د غیر مملوک غر په ابادولو د مالک کېدو مسئله

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې په بټ خېله کې په یو غیر اباد غر او ځمکه باندې د خلکو جنګ دی، د مفتي صاحب په حکومت کې اخباري بیان راغلی ؤ چې په غره کې چا ځان ته څومره ځمکه هواره کړه بس هغه یې مالك دی، دغه راز که اوس څوك په غره کې ځان ته د کولنګ په ذریعه ځمکه هواره کړي؛ نو ددې مالك به څوك وي؟ دلته ګوجر خلك اوسیږي او ځانونو ته یې په خواری ځایونه په غره کې تیار کړي دي، اوس ځینې ظالمان یې نه پرېږدي او په زوره ترې ځمکې اخلي. بینوا توجروا

المستفتي: مولوي محمد زرین بټ خېله ...... ۱۹۷۵م / ۳/ ۹/

**جواب:** کوم غر چې د چا مملوك نه وي او د عامو خلکو ګټې ورسره نه وي تړلي؛ نو په شریعت کې یې هغه څوك مالك دی چا چې اباد کړ، (هندية ۵: ۴۲۰)﴿۱﴾ورد المحتار ۵: ۲۸۶﴿۲﴾فليراجعْ ، وهو الموفق .

---

﴿۱﴾ وفي الهندية: قال القدوري فما كان عاديًا أي قدم خرابه لا مالك له أو كان مملوكًا في الإسلام لايعرف له مالك بعينه وهو بعيد عن القرية بحيث إذا وقف إنسان من أقصى العامر فصاح لم يسمع الصوت فيه فهو موات......وإذا حفر بئرًا في أسفل جبل ملكه إلى أعلاه.

(فتاوى هندية ۵:۳۸۷، كتاب إحياء الموات ، الباب الأول في تفسير الموات الخ )

﴿۲﴾قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :وفي الملتقى: الموات أرض لا ينتفع بها عاديةً أو مملوكةً في الإسلام ليس لها مالك معين مسلم أو ذمي وعند محمّد إن ملكت في الإسلام لا تكون مواتًا......قوله وهو المختار أي اشتراط البعد المذكور، لأن الظاهر أنّ ما يكون قريبًا من القرية لا ينقطع ارتفاق أهلها عنه فيدار الحكم عليه.

(رد المحتار ۵:۳۰۶ ـ ۳۰۷، كتاب إحياء الموات )

## زموږ د هېواد تقسيم كوم عادل پاچا كړی دی؟

## زموږ په ښارونو كې د پاچا له خوا د ځمكو د ابادولو عام اجازت دی

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ ملك (هېواد) خو تقسيم شوی؛ نو دا كوم عادل پاچا تقسيم كړی دی؟ ځكه چې كورنی تقسيم خو جائز نه دی، په قاضي خان كې يې ليكلي دي: مَنْ أحيى الأرضَ الميتةَ بغيرِ اذنِ الامامِ فهو فى حكمِ المواتِ . بينوا توجروا

المستفتي: دوست محمد قادري رضوي خركی ملا كنډ ..... ١٣٩٩ هـ / رمضان المبارك /١٨/

**جواب**: كه يو سړی دا دعوه وكړي چې دا ښارونه مسلمانانو په زوره فتح كړي دي، د دوی مالونه غنيمت، ښځې او نارينه يې مينځې او غلامان دي، په دې ټول هېواد كې څوك ازاد انسان نشته، ټول د مينځو بچيان دي، مالكان او اربابان يې نامعلوم دي؛ نو ايا دا انكحه او توارث به پرېښودلای شي؟

**يادونه**: په دې ښارونو كې د پاچا له خوا د ځمكې د ابادولو عام اجازت دی.

# باب الشربِ

## د شریکانو بې اجازې د غره د اوبو ویاله بندول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د غره څخه د اوبو یوه ویاله راروانه ده، ښي او چپ طرفونو ته یې ځمکې ابادي دي، د یو طرف ځمکو والا د خپلې ځمکې د اوبولو لپاره د ویالې بندولو ته بند تړي، نور خلك ورته وایي چې د ځمکې د خړوبولو لپاره دلته بند مه تړه ځکه چې دا بیا زموږ ځمکو ته زیان اړوي. ایا دا نور خلك بند منع کولای شي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد دراز وزیرستان ..... ۱۴۰۲ هـ / رمضان المبارك /۸/

**جواب:** که ددې بند تړلو له امله نورو ځمکو ته زیان رسېدل یقیني او یا هم غالب وي؛ نو بیا د بند منع کول جائز دي، که زیان رسېدل هسې وهم وي بیا یې منع کول جائز نه دي، کما فی الهندیةِ وکذا لوْ أرادَ واحدٌ منهمْ أنْ ینصبَ علیهِ رحی ماء لَمْ یکنْ له ذلك الابرضاء أصحابه فانْ کان الموضع الذی یضع علیه الرحی ملکه بانْ کانت حافتا النهرِ وبطن النهرِملکه و یضره حق اجراء الماءِ ینظران أضرَّ باجراء الماءِ منع عنهُ وانْ لَمْ یضرلم یمنعْ عنه،《۱》وهو الموفق.

---

《۱》(الفتاوی الهندیة ۵: ۳۹۶ الباب الثالث فیما یحدثه الإنسان وما یمنع عنه)

وقال العلامة الحصکفی: (ولیس لأحد من الشرکاء) فی النهر (أن یشق منه نهرا أو ینصب علیه رحی)إلا رحی وضع فی ملکه ولا یضر بنهر ولا بماءٍ......(بلا رضاهم). (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله إلا رحی وضع فی ملکه) صورته أن یکون حافتا النهر وبطنه ملکا له ولغیره حق إجراء الماء. (ردالمحتار ۵: ۳۱۳ فصل الشرب)

## په مملوکه ځمکه کې د نهر کنستلو نه منع کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یوه ځمکه په دوه برخو تقسیم شوې چې په منځ کې کوم نهر نه لري، د دواړو برخو مالکانو هر یو خپلې ځمکې ته خلور طرفه دېوال وهلی دی، دویمې برخې والا د دېوال سره نزدې د ځان لپاره نیم ګز خالي ځای د نهر لپاره ایښی دی، ایا هغه بل سړی دی ددې نهرکنستلو نه منع کولای شي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي محمد عثمان ډاکخانه بلوزئی ضلع پشین ..... ۱۴۰۹ هـ/ رمضان المبارک/۱۹/

**جواب:** د اول سړي لپاره جائز نه دي چې دویم سړی د نهر کنستلو نه منع کړي، ځکه چې دا ضرر فاحش نه دی. کما فی شرح المجلة ص ۶۵۸، المادة: ۱۱۹۹، الضرر الفاحش هو كل ما يمنع الحوائج الأصلية يعنى المنفعة الأصلية المقصودة ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## د غره چینه د زړې لارې نه بلې لارې ته منع کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زموږ په کلي کې د غره نه له پخوا راهیسې په زړه لاره یوه چینه بهیږي او د اوبو په اندازه کې یې هم تر اوسه کوم فرق نه دی لیدل شوی، درې کاله کیږي چې کله اوبه بیخي ختمې شي او کله ډیرې کمې راځي، کله چې موږ معلومه کړه؛ نو د غره نه بل خواته خلکو ځان ته اوبه تاو کړې وې، موږ دغو خلکو نه ورغلو

﴿۱﴾(شرح المجلة ۳: ۱۳۲ المادة: ۱۱۹۹: الفصل الثانى فى حق المعاملات الجوارية)

وقال ابن عابدين رحمه الله تعالى: والذى استقر عليه رأى المتأخرين أن الإنسان يتصرف فى ملكه وإن أضرّ بغيره مالم يكن ضررًا بيّنا، وهو ما يكون سببا للهدم أو ما يوهن البناء أو يخرج عن الانتفاع بالكلية وهو ما يمنع من الحوائج الأصلية كسد الضوء بالكلية والفتوى عليه. (ردّ المحتار ۵: ۱۹۱، قبيل كتاب المزارعة)

چي ګورئ د ډير وخت نه دغه اوبه زمونږ په طرف راروانې وې او اوس تاسو بې اجازې اړولې دي، په ديکښې ستاسو هيڅ حق نشته؛ خو هغوی بيا - بيا داوينا کوي چې مونږ ته هم پکښې نيمې اوبه راکړئ! اوس ددې مسئلې شرعي حکم څه دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: ګل نواز پاړا چنار کرم ايجنسی ..... ۱۹۷۲م / ۹ / ۲۰/

**جواب:** که د پورته خلکو بند بې ځايه کړی نه وي، بلکې په خپل زور حالت بې همداسې پرې اينبی وي؛ نو د لاندې خلکو دعوو ته هيڅ اعتبار نشته. يدلُّ عليه ما فى الهندية ۵: ۴۳۱: والماء الذى ينحدرُ عنِ الجبلِ فى الـوادى اختلفوا فيهِ ، قيلَ: لأهلِ الأعلى السكر والمنع عنْ أهلِ الأسفلِ ولكنْ ليسَ لهمْ قصد الاضرارِ بأهلِ الأسفلِ فى منعِ المـاءِ مـا وراء الحاجـة واختـاره السرخسى رحمه الله تعالى وقيل الخ﴿۱﴾وهو الموفق .

## د مالکانو بې اجازې د ويالې نه اوبه وړل

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په يو کلي کې د سلو کالو نه يوه زړه وياله د اوبو لپاره کنستل شوې ده، په کومه ځمکه کې چې دا وياله کنستل شوې ده، دا يوازې د همدغو کليوالو ده او هغوی دا وياله د خپل جومات او باغونو لپاره کنستلې وه. اوس دوی غواړي چې د ويالې په ځمکه کې د اوبو پيپ تېر کړي، اوس دويمه داسې ډله ده چې نه يې د ويالې سره کار ؤ او نه يې هم د اوبو د پيپ سره کار شته او وايي چې:

﴿۱﴾ (الفتاوى الهندية ۵: ۳۹۶، الباب الثالث فيما يحدثه الإنسان وفيما يمنع عنه)

وفى النتف فى الفتاوى: وأما الماء الذى ينبع من الجبال فينصب إلى الأودية أو ماء الأمطار والسيول فإنها لمن سبقت إليه (يده) فيكون أولى بالسقى حتى يرتوى ثم الذى يليه، وإن جرى لقوم فيها رسم حملوا على ذلك الرسم، و ليس لأحد منهم أن ينقض ذلك الرسم. (النتف فى الفتاوى ص ۳۸۳ كتاب الشرب : ماء النبع)

ددې پیپ څخه به موږ ته هم اوبه راکوئ؛ ایا په شریعت کې ددې سړي زموږ سره د اوبو حق شته او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: د پاولا کچبوړی ضلع مانسهرې اوسېدونکي ...... ۱۹۷۹ م / ستمبر/۱۶/

**جواب:** ددې بل سړي لپاره هیڅکله نه دي جائز چې د دوی د پیپ نه اوبه په زوره واخلي او یا هم د هغوی د اوبو ویاله بنده کړي، کما فی شرح المجلة ص ٦٥٧: لا يمنعُ أحدٌ من التصرفِ في ملكه أبداً الا اذا أضرَّ بغيره ضرراً فاحشاً﴿۱﴾و فيهِ أيضاً ص ٦١، لا يجوزُ أنْ يتصرفَ في ملك غيره بلا اذنه﴿۲﴾وهو الموفق.

## د غره په لمن کې د شریکانو بې اجازې تصرف کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې په څمکو باندې کوم بند شرقاً او غرباً جوړ شوی دی، د مغرب خواته چې کوم بند دی هغه زما دی او مشرق خواته چې کوم بند دی هغه د بل سړي دی، د دوی څمکو ته اوبه د جنوب له خوا راځي لومړی مغربي خواته زما څمکې اوبه کوي بیا چې کله زما نه زیاتي شي؛ نو بیا مشرقي خواته ورځي او د هغوی څمکې اوبه کوي، د پورته څخه د راتلونکو اوبو لومړی حق دار زه یم،

﴿۱﴾(شرح المجلة ۳: ۱۴۰، المادة ۱۱۹۷: قبيل الفصل الثاني في حق المعاملات الجوارية)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولا سقى ارضه وشجره وزرعه و نصب دولاب ونحوها من نهر غيره وقناته وبئره إلا باذنه......ولو كانت البئر أو الحوض أو النهر في ملك رجل فله أن يمنع مريد الشفة من الدخول في ملكه.

(الدر المختار ٥: ٣١١-٣١٢، فصل الشرب)

﴿۲﴾(شرح المجلة ۱: ۲۶۲، المادة: ۹۶)

په داسې حال کې چې د پورته څخه کومي اوبه راځي؛ نو مخي ته يې لوړې زما بند دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولانا علي جان لورالائی بلوچستان ..... ۱۴۰۳ هـ / ربیع الثانی /۴/

**جواب:** د فقهاؤ مشهوره قاعده ده: القديمُ يترك على قدمه په بناء د دښکته يا پورته شينکيو لمنو او به نوي خلك د زړو خلكو بې اجازې نه شي استعمالولای. ﴿۱﴾ والله أعلمُ.

## د چا په مملوکه چينې باندې د شرب دعوه کول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په بيره نومي ځای کې مي خپله ځمکه ده او په هغې کې يوه چينه ده چې د پلار او نيکونو له وخته مو پرې خپل کښت او پټي اوبه کول، څوك شريك مو نه درلود او کومي اوبه چې به لاندې رواني وې؛ نو هغه به تر څلور فرلانګه پورې همداسي رواني وې، اصلي چينه په خپله زما په واك کې ده. اوس څلور فرلانګه لرې خلك راپورته شوي او وايي چې د چينې اوبه راسره نيمې کړه! په دې اړه پاك او سپېڅلی شريعت موږ ته څه حکم کوي؟ بينوا توجروا

المستفتي: سبوق د بيله او سېدونکی تحصيل توګره پټن ضلع کوهستان ..... ۱۴۰۳ هـ / شعبان /۲۷/

**جواب:** په شرط ددې چې رښتيا وي، په دې چينه کې د مملك کوهي په څېر څوك د شرب دعوه نه شي کولای، كما يدلُّ عليه في الهندية ۵: ۳۹۱ و ليسَ لأحد أنْ يسقى أرضــه أوْ زرعه منْ نهر الغير أوْ عينه أوْ قناته اضطرَّ لذلك أوْ لمْ يضطرَّ الخ ولو كانت البئرُ او العينُ

---

﴿۱﴾وفي شرح المجلة: القديم يترك على قدمه يعنى القديم المشروع مالم يوجد دليل على خلافه يترك على حاله لحسن الظن بالمسلمين بأنه ما وضع إلا بوجه شرعى...... ،هذه القاعدة تجرى فى حق المرور والمجرى والمسيل وحق الشرب أو إحداث زيادة كوة من أحد الشركاء فى النهر الخاص. (شرح المجلة ۱: ۲۳ ، المادة: ۶)

أوِالحوضُ أوِ النهرُ فی ملك رجلٍ فله أنْ يمنعَ من يريد الشفة من الدخولِ﴿۱﴾

وهو الموفق .

﴿۱﴾ (الفتاوی الهندية ۵: ۳۹۱ ،كتاب الشرب، الباب الأول فی تفسيره)

وقال العلامة الحصكفی رحمه الله تعالیٰ: ولا سقی أرضه وشجره وزرعه ونصب دولاب ونحوها من نهر غيره وقناته وبئره إلا بإذنه...... ولو كانت البئر أو الحوض أو النهر فی ملک رجل فله أن يمنع مريد الشفة من الدخول فی ملکه.

(در مختار ۵: ۳۱۱،۳۱۲: فصل الشرب)

قال النبی

صلی اللّٰہ علیه وسلّم

لعدی بن حاتم إذا أرسلت کلبک المعلّم

وذکرت اسم اللّٰہ فکل و إن أکل منه فلا

تأکل لأنّه أمسک علی نفسه .

(متفق علیه)

# کتاب الصيد

قالَ النبيُّ صلى الله عليه وسلمَ: لعديِّ بنِ حاتمٍ اِذا أرسلتَ كلبكَ المعلَّمَ و ذكرتَ اسمَ اللهِ فكُلْ وإنْ أكلَ منهُ فلا تأكلْ لأنّه أمسكَ على نفسه . (متفقٌ عليه)

## د ښکار حکم

**سوال:** د دین عالمانو او مفتیانو ددې مسئلې په اړه څه وايي چې يو سړی د ښکار ډېر شوق لري، په شريعت کې داسې سړي ته ترکومه پورې د ښکار اجازه ده، ايا روزانه په ښکار کولو سره خو به ګناهګار نه وي؟ بينوا توجروا

المستفتي: بهادر کوټکی ..... ۱۹۷۵م/۸/۱۰/

**جواب:** ستاسو درانه حضور ته السلام عليکم! ښکار کول خپله يو مباح کار دی؛ خو ډېر وخت ښکار کول ښه نه دي، ددې لپاره چې په غفلت کې اخته نه شي﴿۱﴾ او د کوم ښکار له امله چې لمونځ قضا کيږي او يا هم جماعت ته پکښې نقصان رسيږي بيا ناجائز دی.﴿۲﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ: هو مباح بخمسة عشر شرطاإلا لمحرم في غير الحرم أو للتلهي أو حرفة على ما في الأشباه.

وقال العلامة الشامي رحمه الله تعالىٰ: قوله مما يورث السرور و قبل الغفلة واللهو لحديث من اتبع الصيد فقد غفل) .(الدر المختار مع رد المحتار ۵: ۳۲۸كتاب الصيد )

﴿۲﴾ قال العلامة ابن حجر رحمه الله تعالىٰ: كل لهو باطل إذا شغله أي شغل اللاهي به عن طاعة الله أي كمن التهى بشيء من الأشياء مطلقا سواء كان ماذونا في فعله او منهيا عنه كمن شغل بصلاة نافلة أو بتلاوة أو ذكر أو تفكر في معاني القرآن مثلاً حتى خرج وقت الصلوٰة المفروضة عمدًا فإنه يدخل تحت هذا الضابط، وإذا كان هذا في الأشياء المرغب فيها المطلوب فعلها فكيف حال ما دونها.

(فتح الباري ۱۱: ۹۱، كتاب الإستئذان ، باب كل لهو باطل إذا شغله عن طاعة الله)

**ښکار ساتل، په قفس کې بندول، الوزول او په خپل منځ کې یې جنګول**

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې خلك ازاد مرغان لکه کوتره، مرز او فاخته (دا د کوترې په شکل کې وي، په کابل کې ډېرې دي (ژباړن) نيسي، په قفس کې يې بندوي او مرزان خو بيا د يو بل سره جنګوي، د الله په نزد به يې د ساتونکو څه حال وي؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد صادق پېښی ..... ۱۴۰۲ هـ / صفر المظفر /۳۰/

**جواب:** د ښکار ساتل روا دي، ﴿۱﴾ لحديث يا أبا عمير ما فعل النغير ﴿۲﴾ خو په قفس کې يې بندول او د يو بل سره يې جنګول روا نه دي، لما في الهندية ۵: ۴۱۶: حبس بلبلاً في قفصٍ وعلفها لا يجوزُ كذا في القنيةِ ﴿۳﴾ ولحديثٍ نهى عنِ التحريشِ بينَ البهائمِ رواهُ ابوداؤدَ ﴿۴﴾ د مارغانو الوزول هم منع دي، لحديثِ شيطانة يتبها الشيطان (مشكوة) ﴿۵﴾ څوك چې دا كارونه كوي هغه به ګناهګار وي وهوالموفق

**د شاهين او باز ښکار کول او الوزول**

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په اوسني دور کې خلك د باز او شاهين ښکار کوي، په شريعت کې د داسې ښکار څه حکم دی؟ دغه راز که دا حيوانات خرڅ شي؛ نو د دې روپو استعمال

﴿۱﴾ قال المحدث على القارى رحمه الله تعالى: لا بأس أن يعطى الصبي الطير ليلعب به من غير أن يعذبه . (مرقاة المفاتيح ۹: ۱۲۲، باب المزاح)

﴿۲﴾ (الصحيح للإمام البخارى ۲: ۹۰۵ كتاب الأدب، باب الانبساط إلى الناس)

﴿۳﴾ (فتاوى هندية ۵: ۳۸۱ كتاب الكراهية ، الباب الثلاثون فى المتفرقات)

﴿۴﴾ (سنن ابى داؤد ۲: ۳۴۶ كتاب الجهاد ، باب فى التحريش بين البهائم)

﴿۵﴾ (مشكوة المصابيح ص ۳۸۶ باب التصاوير)

خنګه دی؟ ځینې خلک وايي چې دا خپله مردار دي؛ نو په پیسو یې خرڅول هم حلال نه دي، بینوا توجروا

المستفتي: باز محمد ولد نور خان پوسټ ماسټر ډاکخانه تجوړي بانک .....

۱۹۸۵م/۲/۱۱/

**جواب**: د دغو مارغانو ښکار کول روا دي، د هدايې لیکوال لیکي چې د ښکار کولو نه مطلب کله - کله غوښه وي، کله څرمن او کله هم د تکلیف لرې کول وي، ﴿۱﴾ په هر حال چې وي؛ نو باز او شاهین خو لوی مارغان دي. ددې په ښکار کولو کې خفاء (پټوالی) له کومه شو؟ ﴿۳﴾ وهو الموفق

## مارغان بندول

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د مارغانو بندول څنګه دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: اکرام الحق راولپنډی ..... ۱۹۷۸م/۱۱/۹/

**جواب**: د مارغانو بندول ناجائز دي، یدلُّ علیه ما فی الهندیة: حبس بلبلاً فی قفص و علفها لا یجوزُ کذا فی القنیة، ﴿۳﴾ وهو الموفق.

﴿۱﴾ وفی الهدایة: ویجوز اصطیاد مایؤکل لحمه من الحیوان وما لایؤکل ...... ولأن صیده سبب للانتفاع بجلده أو شعره أو ریشه أو لاستدفاع شره وکل ذلک مشروع.

(هدایة۴: ۵۱۵، کتاب الصید، فصل فی الرمی)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالیٰ: ویحل الصید بکل ذی ناب ومخلب من کلب وباز ونحوهما بشرط قابلیة التعلیم وبشرط کونه لیس بنجس العین.

(الدر المختار ۵: ۳۲۹، کتاب الصید)

﴿۳﴾ (فتاوی هندیة ۵: ۳۸۱ کتاب الکراهیة، الباب الثلاثون فی المتفرقات)

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: وفی القنیة رامزًا حبس بلبلًا فی القفص وعلفها لایجوز. (رد المحتار ۵: ۲۸۳ کتاب الحظر والإباحة: فصل فی البیع)

## د ملخ (جراد) تعریف او حکم یې

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زموږ په بلوچستان کې یو قسم حیوان دی او زموږ خلك ورته تاز وایي، خلك یې نیسي او په غوړو کې یې ځان ته کبابوي، ما ویل که دا د عربو هغه جراد وي؛ نو ددې څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا غلام سرور صاحب د کویټې ښار

**جواب:** ملخ (جراد) حلال دی، کما صرح به فی الحدیث﴿۱﴾ والفقه﴿۲﴾ ددې لوی-لوی سیلونه وي، دا شنه او توروالي ته چې کوم نژدې وي او په غنمو کې چې کښیني؛ نو مردار بوی ترې ځي، دا جراد نه دي، د قواعدو په رڼا کې ددې خوړل هم مباح دي، لحدیثِ أبي داوُدَ: وماسکتَ عنهُ فهوعفوٌ﴿۳﴾ خو که د بدن روغتیا ته تاوان کوي﴿۴﴾ بیا یې خوړل صحیح نه دي، وهو الموفق.

---

﴿۱﴾عن عمر رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله ﷺ: أحلت لنا میتتان ودمان المیتتان الحوت والجراد والدمان الکبد والطحال.
(مشکوة المصابیح ۲: ۳۶۱، کتاب الصید، باب ما یحل أکله وما یحرم، الفصل الثانی)

﴿۲﴾قال العلامة الشامی رحمه الله تعالی: وکل ما لادم له فهو مکروه أکله إلا الجراد.
(ردالمحتار ۵: ۲۱۵ کتاب الذبائح)

﴿۳﴾عن ابن عباس رضی الله تعالی عنه قال کان أهل الجاهلیة یأکلون أشیاء ویترکون أشیاء تقذرًا فبعث الله نبیه ﷺ وأنزل کتابه وأحل حلاله وحرم حرامه فما أحل فهو حلال وما حرم فهو حرام وما سکت عنه فهو عفو. (ابوداؤد ۲: ۵۳۹، کتاب الأطعمة، باب مالم یذکر تحریمه)

﴿۴﴾وفی الهندیة: أکل الطین مکروه هکذا ذکر فی فتاوی أبی اللیث رحمه الله تعالی وذکر شمس الأئمة الحلوانی فی شرح صومه إذا کان یخاف علی نفسه أنه لو أکله أورثه ذلک علة أو آفة لایباح له التناول وکذلک هذا فی کل شیئ سوی الطین.
(فتاوی هندیة ۵: ۳۴۰، کتاب الکراهیة، الباب الحادی عشر فی الکراهیة فی الأکل)

## د څرمنې سره لګېدلې کاټ شوي اندام

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که په ټوپک کوم مارغه ولګيږي او وزر يې کاټ شي يا يې پښه کاټه شي؛ نو د څرمنې پوړې يې پيوست وي او ددې وروسته بيا مارغه حلال شي؛ نو ددې کاټ شوي وزر او پښې څه حکم دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد السلام بوری والا ضلع وهاړی ..... ۱۹۷۸م/۷/۲۲/

**جواب:** د ژوندي حيوان نه کاټ شوی اندام حرام دی. «۱» وهوالموفق.

## فارمي مارغان او هګۍ يې حلالې دي

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې نن سبا د شهور ماشين په واسطه کوم چرګان پيدا کيږي ايا دا حلال دي او که حرام؟ کله چې د توالد او تناسل اختلاط نه وي؛ نو دا قدرتي پيدايش نه شو؛ نو بيا ددې خوړل حرام راځي که حلال او که مکروه؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد عبد الله فردوس کالونی کراچی نمبر ۱۸ ..... ۱۴۰۱هـ/ ربيع الأول/۱۸/

---

«۱» وعن ابى واقد الليثى رضى الله تعالىٰ عنه قال قدم النبى ﷺ المدينة وهم يجبون اسنمة الإبل ويقطعون اليات الغنم فقال ما يقطع من البهيمة وهى حية فهى ميتة لا تؤكل، رواه الترمذى وأبوداؤد.

(مشكوٰة المصابيح ص ۳۵۹ كتاب الصيد والذبائح، الفصل الثانى)

قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالىٰ: العضو يعنى الجزء المنفصل من الحى حقيقة وحكما .......كميتته كالأذن المقطوعة.

(الدرالمختار ۵:۲۱۸ قبيل كتاب الأضحية)

**جواب**: د صحیح حدیثونو ﴿۱﴾ او فقهاء کرامو د تصریحاتو له مخې ﴿۲﴾ دا مرغان حلال دي، برابره خبره ده چې دا مرغان د بل مرغه نه پیدا شي، که د ماشین په ذریعه پیدا شي او که بې ماشینه پیدا شي، دغه راز ددې مرغانو هګۍ هم حلالې دي، ﴿۳﴾ وهوالموفق .

## د پلاسټک څخه جوړ شوي ماهیانو او چینجیانو باندې ښکار کول

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې په ښار کې د پلاسټك څخه جوړ شوي ماهیان او چینجیان د ښکار کولو لپاره خرڅیږي، د ژوندي ساه لرونکو حیواناتو سره د مشابهت له امله ددې شیانو جوړول او په دې باندې ښکار کول حلال دي او که حرام؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد السلام بوری والا ضلع وهاړی ..... ۱۹۸۷م / ۱۱ / ۲۲/

﴿۱﴾عن زهدم الجرمی قال دخلت علی ابی موسیٰ وهو یاکل دجاجة فقال: ادنُ فکل فإنی رأیت رسول الله ﷺ یاکله هذا حدیث حسن.

(سنن الترمذی ۲ :۵، أبواب الأطعمة : باب ماجاء فی أکل الدجاج )و

(مشکوٰة المصابیح ۲ : ۳٦۰، باب مایحل أکله )

﴿۲﴾ وفی الهندیة : والمستأنس منه کالدجاج والبط......والغراب الذی یاکل الحب والزرع ونحوها حلال بالإجماع ،کذا فی البدائع.

(فتاوٰی هندیة۵ : ۲۸۹، الباب الثانی فی بیان ما یؤکل من الحیوان )

﴿۳﴾قال العلامة الکاسانی رحمه الله تعالیٰ: وإذا خرجت من الدجاجة المیتة بیضة تؤکل سواء اشتد قشرها أو لم یشتد ......لنا انه شیٔ طاهر فی نفسه مودع فی الطیر منفصل عنه لیس من أجزائه فتحریمها لایکون تحریمًا له .

(بدائع الصنائع۴ : ۱٦۰ ،کتاب الذبائح : بیان کیفیة الذبح )

**جواب:** د ژوندي ساه لرونکي حيوان عکس جوړول ناجائز دي،﴿۱﴾ خو په دې سره بيا په ښکار کولو کې مرسته حاصلول بيا ناروا نه دي. وهوالموفق.

## د ژوندي حيوان کاټ شوي اندام حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې يو سړي په غشي يو حيوان وويشت او په غره ولوېد، ددې حيوان د بدن کومه برخه د غره دپاسه پاتې شوه، کله چې حيوان لاندې رانښکته شو؛ نو هغه يې حلال کړ، د هغه پاتې شوي اندام خوړل څنګه دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: حبيب الرحمن شير کلي ضلع راولپنډۍ ...... ۱۴۰۱ هـ/ ۸/ ۱۶/

**جواب:** د حديثو او فقهي روايتونو په رڼا کې د کوم ژوندي حيوان اندام چې غوڅ شي؛ نو د هغې خوړل بيا حرام دي،﴿۲﴾ هداية ﴿۳﴾ شامي.وهوالموفق.

---

﴿۱﴾عن عبد الله بن مسعود رضی الله تعالیٰ عنه قال سمعت رسول الله ﷺ يقول: أشد الناس عذابًا عند الله المصوّرون متفق عليه .(مشکٰوة المصابيح ص ۳۸۵، باب التصاوير)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالیٰ: وظاهر كلام النووی فی شرح مسلم الاجماع علی تحريم تصوير الحيوان ، وقال وسواء صنعهٗ لما يمتهن أو لغيره فصنعته حرام بكل حال لأن فيه مضاهاة لخلق الله تعالیٰ .

(رد المحتار ۱: ۴۷۹ مكروهات الصلاة : مطلب إذا تردد الحكم بين سنة وبدعة)

﴿۲﴾وفی الهداية :وإذا رمی صيدا فقطع عضوًا منه أكل الصيد لما بيناه، ولا يؤكل العضو ......لقوله عليه السلام ما ابين من الحی فهو ميت.(هداية ۴: ۵۱۳ كتاب الصيد ،فصل فی الرمی)

﴿۳﴾قال العلامة الحصكفی رحمه الله تعالیٰ: كصيد رمی فقطع عضو منها فانه يؤكل لا العضو خلافاللشافعی، ولنا قوله عليه الصلٰوة والسلام: ( ماأبين من الحی فهو ميتة).

(الدرالمختار ۵: ۳۳۶ كتاب الصيد )

## خنزیر ولې حرام دی؟

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زما د کور سره نژدې د محمد حیات خان کور هم دی. کله - کله مو د کافرانو سره بحث راشي؛ نو هغوی زموږ نه پوښتنه کوي چې تاسو خنزیر ولې حرام ګڼئ؟ نو موږ دا اقرار ورسره کوو چې حرام خو دی لیکن موږ ته پوره معلومات نشته چې ولې حرام دی؟ اوس تاسو راته ددې معلومات راکړئ! بینوا توجروا

المستفتي: محمد اعظم لندن ..... ۱۹۸۹ م / جون /۱۷/

**ځواب:** تاسو د دوی نه پوښتنه وکړئ چې خنزیر ولې حلال دی او څه ګټې پکښې دي؟ دغه راز خنزیر ډېر بې غیرته حیوان دی، ځکه چې دوی د یو ښځینه خنزیر سره په یو وخت کې ډېر زیات خنزیران جماع کوي، دغه راز خپله مرداري خپله خوري او څوک چې د کوم حیوان غوښه خوري په هغه کې یې نښې موجودیږي، ﴿۱﴾ فقط وهوالموفق.

## د ماهیانو په نیولو کې د شراکت حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د ماهیانو د ښکارې سره څوک په داسې معامله شرکت وکړي چې د ښکار آلات به عاریتاً یا تملیکاً زه درکړم او عمل به ستا وي، د آلاتو ورکوونکي به مثلاً ۴/۱ یا ۳/۱ برخه وي؛ نو ددې څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد السلام ضلع وهاړی ..... ۱۹۸۷ م / ۱۱ / ۲۲/

﴿۱﴾قال العلامة محمد کامل رحمه الله تعالی: سئلت عن علة تحریم أکل الخنزیر ماهی؟ فأجبت بما فی تفسیر الشیخ الأکبر قدس سره من أن العلة فی تحریمه غلبة السبعیة والشرة ومباشرة القاذورات والدیاثة علی طبعیته فیولد أکله فی آکله ذلک والله تعالی أعلم.
(فتاوی کاملیة ۲۷۳ کتاب الحظر والإباحة، مطلب فی علة تحریم أکل الخنزیر)

**جواب**: د ماهيانو په نيولو کې شراکت ته هيڅ عتبار نشته. دا ټول صورتونه کالعدم دي، كما فى شرحِ التنويرِ : لا تصحُ شركة فى احتطابٍ و احتشاشٍ و اصطيادٍ و استقاءٍ و سائرِ مباحاتٍ ... وما حصله أحدهما فله و ما حصلاهُ معاً فلهما الخ هامش رد المختارِ ۱: ۴۸۲، ۴۸۳﴿۱﴾ وهوالموفق.

**د حلالولو پرمهال د بدن نه په تېزۍ سره وينې وتلو سره ښکار حلال دی**

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې يو سړي د ښکار کولو پرمهال په ټوپك بسم الله وويل او ښکار لاندې راولوېد؛ خو په هغه کې د ژوند هيڅ اثر نه ؤ او نه هم څه حرکت پکښې ؤ. کله چې يې حلالولو؛ نو وينه يې په تېزۍ سره ووتل، اوس به دا ښکار حلال وي او که حرام؟ که وينه ونه وځي؛ نو بيا به يې څه حکم وي؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: بهادر ګل کوټکی ...... ۱۳۹۵ هـ / شوال / ۱۳/

**جواب**: د کوم حيوان نه چې د حلالېدو پرمهال تېزه وينه ووځي؛ نو هغه پاك دی، اګر که د ژوند بله هيڅ علامه پکښې نه وي، كما فى ذبائح الدر المختارِ : ذبحَ شاةً مريضةً فتحركتْ أوْ خرجَ الدمَ حلتْ و الا لا انْ لمْ تدرِ حياتــه ، وفى رد المختارِ ۵: ۲۰۲ ،قوله أوْيخرجُ الدم أى كمايخرج منَ الحى﴿۲﴾ وهوالموفق.

﴿۱﴾(الدر المختار ۳: ۳۸۲ كتاب الشركة ، فصل فى الشركة الفاسدة)

وفى الهندية : لاتصح الشركة فى الاحتطاب والاصطياد والاستقاء كذا فى الكافى ......وما اصطاد كل واحد منهما ...... فهو له دون صاحبه.

(فتاوىٰ هندية ۲: ۳۳۲ كتاب الشركة :الباب الخامس فى الشركة الفاسدة)

﴿۲﴾(الدر المختار مع رد المحتار ۵: ۲۱۷ كتاب الذبائح )

وفى الهنـدية : وان ذبح شاة أو بقرة فخرج منها دم ولم تتحرك وخروجه مثل ما يخرج من الحى اكلت عند أبى حنيفة وبه نأخذ. (فتاوىٰ هندية ۵: ۲۸۶ كتاب الذبائح )

## که په ښکار کې هر ډول ژوند وي، نو حلالول يې صحيح دي

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که ښکاري د مرمۍ والا په ټوپك ښكار وولي او د ويشتو سره يې سمدستي حلال كړي، خو ښكاري ته دا معلومه نه شي چې ايا دا حيوان ژوندى ؤ او كه مړ، نو ددې به څه حكم وي؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد گلاب دكاندار دير ...... ۱۹۷۶م/ ۴/ ۳/

**جواب:** په كوم ښكار كې چې ادنى ژوند وي بيا يې هم حلالول صحيح دي او كه بيخي ژوند پكښې نه وي بيا نو مردار دى، كما في رد المحتار ۵: ۴۱۶، و كـذا الفتوى على اعتبارمطلق الحياة في الصيدِ على مامرَّعنِ الزيلعي «۱» وهوالموفق.

## د شمشتی (ضب) ښکار او د حلال گڼونکي حکم يې

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د شمشتى (ضب) خوړونكي او حلال گڼونكي څه حكم لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: غلام نبي لياقت كريانه مرچنټس ميانوالى ..... ۱۴۰۱ هـ/ ۳۰/ ۵/

«۱» (رد المحتار ۵: ۳۳۴ كتاب الصيد)

قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: أن الحياة الخفية معتبرة عنده وعندهما غير معتبرة حتى حلّت المتردية والنطيحة والموقوذة ونحوها بالذكاة إذا كان فيها حياة وإن كانت خفية عنده وعندهما لا تحل إلا إذا كانت حياتها بينة ...... فلا يحل الأكل إلّا بالذكاة كانت حياته خفية أو بينة لجرح المعلم أو غيره من السباع وعليه الفتوى. (البحر ال لرائق ۸: ۲۲۴ كتاب الصيد)

**جواب:** أكلُ الضبِّ مختلفٌ فيه لاختلافِ الرواياتِ الحديثيةِ ﴿١﴾ فليسَ مستحله كافراً ولا فاسقاً و لا مستحقَّ التعزيرِ . وهوالموفق

## د سویکي (خرگوش) حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې دلته په سعودي کې ما د ډېرو خلکو نه اورېدلي دي چې د سویکي (خرگوش) غوښه حرامه ده، موږ د شرعي مسئلې نه خبر کړئ! بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**جواب:** د سویکي (خرگوش) غوښه خوړل حلال دي. لما رواهُ أبو داوُدَ عنْ أنسِ بنِ مالكٍ قالَ كنتُ غلاماً حزوراً فأصدتُ أرنباً فشويتها فبعثَ معي أبوطلحةَ بعجزها

﴿١﴾ عن ابن عباس رضى الله تعالى عنه ان خالد بن وليد أخبره أنه دخل مع رسول الله ﷺ على ميمونة رضى الله تعالى عنها وهى خالته وخالة ابن عباس رضى الله تعالى عنه فوجد عندها ضبًا محنوذًا فقلمت الضبّ لرسول الله ﷺ فرفع رسول الله ﷺ يده عن الضب، فقال خالد أحرام الضب يا رسول الله؟ قال لا! ولكن لم يكن بارض قومى فأجدنى أعافه، قال خالد فاجتررته فأكلته ورسول الله ﷺ ينظر الىّ . متفق عليه . ...... عن عبد الرحمٰن ابن شبل رضى الله تعالى عنه أن النبى ﷺ نهى عن أكل لحم الضب رواه أبوداؤد .

(مشكوة المصابيح ص ٣٦٠، ٣٦١ كتاب الأطعمة)

وقال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى : ولا يحل ذو ناب يصيد بنابه ...... والضب وماروى من أكله محمول على الابتداء . (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :(قوله على الابتداء ) أى ابتداء الاسلام قبل نزول قوله تعالى: وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ .

(رد المحتار مع الدر المختار ٥: ٢١٥ كتاب الذ بائح)

الی النبیّ صلی الله علیه وسلمَ فأتیته بها فقبلها. «۱»والله أعلمُ

## د ملا چرګک (هُدهُد) حکم

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې ملاچرګك (هُدهُد) حلال دی او که حرام؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**جواب**: ملاچرګک (هدهد) مکروه دی، کما فی رد المحتار۵: ۲۹۷، فليراجعْ «۲» وهوالموفق.

## طوطي حلاله ده

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې طوطي حلاله ده او که مرداره؟ مهرباني وکړئ د دلائلو په رڼا کې يې وليکئ او ثواب ترلاسه کړئ! بينوا توجروا

المستفتي: مولوي عثمان الله نمبر ۶ ملټری پوليس يونټ کر آف آيس بی پي او نمبر ۱۱ ...... ۱۹۹۱ م / ۵/۳۱/

**جواب**: طوطي د شوافعو په نزد مرداره او د احنافو په نزد حلاله معلوميږي. «۳»

«۱»(سنن أبی داؤد ۲: ۵۳۱ کتاب الأطعمة: باب فی أکل الأرنب)

وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالیٰ: وحل الجراد......والأرنب والعقعق.

(الدرالمختار ۵: ۲۱۶ کتاب الذبائح)

«۲»قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالیٰ: ويکره الصرد والهدهد.

(رد المحتار۵: ۲۱۵ کتاب الذبائح)

«۳»قال العلامة عبد الرحمٰن الجزيری رحمه الله تعالیٰ: ويحل من الطير أکل العصافير بجميع أنواعها والسمان ......والبلبل والببغاء.

(کتاب الفقه علی المذاهب الأربعة ۲: ۸ کتاب الحظر والإباحة، مبحث مايمنع أکله وما يباح)

ځکه چې دا نه مښو که لري او نه هم پنجې.﴿۱﴾ او نه هم د حشراتو څخه ده ﴿۲﴾ والأصلُ فى الأشياءِ الحلُّ﴿۳﴾ لحديث ابنِ عباسٍ رضى الله عنهُ و ما سكتَ عنهُ فهوَ عفوٌ﴿۴﴾ ولَمْ أجدْ حكمَ البغاءِ صريحاً معَ التتبعِ ، نعمْ فى رد المحتارِ ۵: ۲۶۷ وحرمَ الشافعى الخطابَ والبغاءَ والطاؤسَ والهدهدَ﴿۵﴾. وهو الموفق

## د توپک ښکار د حلالولو نه بغیر نه حلالیږي

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اره څه وايي چې د توپک ښکار حلال دی او که مردار؟ ځکه چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په دور کې خو توپک نه ؤ؛ نو تفصيلي بيان راولېږه. بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ...... ۱۴۰۲ هـ / جمادى الأولى /۲۴/

**ځواب:** په توپک باندې ښکار کول جائز دي؛ خو که د حلالې نه بغېر حيوان مړ شي؛ نو مردار دی. لما في قاضي خان : لا يحلُّ صيد البندقة والحجرِ والمعراضِ﴿۶﴾ والله أعلمُ

---

﴿۱﴾ عن ابن عباس رضى الله تعالىٰ عنه : قال نهى رسول الله ﷺ عن كل ذى ناب من السبع وعن كل ذى مخلب من الطير.

(اعلاء السنن ۱۷: ۱۵۳ ، كتاب الذبائح ، باب النهى عن أكل ذى ناب من السباع الخ)

﴿۲﴾ عن ابن عمر رضى الله تعالىٰ عنه قال: نهينا عن خشاش الأرض.

(مسند الإمام الأعظم ص ۱۹۱ ، كتاب الأطعمة والأشربة والضحايا والصيد والذبائح )

﴿۳﴾ (الأشباه والنظائر ص ۲۲ قاعدة هل الأصل فى الأشياء الإباحة )

﴿۴﴾ عن ابن عباس رضى الله تعالىٰ عنه ....فبعث الله نبيه ﷺ وأنزل كتابه وأحل حلاله وحرم حرامه، فما أحل فهو حلال وما حرم فهو حرام وما سكت عنه فهو عفو.

(سنن أبى داؤد ۲: ۵۳۹ كتاب الأطعمة : باب ما لم يذكر تحريمه)

﴿۵﴾ (رد المحتار ۵: ۲۱۵ كتاب الذبائح )

﴿۶﴾ (فتاوىٰ خانية على هامش الهندية ۳: ۳۶۰ كتاب الصيد والذبائح )

## په مرمۍ، چريو والا مرميو او مردک باندې د ښکار حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په ټوپك باندې د مرغۍ ويشتل څنګه دي چې دا درې مرمۍ پکښې وي، ۱: د ټوپك مرمۍ، ۲: د چريو والا مرمۍ ۳: په مردك باندې، كه په دې درې مرميو باندې مرغۍ وويشتل شي؛ نو ايا مرغۍ به حلاله وي او كه حرامه؟ بينوا توجروا

المستفتي: سيد حبيب الله شاه پشين بلوچستان ..... ۱۹۷۶م/۵/۱۲/

**جواب:** دا ټول قسمونه په موقوذه كې شامل دي او حرام دي،﴿۱﴾ خلافاً للمالكيةِ﴿۲﴾ لأنها بقوّةِ البارودِ و تدخلُ الصيدَ فهوَ بالثقلِ الحكمى فافهمْ كالمقتولِ .وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال الله تعالىٰ :حرمت عليكم الميتة والدم ......والموقوذة الخ .(سورة المائدة:۳)

عن عدى ابن حاتم رضى الله تعالىٰ عنه قال سألت النبى ﷺ عن المعراض فقال إذا أصاب بحده فكل وإذا أصاب بعرضه فلا تأكل فإنه وقيذ.

(أبوداؤد۲ :۳۹۲كتاب الذبائح ، باب فى الصيد)

و فى ردالمحتار :قال قاضى خان لا يحل صيد البندقة والحجر والمعراض والعصا و ما أشبه ذلک وإن جرح لأنه لا يخرق.(ردالمحتار ۵:۳۳۵كتاب الصيد)

﴿۲﴾قال العلامة الجزيرى رحمه الله تعالىٰ :المالكية قالوا إنه لم يوجد نص من المتقدمين فى الصيد برصاص البنادق ولكن كثيرًا من المتأخرين يوثق بهم قالوا يحل أكل ما يصطاد به وبميته لأنه يريق الدم ويسرع فى القتل أكثر من غيره والغرض من الذكاة الشرعية إنما هو الإجهاز السريع على الحيوان كى يستريح من التعليب فكلّما كان أسرع فى الإجهاز عليه كان استعماله احسن ولا يشترط أن يكون الجرح بالشق بل يصح ان يكون بالخرق ايضًا.

(كتاب الفقه على المذاهب الأربعة۲ :۲۹ مباحث الصيد و الذبائح ، الشروط المتعلقة بآلة الصيد)

## په ټوپک او چرې باندې وقذ (ټیرې کېده) راځي جرح (زخمي کېده) نه راځي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې (۱) زموږ په کلي کې د پخوانیو سپین ږیرو له وخته داسې رواج دی چې کله څوک په ټوپك ښکار کوي او د وار نه وړاندې بسم الله ووايي؛ نو مرغۍ چې ولګیږي او په ځمکه راولویږي، اګر که هغه مړ شوی وي چاړه وړباندې تېره کړي او وایي چې دا حلال دی، د قرآن او حدیث په رڼا کې راته جواب راکړئ!

(۲) په کارتوس کې چې کومې مرمۍ دي هغه څوکې نه لري بلکې د چرېو په ذریعه حیوان مړ کوي، ایا په دې باندې ښکار جائز دی او که نه؟

(۳) په 7mm مرمۍ باندې چې د الله اکبر په نعرې د غره پسه ولګیږي او چېرته لرې مړ ولویږي، وروسته په چاړه حلال شي ایا دا حیوان به حلال وي او که حرام؟ یعنې د غوښې نه یې ګټه اخیستل روا دي او که ناروا؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الشکور ..... ۱۹۷۵ م / جون /۳/

**جواب:** ستاسو درانه حضور ته السلام علیکم ښکاره خبره ده کله چې په ټوپك باندې یو حیوان ښکار شي او بیا حلال نه شي؛ نو دا مردار دی، ځکه چې په مرمۍ سره جرح (زخم) نه راځي بلکې وقذ (شلېدل) راځي. ﴿۱﴾ دغه راز په چرېو باندې هم جرح نه راځي بلکې وقذ راځي، کما لا یخفی علی من أمرَّ هما علی العضو، موقوذه حرامه ده، ﴿۲﴾ وصرحَ به فقهاءنا حیثُ قالوا : أوْ ببندقةٍ ثقیلةٍ ذات حدة حرم لقتلها بالثقلِ لا بالحدِّ فلیراجعْ الی رد المحتارِ ۵: ۴۱۷ ﴿۳﴾

وهو الموفق .

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی : قال قاضي خان لایحل صید البندقة والحجر والمعراض والعصا وما أشبه ذلک وإن جرح لأنه لا یخرق . (رد المحتار ۵: ۳۳۵ کتاب الصید)

﴿۲﴾ قال الله تعالی : حرّمت علیکم المیتة......والموقوذة . (سورة المائدة: ۳)

﴿۳﴾ (رد المحتار ۵: ۳۳۵ کتاب الصید)

## په ټوپک باندې ويشتل شوی حيوان په موقوذه کې داخل دی

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې نن سبا ځينې خلك په ټوپك باندې غرونو کې د حيواناتو ښكار كوي، اوس د زخمي كېدو وروسته حيوان مړ پيدا شو؛ نو دا حيوان به حلال وي او كه حرام؟

بينوا توجروا

المستفتي: حبيب الله پشاوري ..... ۱۹۷۴م / ۵ / ۲۸/

**جواب:** د ټوپك ښكار په موقوذه كې شامل دی، ددې له امله د داسې ښكار خوړل حرام دي. قال الله تعالى: ﴿ وَالْمَوْقُوذَةُ ﴾﴿۱﴾وقال رسولُ الله صلى الله عليهِ وسلمَ :انّه وقيذٌ (رواهُ أبوداؤدَ)﴿۲﴾وصرّحَ جميعُ الفقهاءِ بحرمةِ صيد البندقةِ﴿۳﴾فليراجعْ الى كتابِ الصيدِ . وهوالموفق

## په څوكوري مرمۍ د ښكار كولو حكم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې كه د غشي په څېر څوكې والا مرمۍ وي، د شلېدو په ځای حيوان زخمي كړي؛ نو د نورو شرائطو د پوره كېدو پرمهال ددې غوښه خوړل جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الله صدر نوښار ..... ۱۹۹۱م / ۱ / ۱۳/

---

﴿۱﴾(سورة المائدة : ۳)

﴿۲﴾عن عدى بن حاتم رضى الله تعالى عنه ، قال سألت النبى ﷺ عن المعراض فقال إذا أصاب بحده فكل وإذا أصاب بعرضه فلا تأكل فإنه وقيذ.

(أبوداؤد ۲ :۳۹۳ كتاب الذبائح ، باب فى الصيد)

﴿۳﴾قال العلامة الشامى رحمه الله تعالى : قال قاضى خان لا يحل صيد البندقة والحجر والمعراض والعصا وما أشبه ذلك وإن جرح لأنه لا يخرق .(رد المحتار ۵ :۳۳۵كتاب الصيد )

**جواب:** په توپك باندې ویشتل شوی حیوان د حلالولو بغیر نه پاکیږي، ﴿۱﴾ ځکه چې دا مرمی کله ګرمه شي؛ نو د وژلو او شلولو کار ورکوي، د څوکې هیڅ مطلب نه پاتې کیږي. وهو الموفق

**په توپک باندې ښکار شوی حیوان د قرآن او حدیث په رڼا کې حرام دی**

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې کوم ښکار په توپك وویشتل شي بیا د ښکاري رسېدو نه وړاندې هغه مړ شوی وي، یا ښکار وتښتي په پټیانو کې یې مړ پیدا کړي او یا هم ښکاري د لټون وروسته مایوسه شي بیا یې بل وخت پیدا کړي؛ نو د داسې ښکار خوړل حلال دي او که حرام؟ آیا داسې ښکار په موقوذة کې شامل دی او که په ماضطررتم کې؟ بینوا توجروا

المستفتي: امام فیض محمد ...... ۱۹۷۳م/ ۵/ ۱۰/

**جواب:** په توپك باندې ویشتل شوی حیوان د حلالولو بغیر نه پاکیږي، لأنه وقیذٌ وصرّحَ بحرمته فی القرآنِ ﴿۲﴾ والحدیثِ ﴿۳﴾ والفقهِ ﴿۴﴾ وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ قال الله تعالیٰ: حرّمت علیکم المیتة ...... والموقوذة. (سورة المائدة: ۳)
وفی الخانیة: ولا یحل صید البندقة والحجر والمعراض والعصا وما اشبه ذلک لأنه لا یخرق. (فتاوی خانیة علی هامش الهندیة ۳: ۳۶۰، کتاب الصید والذبائح)
﴿۲﴾ قال الله تعالیٰ: حرّمت علیکم المیتة ...... والموقوذة. (سورة المائدة: ۳)
﴿۳﴾ عن عدی بن حاتم رضی الله تعالیٰ عنه قال سألت النبی ﷺ عن المعراض فقال إذا أصاب بحده فکل وإذا أصاب بعرضه فلا تأکل فإنه وقیذ. (سنن أبی داؤد ۲: ۳۹۴، کتاب الذبائح، باب فی الصید)
﴿۴﴾ وفی الخانیة: ولا یحل صید البندقة والحجر ...... (بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

## په ټوپک لګېدلی ښکار او د فقهاؤ اختلاف

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې (۱) کوترې مي په ټوپك وويشتل د حلالولو نه وړاندې خپله مړه شوې وه؛ نو ددې خوړل څنګه دي؟

(۲) که ښکاري پې در پسې همداسې د ښکار په لټه کې وي او څه وخت وروسته يې مړ پيدا کړي؛ نو ايا ددې خوړل جائز دي؟

(۳) که ښکاري د مرمۍ د ويشتلو پرمهال د الله تعالى نوم واخلي او حيوان وولي؛ نو ايا د ښکار د حلالېدو لپاره يوازې د الله تعالى نوم کافي دی، په دې مسئله کې د عالمانو اتفاق دی او که اختلاف؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۹۷۸م/ ۱۰/ ۹/

**جواب:** که په ټوپك باندې ښکار شوی حيوان د حلالولو نه وړاندې مړ ومونډل شي؛ نو خوړل يې حرام دي، لكونه وقيذاً مثلَ ما قتله المعـراض﴿۱﴾ خلافاً للأوزاعیٌ ومكحولٍ وابنِ أبي ليلى وغيره﴿۲﴾وهو الموفق .

(بقيه حاشيه) والمعراض والعصا وما أشبه ذلک لأنه لا يخرق .
(فتاوى خانية على هامش الهندية۳: ۳٦۰ كتاب الصيد والذبائح )

﴿۱﴾في البحر : (وما قتله المعراض بعرضه أو البندقة حرم ) لما روى أن عدى بن حاتم قال للنبى ﷺ إنى أرمى الصيد بالمعراض فأصيب فقال: إذا رميت بالمعراض فخرقت فكله وإن أصابه بعرضه فلا تأكله .(البحرالرائق۸: ۲۲۹ كتاب الصيد )

﴿۲﴾قال العلامة العينى رحمه الله تعالى : (قال ابن عمر رضى الله تعالى عنه فى المقتولة بالبندقة تلک الموقوذة ) ......أخرجه ابن أبى شيبة فى مصنفه عن عبيد الله بن عمر رضى الله تعالى عنه أنهما كان يكرهان البندقة إلا إذا ادركت ذكاته . اخرج عبد الرزاق عن ابن جريج قال عطاء إذا رميت صيدًا ببندقة فادركت ذكاته فكله وإلا فلا تأكله . ......(قوله وما اصاب بعرضه فلا تأكل ) وبه قال أبو حنيفة ومالک......(بقيه حاشيه اگلے صفحه پر)

## د قنفذ حکم

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې قنفذ د احنافو په نزد حلال دی او که حرام؟ او دا مسئله په کوم کتاب کې ذکر ده؟

بینوا توجروا

المستفتي: نظر محمد لاهور صوابی ..... ۱۹۸۶ م / مارچ/۶/

**جواب**: واضحه دې وي چې قنفذ د احنافو په نزد مکروه دی، کما في الهندية ۵: ۳۲۱ «۱» والفقهُ على المذاهبِ الأربعة «۲» وغیره «۳» خو مشکله دا ده چې قنفذ شیشکه ده او که شکون؟ په عجائب المخلوقات «۴» او حیات الحیوان

---

(بقیه حاشیه) والشافعي والثوري وأحمد ..... وقال ابن بطال وذهب الأوزاعي ومكحول وفقهاء الشام إلى جواز أكل ما قتل بالمعراض خزقه أو لم يخزق وكان أبو الدرداء وفضالة بن عبيد لا يريان به بأسًا.

(عمدة القاري ۲۱: ۹۳، ۹۴ باب صيد المعراض، كتاب الذبائح والصيد)

«۱» في الهندية: وجميع الحشرات وهوام الأرض من الفار والجراد والقنافذ والضب واليربوع وابن عرس ونحوها ولا خلاف في حرمة هذه الأشياء إلا في الضب.

(فتاوٰی هندية ۵: ۲۸۹ كتاب الذبائح: الباب الثاني في بيان ما يؤكل من الحيوان)

«۲» قال العلامة عبد الرحمن الجزيري رحمه الله تعالى: الحنفية والحنابلة قالوا يحرم اكل القنفذ صغيره وكبيره.

(كتاب الفقه على المذاهب الأربعة ۲: ۸ كتاب الحظر والاباحة، مبحث ما يمنع أكله وما يباح)

«۳» قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ولا يحل ذوناب ..... ولا الحشرات واحدها حشرة بالتحريك فيهما: كالفارة..... والقنفذ. (رد المحتار ۵: ۲۱۲ كتاب الذبائح)

«۴» في عجائب المخلوقات: (قنفذ) الحيوان الذي..... (بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

کې اولنی ظني دی. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## قنفذ شیشکه ده او که شکونړ؟

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اره څه وایي چې د قنفذ په اره زموږ خواته اختلاف دی چې ایا ددې خوړل روا دي او که ناروا؟ او قنفذ دوه شیان دي: یو ته موږ شیشکه او بل ته شکونړ وایو، دا هم راته روښانه کړئ چې په دې دواړو کې کوم یو مراد دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد دین غزني خېل لکی مروت ..... ۱۴۰۴ هـ / محرم/۱۹/

**جواب:** د فقهي په کتابونو کې لکه: (البدائع، ﴿۲﴾ الفقهُ علی المذاهب

---

(بقیه حاشیه) یقال له بالفارسیة خارپشت سلاحه علی ظهره وهو الشوک الذی علیه ویتقنع بحیث لا یبین من أطرافه شیئ...... قالوا أی موضع أراد أن یرمی إلیه الشوکة من شوکه یرمیه کرمی النشاب ولا یخطی شیئًا فتمرّ الشوکة کمرّ السهم المسدد وتثبت فیه.

(عجائب المخلوقات علی هامش حیوة الحیوان ۲: ۳۵۷-۳۵۹ ناشر عبد المجید أحمد حنفی بشارع الحسینی رقم ۱۸)

﴿۱﴾ قال العلامة الدمیری رحمه الله تعالی: القنفذ (سیهی) دا دوچې حیوان دی، ماربه په شوق خوري، هیڅ زیان ورته نه رسوي، که مار ورته ټک ورکوي. نو دی یو ه ول وابنه خوري چې د مار زهر پرې اثر نه کوي قنفذ په دوه ډوله دي، یو هغه چې په ښارکې اوسیږي دې ته (قنفذ) وایي، په صورت کې د موږک په اندازه دی، دویم هغه ډول دی چې یوازې په شام او عراق کې موندل کیږي او دېته (دلدل) هم وایي، دا په صورت کې د سیې په برابر وي، د دواړو ترمنځ دا سې توپیر وي لکه څرنګه چې د مږ او موږک ترمنځ وي، د سیهی په خوله کې پنځه غاښونه وي. (حیوة الحیوان ۲: ۵۲۷، القنفذ)

﴿۲﴾ وفی البدائع: وجمیع الحشرات وهوام الأرض من الفار والقراد والقنافذ والضّبّ والیربوع وابن عرس و نحوها ولا خلاف فی حرمة هذه الأشیاء إلا فی الضبّ.

(بدائع الصنائع ۴: ۳۶، کتاب الذبائح والصیود)

الأربعة وغیرهما) «۱» کې د قنافذو حرمت صراحتاً ذکر شوی دی؛ خو دومره ده چې ایا دا قنفذ هغه دی چې افغانان ورته شکونړ وایي او که شیشکه؟ د حیات الحیوان د عبارت نه معلومیږي چې قنفذ شیشکي ته وایي شکونړ ته نه وایي «۲» وهو الموفق

## قنفذ (شیشکه) حرامه او شکونړ حلال دی

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یو حیوان دی چې پښتانه ورته شکونړ وایي، خلك یې خوري او وایي چې خوړل یې حلال دي؛ خو زه وایم چې خوړل یې حرام دي، ځکه چې د پښتنو یوه مشهوره خبره هم ده چې: شکونړ حلال دی؛ خو رنګ یې د مردارو دی، ددې پوره وضاحت راته وکړئ! بینوا توجروا

المستفتي: سید عمر خان اې ایس سي سنتر ضلع نوښار ...... ۱۹۸۵م / ۷ / ۹

---

«۱» قال العلامة عبد الرحمٰن الجزیری رحمه الله تعالی: الحنفیة والحنابلة قالوا یحرم أکل القنفذ صغیره وکبیره.
(کتاب الفقه علی المذاهب الأربعة ۲ :۸ کتاب الحظر والإباحة، مبحث ما یمنع أکله وما یباح)

«۲» قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: ولا یحل ذوناب...... ولا الحشرات واحدها حشرة بالتحریک فیهما: کالفارة ...... والقنفذ. (ردّ المحتار ۵ :۲۱۳، کتاب الذبائح)

«۳» قال العلامة کمال الدین الدمیری رحمه الله تعالی: سیهی (قنفذ) د فاء په ضمه او فتحه دواړو ویل کیږي، دا دوچې حیوان دي، ماربښه په شوق خوري، هیڅ زیان ورته نه رسوي، که مارورته ټك ورکوي، نو دی یو ډول وابښه خوري چې د مار زهر یې اثر نه کوي قفذ په دوه ډوله دي، یو هغه چې په ښارکې او سیږي دې ته (قفذ) وایي، په صورت کې د مږك په اندازه دی، دویم هغه ډول دی چې یوازې په شام او عراق کې موندل کیږي او دې ته (دلدل) هم وایي، دا په صورت کې د سپي په برابروي، ددواړو ترمنځ دا سې تړون وي لکه څرنګه چې د مږ او مږك ترمنځ وي، د سیهی په خوله کې پنځه غابونه وي (حیوة الحیوان ۲: ۵۷۷، القنفذ)

**جواب:** د احنافو په نزد قنفذ مکروه دى، ﴿۱﴾ اصلي خبره دا ده چې قنفذ شيشکه ده او که شکوڼ؟ نو کومو عالمانو چې قنفذ شکوڼ ګڼلى، هغوى وايي چې شکوڼ حرام دى﴿۲﴾ او کومو عالمانو چې قنفذ شيشکه ګڼلې وايي چې شيشکه حرامه ده او شکوڼ حلال دى. والظاهرُ منْ عبارةِ حياتِ الحيوانِ الثانى دونَ الأوّلِ فليراجعْ﴿۳﴾وهو الموفق.

## په شکوڼ کې د حرمت سبب نشته

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې شکوڼ حلال دى او که حرام؟ ځينې خلك بې فرق وايي: په کومو کې چې غشي وي حکم يې ځان ته دى او په کومو کې چې غشي نه وي د هغو حکم ځان ته دى.

---

﴿۱﴾فى الاختيار : وهى الحشرات كالفارة والوزغة واليربوع والقنفذ والحية ونحوها لأن جميع ذلك من الخبائث فيحرم لقوله تعالى: ويحرم عليهم الخبائث.
(الاختيار لتعليل المختار ۵:۱۷، كتاب الذبائح)

﴿۲﴾قال العلامة رشيد أحمد: سوال: د قنفذ پر جسم لوى لوى اغزي وي، دا چې داحيوان حلال دى او که حرام؟ په حقيقت کې ديکښې د حراموالي هغه شرط نه شتون نه لري چې د فقهې په کتابونو کې ليکل شوي دي بينوا توجروا
الجواب باسم ملهم الصواب دا چې سيه د مردار وخخه دى، نو ځکه حرام دي، ستاسو له نظره د حرمت کومې نښې دي چې په نيولا کې موندل کيږي او په (سيه) کې نه؟ (احسن الفتاوى ۷: ۴۰۵)

﴿۳﴾قال العلامة كمال الدين الدميرى رحمه الله تعالى: سيهى (قنفذ) د قاء په ضمې او فتحه دوارو لوستل کيږي دا دوچې حيوان دي، مار بنه په شوق خوري، هيڅ زيان ورته نه رسوي، که مار ورته تلك ورکوي، نو دى بوه ول وا بنه خوري چې د مار زهر پرې اثر نه کوي قنفذ په دوه ډوله دي، يو هغه کوم ته چې قنفذ ويل کيږي د په مصر کې وي، پاتې په بل مخ

مور ته تفصیلي ځواب ولیکئ چې جنګ مو ختم شي. بینوا توجروا

المستفتي: شفیق الرحمن د دارالعلوم حقانیه زده کوونکی (لاهور)

**جواب:** قنفذ (شیشکه) حرامه ده، ځکه چې دی مردار خور حیوان دی، دغه راز د حشرات الأرض او هوام الأرض څخه حسابیږي، کما في الهندية ٥: ٣٢١ ، وجميع الحشرات وهوام الأرضِ من الفأرِ والجرادِ والقنافذِ والضبِّ واليربوعِ وابنِ عرسٍ ونحوها ﴿١﴾ شکونړ حلال دی، ځکه چې دی وابښه خوري، نه مردار خور دی او نه هم په حشرات الأرض کې حسابیږي، په حدیثونو او فقهي روایتونو کې ددې په اړه هیڅ تصریحي حکم نشته، نو دا حلال دی، والأصلُ في الأشياءِ الإباحةُ ﴿٢﴾ وقالَ ابنُ عباسٍ رضى اللّه عنهُ : ما أحلَّ فهوَ حلالٌ و ما حرَّمَ فهوَ حرامٌ و ما سكتَ عنهُ فهوَ عفوٌ (ابو داؤد) ﴿٣﴾ وهوالموفق .

## شکونړ ته لوی قنفذ او شیشکې ته وړوکی قنفذ ویل غلط دي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې قنفذ په فارسي ژبه کې خار پشت، اردو کې سیهی او په پښتو کې شکونړ بلل کیږي،

باتې حاشیه) دمرلك په اندازه دی، دویم هغه ډول دی چې یوازې په شام او عراق کې موندل کیږي او دېته (دلدل) هم وایي، دا په صورت کې د سیې په برابر وي، د دواړو ترمنځ داسې توپیر وي لکه څرنګه چې د مږ او مرلك ترمنځ وي، د سیهی په خوله کې پنځه غابښونه وي (حیوة الحیوان ۲: ٥٢٧، القنفذ)

﴿١﴾ (فتاوى هندية ٥: ٢٨٩، كتاب الذبائح ، الباب الثانى فى بيان ما يؤكل من الحيوان الخ)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى : اقول وصرّح فى التحرير بأن المختار أن الأصل الإباحة عند الجمهور من الحنفية والشافعية وتبعه تلميذه العلامة قاسم ،وجرى عليه فى الهداية من فصل الحداد، وفى الخانية من أوائل الحظر والإباحة .

(رد المحتار ١: ٧٧، أركان الوضوء أربعة : مطلب المختار أن الأصل فى الأشياء الإباحة)

﴿٣﴾ (سنن أبى داؤد ٢: ٥٣٩ كتاب الأطعمة : باب مالم يذكر تحريمه)

آیا دا حلال دی او که حرام؟ بینوا توجروا

المستفتي: شفیع الرحمن جدون صوابی ..... ۱۹۸۷م/۹/۲۸/

**جواب:** قنفذ ورو کی او که غټ وي د فقهاؤ په نزد مکروه دي. کما فی الهندية «۱» والفقهُ على المذاهبِ الأربعة «۲» وغيرهما «۳» په دیکښې دهیڅ چا اختلاف نشته. بلکې اصلي اختلاف ددې په مصداق کې دی چې ایا قنفذ شکونړ ته ویل کې او که شیشکې ته؟ معلومه خبره ده چې دا دواړه بیل - بیل شیان دي. شکونړ ته لوی قنفذ او شیشکې ته وړوکی قنفذ ویل غلط دي. خو د عجائب المخلوقات «۴»

---

«۱» فی الهندية: وجميع الحشرات وهوام الأرض من الفأرة والجراد والقنافذ والضب واليربوع وابن عرس ونحوها ولا خلاف فی حرمة هذه الأشياء إلا الضب.

(فتاوی هندية ۲ : ۲۸۹ كتاب الذبائح : الباب الثانى فی بيان ما يؤكل من الحيوان)

«۲» قال العلامة عبد الرحمٰن الجزيرى رحمه الله تعالى: الحنفية والحنابلة قالوا يحرم أكل القنفذ صغيره و كبيره.

(كتاب الفقه على المذاهب الأربعة ۲ :۸ كتاب الحظر والإباحة مبحث مايمنع أكله وما يباح)

«۳» قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ولا يحل ذوناب ...... ولا الحشرات واحدها حشرة بالتحريك فيهما : كالفارة..... والقنفذ.(رد المحتار ۲ : ۲۱۳ كتاب الذبائح)

«۴» فی عجائب المخلوقات : (قنفذ) الحيوان الذى يقال له بالفارسية خارپشت سلاحه على ظهره وهو الشوك الذى عليه ويتقنع بحيث لا يبين من اطرافه شئ...... قالوا اى موضع اراد ان يرمى إليه الشوكة من شوكه يرميه كرمى النشاب ولا يخطى شيئاً فتمرّ الشوكة كمرّ السهم المسدد وتثبت فيه.

(عجائب المخلوقات على هامش حيٰوة الحيوان ۲ :۳۵۷، ۳۵۹، ناشر، عبد الحميد أحمد حنفى بشارع الحسينى رقم ۱۸)

او منجد﴿۱﴾د عکسونو نه معلومیږي چې قنفذ شیشکې ته ویل کیږي او د شیشکي ټول قسمونه مکروه دي. و أما الأوّلُ فحلالٌ﴿۲﴾لحدیث أبي داوٗدَ و ما سکتَ عنهُ فهوَ عفوٌ﴿۳﴾هذا ما عندی ولعل عند غیری أحسن منهُ. وهوالموفق

## د شکونړ په حلالوالي دویم خلي پوښتنه

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلي په اړه څه وایي چې د قنفذ په اړه ستاسو نه پوښتنه شوې وه، تاسو ورته د لوی قنفذ د حلالوالي په اړه فتوی ورکړې وه، زموږ د کلي عالمانو ددې فتوی مخالفت څرګند کړ؛ خو کله چې ما په حیات الحیوان کې خپل تحقیق وکړ؛ القنفذ صنفانِ کبیرٌ و صغیرٌ ، بیا یې د دواړو د تعریف وروسته لیکلي دي. و أما الحکمُ فحلالٌ عند الشوافعِ و حرامٌ عندَ أبي حنیفةَ په الفقهُ على المذاهبِ الأربعةِ کې یې لیکلي دي. القُنفذ حرامٌ صغیرٌ و کبیرٌ عندَ أبي حنیفةَ و أحمدَ رحمهما اللّه تعالی بینوا توجروا

المستفتي: عبد المتین بنوی سابق معلم دار العلوم حقانیه ..... ۱۴۰۲ هـ/ جمادی الثانی /۵/

---

﴿۱﴾: دقنفذعکس دمنجدپه ۷۲۱مخ باندې او تعریف یې داسې کړی: القنفذ، ج قنافذ، دویبةمن فصیلة القنفلیّات أعلاها مغطّی بریش حادٍّ تقی به نفسها إذ تجتمع مستدیرة تحته وتسدّد عند ما تکون مهدّدة تحتبئی فی النهار وتکثر الذهاب والإیاب فی اللیل، توجد منها أنواع عدیدة. (المنجد ص ۶۵۸ طبع انتشارات بلاغت دارالعلم)

﴿۲﴾قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: أقول وصرح فی التحریر بأن المختار أن الأصل الإباحة عند الجمهور من الحنفیة و الشافعیة وتبعه تلمیذه العلامة قاسم. وجری علیه فی الهدایة من فصل الحداد وفی الخانیة من أوائل الحظر والاباحة. (رد المحتار ۱:۷۷، ارکان الوضوء أربعة، مطلب المختار أن الأصل فی الاشیاء الإباحة)

﴿۳﴾(سنن أبی داوٗد ۲: ۵۳۹، کتاب الأطعمة. باب ما لم یذکر تحریمه)

**جواب**: واضحه دي وي چې د قنفذ ټول اقسام حرام دي، په فتاوی عالمګیري ۵: ۳۲۱ ﴿۱﴾ وغیره ﴿۲﴾ کې یې په حرمت باندې تصریح موجوده ده، اختلاف په دیکښې چې پښتانه څه ته شکونړ وایي ایا دا قنفذ دی او که نه؟ نو کوم خلك چې دېته لوی قنفذ وایي، هغوی وایي: چې حرام دی او کوم خلك چې یې قنفذ نه مني، بلکې یوازې ددې له امله چې عربي نوم یې معلوم نه دی، په قنفذ سره ترې تعبیر کوي او هغوی وایي: چې خوړل یې حلال دي، ماته دویم قول راجح معلومیږي، ﴿۳﴾ ځکه چې په منجد کې یې لیکلي دي: دویبة

﴿۱﴾ في الهندية: وجميع الحشرات وهوام الأرض من الفأر والجراد والقنافذ والضب واليربوع وابن عرس ونحوها ولا خلاف في حرمة هذه الأشياء إلّا الضب.

(فتاوى هندية ۵: ۲۸۹ كتاب الذبائح، الباب الثاني في بيان ما يؤكل من الحيوان)

﴿۲﴾ قال العلامة عبد الرحمٰن الجزيري رحمه الله تعالىٰ: الحنفية والحنابلة قالوا يحرم أكل القنفذ صغيره وكبيره.

(كتاب الفقه على المذاهب الأربعة ۲: ۸ كتاب الحظر والإباحة، مبحث ما يمنع أكله وما يباح)

﴿۳﴾ وفي حاشية السراجية: ورد النهي عن أكل القنفذ في سنن أبي داؤد (۲: ۱۷۶، باب في أكل الحشرات) من حديث أبي هريرة رضي الله تعالىٰ عنه ولا شك أنه حرام فإنه ذوناب من هوام الأرض على قدر الفأرة ويقتل الحمامة ويتشرب دمه فظهر بهذا أن فيه صفات السباع. وهناك حيوان آخر يقال له الدُّلدُل، لم يتعرض لذكره فقهائنا، وفي كتب اللّغة والمعاجم جعلوه من أقسام القنافذ، فقال في الصحاح ۴: ۱۶۹۹، والدُّلدُل عظيم القنافذ. لكن قال بعض علماء باكستان وافغانستان: الدُّلدُل حيوان آخر وليس من أقسام القنافذ ولا بأس بأكله، ثم ذكروا بينه وبين القنفذ عدة فروق بينة، وبعضها كما يلي: (۱) القنفذ يأكل الأقذار والحشرات والدُّلدُل الكلأ والعُشب. (۲) القنفذ ذوناب قاتل الهوام يشرب دم الطيور الصغيرة ولا يوجد في الدُّلدُل شيء منها...... پاتې په بل مخ باندې

أعلاها مغطى بريشٍ حادٍّ .... تقى به نفسها اذ تجمع مستديراً تحته وتوجدُ منها أنواعٌ عديدةٌ ص ۶۹۹ ﴿۱﴾ وفى حياتُ الحيوان ۲: ۲۶۵، هو مولعٌ بأكل الأفاعى ﴿۲﴾او تاسوچې كوم عبارت ليكلى هغه په حيات الحيوان كې نشته، په هغې كې داسې عبارت دى: وهوِ صنفانِ قنفذٌ يكونُ بأرض مصرٍ قدر الفأرِ و دلدل يكونُ بأرضِ الشامِ والعراقِ بقدر الكلبِ القلطى والفرقُ بينهما بينَ الجرذِ والفأرِ ﴿۳﴾په عجائبُ المخلوقات كې يې ليكلي دي: (قنفذ) الحيوانُ الذى يقالُ له بالفارسية خاربشت سلاحه على ظهره وهو الشوكُ الذى عليه ويتقنّعُ بحيثُ لا يبينُ منْ أطرافه شيئٌ (الى أنْ قالَ ) قالوا...أى موضعٍ أرادَ أنْ يرمى اليه شوكةٌ منْ شوكه يرميه كرمى النشابِ ولا يخطى شيئاً فتمر الشوكة كمرِّ السهم

(بقيه حاشيه)(۳)القنفذ من حشرات الأرض ولا كذلك الدلدل.(۴)وزن القنفذ لا يزيد على كيلو غرام واحد، والدلدل قديكون إلى ۲۲ كيلو غرام،و كونه بين العشرة إلى خمسة عشر كثير.(۵)القنفذ ذوناب وله خمسة أنياب ،والدلدل ليس ذوناب وله أربع أسنان.(۶)القنفذ يشرب الماء مثل الكلب والدلدل مثل الشاة.فقد تبين من هذه الفروق أن صفات القنفذ مما يذكره الفقهاء فى حد ما لا يحل أكله و صفات الدلدل فيما يحل أكله،فهو اشبه بما يحل أكله فلا نقول بحرمته لما مرّ،كيف وليس هو من حشرات الأرض ولا من الهوام ولا ذى ناب. و لعلّ الدلدل على قسمين:قسم يطلق على عظيم القنفذ،و قسم غيره يوجد فيه العلامات الماضية من كونه أكل العشب و غيرها،فمن قال بحله أراد القسم الثانى. (هامشِ فتاوى سراجية۳۷۵،۳۷۶كتاب الصيد والذبائح،باب ما يحل أكله و ما لا يحل)

﴿۱﴾(المنجد ص ۶۵۸ناشر انتشارات بلاغت ، دارالعلم )

﴿۲،۳﴾(حيوة الحيوان (عربى) ص ۲:۲۶۵ناشر عبد الحميد أحمد حنفى بشارع الحسينى رقم ۱۸)

المسدودِ وتثبتُ فيه. هامش حيوة الحيوان ۲: ۳۵۷﴿۱﴾وهوالموفق.

## شکونړ د اختیاري یا اضطراري حلالۍ وروسته پاک دی

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یو حیوان دی، موږ یې د شکونړ په نوم یادوو، په شا یې ازغي دي، په تېره زمانه کې نه کوم عالم ددې د جواز فتوی ورکړې ده او نه هم چا خوړلی دی، همدا اوس یاد حیوان ځینو خلکو ورته وویل چې دا د ناروغۍ لپاره ښه دوا ده؛ نو هغوی وویشت او ځان یې وربانديې موږ کې، د عالمانو ترمنځ ددې په حلالوالي کې اختلاف دی، د حلالولو نه بغیر یې حرام ګڼي، شرعي مسئله راته په ګوته کړئ تر څو موږ پرې عمل وکړو. بینوا توجروا

المستفتي: حاجي محمد اصغر ترچهبازار مظفر آباد کشمیر..... ۱۹۸۴م/ اپریل/۱۲/

**جواب:** قنفذ د احنافو په نزد مکروه دی.﴿۲﴾قنفذ شیشکي ته ویل کیږي شکونړ ته نه. ظاهره دا ده چې ددې خوړل روا دي که ذبح یې اختیاري وشي او که اضطراري﴿۳﴾ واللهُ أعلَمُ بِالصَّوَابِ.

## د روح ویستلو لپاره د ماهي سینه څیرل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې ځینې ماهیان د اوبو بهر هم ژر نه

---

﴿۱﴾(عجائب المخلوقات على هامش حيوة الحيوان ۲: ۳۵۷-۳۵۹ ناشر عبد الحميد الخ)

﴿۲﴾قال العلامة عبدالرحمٰن الجزيري رحمه الله تعالى: الحنفية والحنابلة قالوا يحرم أكل القنفذ صغيره وكبيره.

(الفقه على المذاهب الأربعة ۲: ۸ كتاب الحظر والإباحة، مبحث مايمتنع أكله وما يباح)

﴿۳﴾وفي الاختيار: والذكاة اختيارية، وهي الذبح في الحلق واللبة واضطرارية وهي الجرح في أي موضع اتفق. (الاختيار لتعليل المختار ۵: ۱۰، كتاب الذبائح)

مړه کیږي، بلکې تر څو ساعتونو پورې همداسې ژوندي وي، ایا د روح ویستلو لپاره د هغوی سینه څیري شي او که تر څه وخته پورې یې پریږدي؟

بینوا توجروا

المستفتي: عبد السلام بوری والا ضلع وهاړی ..... ۱۹۷۸م / ۱۱ / ۲۲/

**جواب**: دا مباح کار دی. ﴿۱﴾ وهوالموفق.

## په ژوندي مړه او چیندخه باندې ښکار کول

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د ماهیانو د ښکار لپاره ژوندی مړه او چیندخه په سیخ پیاول ښنګه دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد السلام بوری والا ضلع وهاړی ..... ۱۳ رجب

**جواب**: دا غیر مباح کار دی. ﴿۲﴾ وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ ماهي نه حلالیږي بلکې په کوم ډول چې زر وهل شي بس پاک دی، نو په یادصورت کې د حیوان تعذیبول بې فائدې نه دي، بلکې فائده لري

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وكره كل تعذيب بلا فائدة مثل قطع الرأس والسلخ قبل أن تبرد. (الدر المختار ۵:۲۰۷ كتاب الذبائح)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن قدامة رحمه الله تعالى: وكره بالخراطيم وكل شيء فيه الروح لما فيه من تعذيب الحيوان لإن اصطاد فالصيد مباح.

(المغني ۲۰:۲۳۸، كتاب الصيد والذبائح، دار الكتب العلميه بيروت).

وفي الهداية: ومن بلغ بالسكين النخاع أو قطع الرأس كره له ذلك وتوكل ...... وكل ذلك مكروه وهذا لأن في جميع ذلك وفي قطع الرأس زيادة تعذيب الحيوان بلا فائدة وهو منهي عنه. (هداية ۴:۴۳۸ كتاب الذبائح)

## د مرغانو او بچیانو اخیستل او خرڅول یې

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د مرغانو او بچيانو اخيستل او خرڅول يې څنګه دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: محراب الدين ..... ۱۹۷۰م / ۲۹

**جواب:** مباح شيان په نيولو سره مملوك ګرځي. ددې له امله د مرغانو او بچيانو اخيستل او خرڅول جائز دي، للأصلِ المشهورِ: المباحُ لمنْ أخذ كما في شرحِ المجلة ۶۸ ﴿۱﴾ وغيره ﴿۲﴾ وهو الموفق.

## مرغان په (قفس) پنجره کې ساتل

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې ځينې خلك باز، شاهين او نور مرغان په قفس کې ساتي، ددې د جواز او نه جواز په اړه د کتابونو حوالې ذاکرئ! بينوا توجروا

المستفتي: محراب الدين ..... ۱۹۷۰م / ۵ / ۲۹/

**جواب:** په قفس کې مرغان ساتل ناجائز دي، لما في الهندية: حبسَ بلبلاً في قفص وعلفها لا يجوزُ كذا في القنيةِ ﴿۳﴾ قلتُ: وما روى: ما فعل النغير محمولٌ على غير

---

﴿۱﴾ فى شرح المجلة: الصيد مباح..... كل من احرز شيئًا مباحًا كان مالكًا له مستقلًا. (شرح المجلة ۶۷۹، ۶۸۰، المادة: ۱۲۴۷، ۱۲۴۹)

﴿۲﴾ فى الأشباه والنظائر: وأسباب الملك ثلاثة مثبت للملك من أصله وهو الاستيلاء على المباح. (الأشباه والنظائر ۲۸۶ كتاب الصيد والذبائح)

﴿۳﴾ (فتاوى هندية ۵: ۳۸۱، كتاب الكراهية، الباب الثلاثون فى المتفرقات)

المقفص«۱» وهو الموفق .

## ښکار د اواز، لوبو او جنګولو لپاره ساتل او په قفس کې بندول

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې کوم مرغه د ښکار لپاره وساتل شي، د هغې څه حکم دی؟ که د جنګېدو نه بغير يوازې د تجارت او ښکار لپاره جواز لري؛ نو د کتابونو څخه حوالې راته وليکئ!

بينوا توجروا

المستفتي: محراب الدين ...... ۱۹۷۰م / ۵ / ۲۹/

**ځواب**: د ښکار لپاره د باز او نورو مرغانو ساتل جائز دي. كمـا يقتضيه الأحاديث المبيحة لصيد الطيور«۲» په قفس کې يې بندول جائز نه دي «۳» او د الوزولو لپاره يې ساتل ناجائز دي، لحديث أبي

---

«۱» قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وفي القنية رامزًا حبس بلبلا في القفص وعلفها لايجوز...... قلت: ولعل الكراهة في الحبس في القفص، لأنه سجن وتعذيب دون غيره كما يؤخذ من مجموع ما ذكرنا وبه يحصل التوفيق.

(ردالمحتار ۵: ۲۸۳، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

«۲» عن عدى بن حاتم رضى الله تعالى عنه أن النبي ﷺ قال: ماعلمت من كلب أو باز ثم ارسلته وذكرت اسم الله تعالى فكل مما امسك عليك قلت وإن قتل قال إذا قتله ولم يأكل منه شيئًا فإنما امسكه عليك.

(سنن أبى داؤد ۲: ۳۹۴، باب في الصيد، كتاب الضحايا)

وعن انس رضى الله تعالى عنه قال إن كان النبي ﷺ ليخالطنا حتى يقول لأخ لى صغير: يا أباعمير مافعل النغير، كان له نغير يلعب به.

(مشكوة المصابيح۲: ۴۱۶، كتاب الأداب، باب المزاح)

«۳» في الهندية: حبس بلبلا في قفص وعلفها لا يجوز كذا في القنية.

(فتاوى هندية۵: ۳۸۱ كتاب الكراهية، الباب الثلاثون في المتفرقات)

داؤدَ : نهي عن التحريشِ ﴿۱﴾ یوازې د اواز لپاره یې هم ساتل منع دي، دغه راز د لوبو لپاره یې هم ساتل منع دي، لحديث: شيطانةٌ يتبعها الشيطانُ ﴿۲﴾ وهوالموفق .

## د ابابیل حلت او حجر الخطاطيف (ډبري) لپاره د ابابیل بچی حلالول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې ایا ابابیل حلال دی؟ دغه راز ځیني خلك د ابابیل بچی نیسي بیا یې حلالوي، له سینې څخه یې یوه ډبره (حجرالخطاطيف) راوباسي او وايي چې: دا د مرګي او ام الصبیان ناروغی لپاره کار کوي. دغه راز د هغوی نوی بچی حلالول څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۳۸۸ هـ /رمضان المبارك / ۸/

**جواب:** ابابیل حلال دی ﴿۳﴾ دغه راز نوی بچی یې د ډبرې لپاره حلالول ﴿۴﴾

---

﴿۱﴾ (سنن أبي داؤد ۲: ۳۴۶ كتاب الجهاد، باب في التحريش بين البهائم)

﴿۲﴾ مشكوة المصابيح ۳۸۶ باب التصاوير)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: يكره إمساك الحمامات ولو في برجها إن كان يضرّ بالناس..... فإن كان يطيرها فوق السطح مطّلعًا على عورات المسلمين ويكسر زجاجات الناس برميه تلك الحمامات عزر ومنع أشد المنع..... وأما للاستئناس فمباح.

(الدرالمختار ۵: ۲۸۳ كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

﴿۳﴾ في الهندية: أكل الخطاف والصلصل والهدهد لابأس به.

(فتاوی هندية ۵: ۲۹۰ كتاب الذبائح، الباب الثاني في بيان مايؤكل من الحيوان ومالايؤكل)

﴿۴﴾ قال العلامة عبد الرحمن الجزيري رحمه الله تعالى: ويحل من الطير أكل العصافير بأنواعها والسمان والقنبر وغيرذلك من الطيور المعروفة.

(كتاب الفقه على المذاهب الأربعة ۲: ۸ كتاب الحظر والإباحة، مبحث مايمنع أكله ومايباح)

هم جائز دي، وهوالموفق .

## د طوطي، کارغه، بلبل، ملا چرگک او ښاپیرک حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اره څه وایې چې لاندې لیکل شوي مرغان حلال دي او که حرام ؟ لکه طوطي، کارغه، بلبل، ملا چرگك او ښاپېرک . بینوا توجروا

المستفتي: قاري فضل حسین مرغز صوابی ..... ۱۴۰۷ هـ / محرم / ۳۰ /

**جواب:** کارغه مکروه دی، ﴿۱﴾ طوطي ﴿۲﴾ بلبل ﴿۳﴾ او شقراق﴿۴﴾ مکروه

---

﴿۱﴾وفی الخلاصة: ویکره الغراب وهوالذی یاکل النجاسات وفی فتاوی الولوالجی اکل الهد الهد لاباس به لأنه لیس بذی مخلب من الطیور .

(خلاصة الفتاوی ۴: ۳۰۴ قبیل کتاب الذبائح)

﴿۲،۳﴾بلبل کوالفقه علی المذاهب الأربعة اور الفقه الإسلامی وأدلته دونوں نے اورطوطا کو الفقه علی المذاهب الأربعة حلال کہاہے۔

وفی الفقه علی المذاهب الأربعة: ویحل من الطیر أکل العصافیر بأنواعها ......والبلبل والببغاء .

(الفقه علی المذاهب الأربعة ۲ : ۸ کتاب الحظر والإباحة ،مبحث مایمنع أکله وما یباح)

وفی الفقه الإسلامی وأدلته ۴: ۲۵۹۵ : یجوز أکل الطیور غیر الجارحة کالحمام ...... والبلبل وغیرذلک من العصافیر .

(الفقه الإسلامی وأدلته ۴: ۲۵۹۵،الباب السابع: الحظر والإباحة،المطلب الأول:أنواع الأطعمة)

﴿۴﴾ وفی الهندیة: وأما الخفاش فقد ذکر فی بعض المواضع انه یؤکل وفی بعض المواضع انه لایؤکل لأن له نابا وقیل الشقراق لایؤکل والبوم یؤکل ......والشقراق طائر اخضر یخالطه قلیل حمرة یصول علی کل شیئ وإذا أخذ فرخه تقیا کذا فی الظهیریة .

(فتاوی هندیة ۵ : ۲۹۰ کتاب الذبائح ،الباب الثانی فی بیان مایؤکل من الحیوان الخ)

دي، ﴿۱﴾ ملاچرګك جائز دی﴿۲﴾ او په بنا پيرك كې د عالمانو اختلاف دی ﴿۳﴾

وَاللّٰهُ أَعْلَمُ .

﴿۱﴾ طوطي، بلبل اوشقراق مكروه تنزيهي دي، خو دشقراق نه هغه حيوان مراد دی چې په څه شي حمله نه کوي اودسباع الطيو (درنده مرغانو) صفت پكې نه وي (مفتي سيف الله حقاني)

﴿۲﴾وفی الهندية: أكل الهد الهد لابأس به لأنها ليست من الطيور التی هی ذوات مخلب.

(فتاوی هندية ۵: ۲۹۰ كتاب الذبائح ،الباب الثانی )

﴿۳﴾قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالی :وفی الخفاش اختلاف.

(رد المحتار ۵: ۲۱۵ كتاب الذبائح)

قال اللہ تبارک وتعالیٰ:

وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ

عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ.

(سورة الأنعام)

# کتاب الذبائح

قالَ اللّٰهُ تبارك وتعالی : ﴿ وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ ﴾ (سورة الأنعام)

## د اوسني زماني د یهودو او نصاری د ذبیحې حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې موږ په طیاره کې سفر کولو، د طیارې زیاتره کارکوونکي عرب وو او خوراك به یې غوښه وه، ما ورته وویل: دا به چا حلاله کړې وي؟ هغوی راته په ځواب کې وویل: چې د جامعه ازهر لوی مفتي فتوی ورکړې چې د طیارې څومره کاریګر دي ټول د اهل کتابو د لاس ذبیحه خوړلای شي، قرآن کې چې کوم آیت راغي ﴿وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حِلٌّ لَكُمْ﴾ ددې پوره تفسیر ولیکئ دغه راز کاریګرو عربو به ویل که د طیارې کارکوونکي غوښه ونه خوري نو ناروغه کیږي بیا به وظیفه سمه نه شي کولای، د حقانیې د مفتي صاحب څخه موهیله ده چې عربي او پښتو تولې فتوې ولیکي او موږ ته یې راولیږي

دویمه دا چې: ایا د اهل کتابو د لاس ذبیحه په جټکې سره وشي او که په چړې سره وي؛ نو حلاله ده او که نه؟ دغه راز د اهل کتابو د لاس حلاله شوې مرغۍ پاکه ده او که ناپاکه؟ بینوا توجروا

۱۹۷۵ م / جولای/ ۳۰/

المستفتي: عبد الله جان صاحب ......

**جواب:** په اوسني دور کې د اهل کتابو د لاس ذبیحه هیڅکله نه ده حلاله، هر دول چې وي په چاړې یې حلاله کړې وي او که په جټکې سره یې حلاله کړې وي، «۱» وذلك لوجهين: الأولُ انّ اكثرهم أنكروا الحشرَ والجنةَ

---

«۱» قال العلامة عبد الحي اللكنوي رحمه الله تعالى: فإن النصارى الموجودين في عصرنا تركوا كل شرائعهم واختاروا ما أمرهم هواهم ونحن نعلم بيقين مثلا لا يذبحوا في أعيننا ويذكروا اسم الله تعالى ونسمع فلا باس بالأكل خذ هذا ولا تكن من الغافلين.

(تكملة عمدة الرعاية حاشية شرح الوقاية ۴: ۳۴ كتاب الذبائح)

والنارَ والرسالةَ فلمْ يبقوا على ما كانوا عليهِ في زمنِ النبي صلى اللّه عليه وسلمَ، و لأنهمْ يتركونَ اسم اللّه تعالى عمداً﴿۱﴾نعمْ لو ثبتَ عدم التغيرِ و عدمُ التعمد فكانَ ذبحهمْ جائزاً كما قالَ اللّهُ في سورة المائدةِ: ﴿ وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُواْ الْكِتَابَ حِلٌّ لَّكُمْ ﴾ الآية﴿۲﴾وانْ كانَ ضرباً منْ جانبِ العنقِ اذا قطعَ أكثر العروقِ﴿۳﴾وهوالموفق .

## د مرزايانو د ذبيحې حکم

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اره څه وايي چې د «قادياني ذبيحې» په نوم يوه رساله کې د يوې استفتاء په جواب کې مولانا يوسف لدهيانوي صاحب ليکنه کړې وه، غواړو چې ستاسو په خدمت کې يې هم وړاندې کړو، که موږ په غلطه يو؛ نو زموږ به اصلاح وشي او که زموږ مسئله صحيح وي؛ نو چې د ټولو ديني عالمانو په يوه خبره باندې اتفاق راشي، ځکه چې په مغربي هېوادونو کې دې مسئلې ته ډېره اړتيا ده. ستاسو له درانه حضور نه هيله کيږي چې ډېر ژر په دې مسئله بحث وکړئ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الرحمن باوا ناظم أعلى مجلس تحفظ ختم نبوت کراچی

..... ۱۹۸۸م/ ۱۳/ ۳/

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ولا تحل ذبيحة من تعمد ترک التسمية مسلمًا كان أو كتابيًا لنص القرآن ولانعقاد الإجماع ممن قبل الشافعي على ذلک.

(ردالمحتار ۵: ۲۱۰ کتاب الذبائح)

﴿۲﴾ (سورة المائدة آيت:۵)

﴿۳﴾ في الفتاوی الخانية: وإن ضرب بالسيف من قبل القفا فإن قطع العروق المشروطة قبل الموت حل ويكون مسيئًا.

(فتاوی خانية علی هامش الهندية ۵:۳٦٧ کتاب الصيد والذبائح، باب في الزكاة)

**جواب**: مرزایان نه مسلمانان دي او نه هم اهل کتاب، څکه خو د دوی د لاس ذبیحه حرامه ده. ﴿۱﴾ که څوك دا اعتراض کوي چې څنګه یهود او نصاری د سماوي دین دعوه لري او اسماني کتاب لري، دغه راز قادیانان هم د اسماني دین دعوه کوي او په قرآن باندې د ایمان دعوه لري؛ نو مرزایان د اهل کتابو څخه څنګه په ښکته درجه کې شوه؟ په ظاهره کې خو داسې ښکاري چې د دوی د لاس ذبیحه په لومړی سر کې حلاله وای؟ ددې سوال نه جواب دا دی: چې هر مرزائي (پلار، زوی او لمسی) د اسلام او قرآن د دعوې وروسته د دین د ضروریاتو منکر دي، د همدې له امله هر مرزائي قصداً او بالذات مرتد ﴿۲﴾ او زندیق دی. ﴿۳﴾ بخلافِ أهلِ الکتابِ فانهمْ لمْ یدعوا دینَ الاسلامِ ولا القرآنَ فافهمْ ! وهوالموفق .

## د مشرک د ذبیحې حکم

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې تېره میاشت مولانا سعید احمد صاحب په خپله تبلیغي دوره کې چې تله ګنګ کې شوې وه او د تقریر په وینا کې یې وویل: چې د مشرك د لاس ذبیحه مرداره ده، مولانا صاحب خو لاړ مګر عوامو ورونو ته یې یوه نه، حل کېدونکې مسئله

﴿۱﴾ فی الهندیة: ومنها أن یکون مسلمًا او کتابیًا فلا تؤکل ذبیحة أهل الشرک والمرتد لأنه لا یقرّ علی الدین الذی انتقل إلیه ولو کان المرتد غلامًا مراهقًا لا تؤکل ذبیحته عند (أبی حنیفة) ومحمد رحمهما اللّٰہ تعالیٰ. (فتاوی هندیة ۵:۲۸۵ کتاب الذبائح، الباب الأول)

﴿۲﴾ فی مجموعة قواعد الفقه: المرتد هو الراجع عن دین الإسلام أو هو الذی کفر بعد الإیمان. (مجموعة قواعد الفقه۴۷۷، التعریفات الفقهیة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰہ تعالیٰ: فإن الزندیق یموّه کفره ویروّج عقیدته الفاسدة ویخرجها فی الصورة الصحیحة وهذا معنی إبطان الکفر. (ردالمحتار ۳:۳۲۲ قبیل مطلب فی الکاهن والعراف، باب المرتد)

پوهښتو ده چې مشرك او غير مشرك خلك كوم دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: الحاج عبد الرشيد تله ګنګ چكوال ..... ۱۹۸۵م/ ۲/۱۵/

**جواب:** د مشرك د لاس ذبيحه حرامه ده، ﴿۱﴾ خو د مشرك پېژندل ګران دي، په پاكستان كې ډېر داسې خلك دي چې د ديوبند په لباس كې نجديت خپروي، د خوارجو په څېر د ځينو ناجائزه عملونو له امله هم خلك مشركان ګڼي. أعاذنا الله تعالى من شرهم، وهوالموفق.

## د اهل كتابو د ذبيحې حكم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د اهل كتابو د ذبيحې څه حكم دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: خواص خان رياض سعوديه ..... ۱۴۰۱ هـ/ ۷/ ۱۲/

**جواب:** د اهل كتابو د لاس ذبيحه پاكه ده، ﴿۲﴾ په شرط ددې چې اهل كتابو په خپل كتاب يقين ولري، دهريان نه وي، ځكه چې دهريان د جنت، دوزخ او نبوت نه منكر وي، د پيغمبر صلى الله عليه وسلم په زمانه كې چې د هغوى كومې عقيدې وې لكه: (تثليث، بنوت د عيسى عليه السلام) ددې نه پغير نورې ګډې وډې و نه وايي، دغه راز د ذبح پرمهال د الله نه بغير د بل چا نوم

﴿۱﴾ فى الهندية: ومنها أن يكون مسلمًا أو كتابيًا فلا تؤكل ذبيحة أهل الشرك.

(فتاوى هندية۵: ۲۸۵ كتاب الذبائح، الباب الأول فى ركنه وشرائطه الخ)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: وشرط كون الذابح مسلمًا..... أو كتابيًا ذميًا أو حربيًا..... يعقل التسمية والذبح ويقدر. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: والأولى أن لا يأكل ذبيحتهم ولا يتزوج منهم إلا للضرورة كما حققه الكمال ابن الهمام رحمه الله تعالى.

(ردالمحتار ۵: ۲۰۸ كتاب الذبائح)

نه اخلي. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د شیعه ګانو د ذبیحې حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې(۱)د شیعه ؤلې ذبیحه پاکه ده او که نه؟

المستفتي: مولوي محمد شریف کوهاټ .....

۱۹۷۹ م / جولائی /۲۱/

**جواب:** د شیعه ګانو د لاس ذبیحه مرداره ده. ﴿۲﴾

---

﴿۱﴾ قال العلامة عبد الحی اللکنوی رحمه الله تعالیٰ: فإن النصاریٰ الموجودین فی عصرنا ترکوا کل شرائعهم واختاروا ما أمرهم هواهم ونحن نعلم بیقین مثلًا لا یذبحون ولا یذکرون بل یاکلون حیث یجدون فکیف نأکل لحومهم إلا أن یذبحوا فی أعیننا ویذکروا اسم الله تعالیٰ ونسمع فلا بأس بالأکل.

(تکملة عمدة الرعایة حاشیة شرح الوقایة ۴: ۳۴ کتاب الذبائح)

وقال العلامة أشرف علی التهانوی رحمه الله تعالیٰ: نن سبا که د اروپا حالت ته په کتو سره وویل شي چې او سني عیسویان تش په نامه عیسویان دي، نو هم صحیح ده. څکه چې هغوی خپله د مذهب هیڅ پیروي نه کوي بلکې د هریت (بې دیني) ته یې زړه ورکړی دی. د همدې له امله ددوی دلاس ذبیحه پاکه نه ده، تر هغه پورې چې ښه صحیح معلومه شي چې ذبح کونکی یې یقیني په عقیده کې عیسائي دی، نو د هر کتابي دلاس ذبیحه خوړلو نه باید ځان وساتل شي، (امداد الفتاوی ۳: ۷۴۴ کتاب الذبائح والاضحیة)

﴿۲﴾ فی الهندیة: ومنها أن یکون مسلمًا أو کتابیًا فلا تؤکل ذبیحة أهل الشرک والمرتد.

(فتاویٰ هندیة ۵: ۲۸۵ کتاب الذبائح، الباب الأول)

نه د اهل کتابو ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د شیعه ګانو ذبیحه او د هغوی په جشن کې د شریکېدو حکم

**سوال** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې یو اثنا عشري شیعه چې د خپلو ټولو رسمونو پوره پابندي کوي او صحابه کرامو ته بدي ردي وايي. د هغوی په کور کې د لسم محرم تیاره شوې دوډۍ خوړل څه حکم لري؟ د لاهور یا د هر ځای اهل سنت والجماعت ډلې پیروي چې وي د هغوی لپاره ددې ورځې تیاره شوې دوډۍ خوړل څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي عبد الغفار راولپنډی ۱۹۷۵م/ مارچ/ ۱۹/

**جواب** کوم شیعه ګان چې د کفر درجې ته رسېدلي وي. د بېلګې په توګه حضرت عائشه رضی الله عنها ته د بدو خبرو نسبت کوي، یا حضرت علي رضی الله عنه پېغمبر مني. ﴿۲﴾ نو د هغوی د لاس ذبیحه مرداره ده، ﴿۳﴾ د دوی د لاس نور خوراکونه بې حلال

---

﴿۱﴾ فی الهندیة: الرافضی إذا کان یسبّ الشیخین و یلعنهما والعیاذ بالله فهو کافر و لو قذف عائشة رضی الله تعالی عنها بالزنا کفر بالله، من انکر إمامة أبی بکر الصدیق رضی الله تعالی عنه فهو کافر ...... و بقولهم إنّ جبرائیل غلط فی الوحی إلی محمّد ﷺ دون علیّ بن أبی طالب رضی الله تعالی عنه و هؤلاء القوم خارجون عن ملة الإسلام و أحکامهم احکام المرتدین.
(فتاوی هندیه ۲: ۲۶۳ کتاب السیر، الباب التاسع فی أحکام المرتدین)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: وبهذا ظهر أن الرافضی إن کان ممن یعتقد الألوهیة فی علیّ أو ان جبرائیل غلط فی الوحی، أو کان ینکر صحبة الصدیق أو یقذف السیدة الصدیقة فهو کافر لمخالفته القواطع المعلومة من الدین بالضرورة.
(ردالمحتار ۲: ۳۱۲ کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

﴿۳﴾ فی الهندیة: ومنها ان یکون مسلمًا أو کتابیًا فلا تؤکل ذبیحة أهل الشرک والمرتد.
(فتاوی هندیة ۵: ۲۸۵ کتاب الذبائح، الباب الأول)

دي او د دوی په جشن کې برخه اخیستل حرام دي (۱) وهو الموفق

## د شرکي عقیدې لرونکو شیعه ګانو سره نکاح او د هغوی د ذبیحو حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اره څه وایي چې د دې ځای خلك سل په سلو کې کلك شیعه ګان دي، د دوی عقیده ده چې حضرت علي رضی الله عنه ته په کائناتو کې په جزئي طریقې سره د تصرف اختیار حاصل دی، د داسې شیعه ګانو د لاس ذبیحه د سني مسلمانانو لپاره حلاله ده او که نه؟ او د داسې خلکو سره ستړي مشي، لاس ورکول او سلام کول د شریعت له مخې روا دي او که ناروا؟ بینوا توجروا

المستفتي جناب عبد العزیز کوهاټ

**جواب:** شیعه ګان زیاتره د کفر عقیده لري، د همدې له امله د هغوی د نکاح (۲) او ذبیحې نه ځان ساتل ضروري دي، (۳) که ستاسو د ځای شیعه ګان د کفر عقیده نه لري بلکې ستاسو د جزئي - جزئي تصرف خبرې مطلب دا وي چې د الله د اذن نه بغیر تصرف کوي، یعنې اولنی اذن ورته حاصل دی، په جزئي کارونو

(۱) فی الهندیة: والجلوس للمصیبة ثلاثة أیام رخصة وترکه أحسن کذا فی معراج الدرایة وأما النوح العالی فلا یجوز...... ویکره للرجال تسوید الثیاب وتمزیقها للتعزیة...... وأما تسوید الخدود والأیدی وشق الجیوب وخدش الوجوه ونشر الشعور ونثر التراب علی الرؤس والضرب علی الفخذ والصدر وإیقاد النار علی القبور فمن رسوم الجاهلیة والباطل والغرور. (فتاویٰ هندیة ۱: ۱۶۷، الباب الحادی والعشرون فی الجنائز، ومما یتصل بذلک مسائل التعزیة)

(۲) فی الهندیة: ولا یجوز نکاح المجوسیات ولا الوثنیات...... وکل مذهب یکفر به معتقده. (فتاوی هندیة ۱: ۲۸۱، القسم السابع المحرمات بالشرک)

(۳) فی السراجیة: ولا تحل ذبیحة المجوسیّ والوثنی والمرتد. (فتاوی سراجیة ۳۸۰، باب من تحل ذبیحته)

کې اذن ته حاجت نه لري؛ نو دا شرکي عقيده ده، کما في الفوز الکبير«١» و کتاب الوسيلة، که په جزئي امورو کې يې الله تعالى ته محتاج ګڼي بيا شرک نه دی؛ خو افتراء او نور ښه سوچه دروغ دي. وهوالموفق

## د چا حيوان بې اجازې حلالول او وروسته ورته پيسې ورکول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د خپل يا پردي سړي مرغى بې اجازې او بې قيمته د ضرورت په وخت کې حلاله کړي، وروسته ورته د مرغى پوره قيمت ورکړي، ايا په دې صورت کې بيع صحيح ده او که نه؟ که صحيح نه وي؛ نو ددې غوښې خوړل څه حکم لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الحميد ډی آئی خان ...... ١٩٧٢م / ٢٥/ ٤/

**جواب** که عرفي اجازه وي بيا خير دی او که بيخي اجازه نه وي؛نو دا غصب دی او ناجائز کار دی.«٢»

---

«١» قال العلامة الشاه ولى الله رحمه الله تعالى: والشرك أن يثبت لغير الله سبحانه وتعالى شيئًا من الصفات المختصة به كالتصرف في العالم بالإرادة الذى يعبر عنه بكن فيكون...... وانما كان إشراكهم في الأمور الخاصة ببعض العباد، وكانوا يظنون أن الملك على الإطلاق جلّ مجده شرّف بعض العباد بخلعة الألوهية ويؤثر رضاهم وسخطهم على سائر العباد كما أن ملكًا من الملوك عظيم القدر يرسل عبيده المخصوصين إلى نواحي المملكة ويجعلهم متصرفين في الأمور الجزئية إلى أن يصدر عن الملك حكم صريح فلا يتوجه إلى تدبير الأمور الجزئية ويفوّض إليهم أمور سائر العباد.

(الفوز الكبير ٢٠، ٢١، الباب الأول، فصل المخاصمة مع الفرق الأربعة الضالة، المشركون وعقائدهم)

«٢» في درر الحكام: لا يجوز لأحد أن يتصرف في ملك الغير بلا إذنه...... والإذن إما أن يكون صراحةً وإما أن يكون دلالةً.

(درر الحكام ١: ٨٥، المادة: ٩٦)

بهر حال مذبوحه مرداره نه ده. «۱» وهوالموفق

## د ژوند د معلومېدو وروسته حرکت یا د وینې وتل ضروري نه دي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یوه مرغۍ مي حلاله کړه، تول یو څاڅکی وینه ترې تویه شوه او حرکت یې وخوړ، ددې خوړل حلال دي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۳۹۳ هـ / ربیع الأول /۱۶/

**جواب:** کله چې د ذبحې په وخت کې د حیوان د ژوند معلومات وشي بیا یې حرکت کول او وینه تویېدل ضروري نه دي، که ژوند یې معلوم نه وي؛ نو که داسې وینه ترې تویه شي لکه څه ډول چې د ژوندي حیوان نه وینه روانه وي بیا حلال دی او که نه وي؛ نو مردار دی، دغه راز که یوازې پښه یې وغزول؛ نو مردار دی او که ددې نه یې زیات حرکت وکړ بیا حلال دی. (ردالمحتار : ۵: ۲۶۹) «۲» وهوالموفق .

---

«۱» عن سعد بن معاذ أخبره أنّ جارية لكعب بن مالك كانت ترعى غنمًا بسلع فاصيبت شاة منها فأدركتها فذبحتها بحجر فسئل النبي ﷺ فقال كلوها.

وقال الحافظ ابن حجر رحمه الله تعالىٰ: وفيه جواز أكل ما ذبح بغير إذن مالكه ولو ضمن الذابح وخالف في ذلك طاؤس وعكرمة.

(فتح الباری ۹: ۶۳۲، كتاب الذبائح، باب ذبيحة المرأة والأمة)

«۲» في ردالمحتار: تحل ذبيحة علمت حياتها وإن لم تتحرك ولم يخرج منها دم وإن لم تعلم فلا بد من أحدهما تأمل.

(ردالمحتار ۵: ۳۳۶، كتاب الصيد)

وقال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالىٰ: وتؤثر فيها الزكوة عند الحنفية إن علمت حياتها أولم تدر حياتها فتحركت أو خرج الدم.

(الفقه الإسلامي وأدلته ۴: ۲۷۸۲، الباب التاسع الذبائح والصيد، المطلب الثاني عشر)

## په ذبح کې ښټ پرې کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې که د حلالولو پرمهال د مرغۍ ټول ښټ پرې شي؛ نو څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: شاه میډیکل ستور کیملپور ..... ۱۳۹۶ هـ / رمضان المبارك / ۲۲/

**جواب:** دا مرغۍ پاکه ده؛ خو دا کار حیوان ته د عذاب ورکولو له امله مکروه دی، (الهدایة) ﴿۱﴾ وهوالموفق .

## د پیشو د مرغۍ څخه د سر پرې کولو پرمهال د ذبح حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې که د مرغۍ نه پیشو، سپي یا کوترې یوازې سر پرې کړ، نور ښټ او بدن یې پوره پاتې شو، ایا دا مرغۍ په حلالولو سره پاکیږي او که نه؟ یا مثلاً د موټر او غوا تر پښو لاندې شو، سر یې لرې شو او ښټ یې د نور بدن سره پاتې شو، ددې ذبح کول صحیح دي او که نه؟ موږ ته د دلیل ضرورت دی. بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم..... ۱۴۰۳ هـ / ربیع الأول /

**جواب:** فی الهندیة : ۵ ۳۲۳: لو انتزعَ الذئب رأسَ الشاة وهی حیةٌ تحلُّ بالذبحِ بینَ اللبةِ واللحیین کذا فی الوجیزِ للکردی ﴿۲﴾ ستا دواړه سوالونه پکښې حل شوه، وهوالموفق .

---

﴿۱﴾ قال العلامة المرغینانی رحمه الله تعالی: ومن بلغ بالسکین النخاع أو قطع الرأس کره له ذلک وتؤکل ذبیحته..... وفی قطع الرأس زیادة تعذیب الحیوان بلا فائدة وهو منهی عنه. (الهدایة۴: ۴۳۹، کتاب الذبائح)

﴿۲﴾ (فتاوی هندیة۴: ۲۹۱، کتاب الذبائح، الباب الثانی فی المتفرقات)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: شاة قطع ... پاتې په بل مخ باندې

## د حیوان دوه خایه کېدو په صورت کې د سر والا برخه په ذبح پاکه ده

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یو حیوان رېل ګاډي دوه ځایه کړ؛ خو بیا هم ژوندی ؤ، هغه مو ذبح کړ، ایا پاتې نور به حلال وي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد اسحاق..... ۱۹۷۴م/۸/۱۵/

**جواب:** واضحه دې وي چې پاتې برخه هم حرامه ده، لأنه المبان من الحی ﴿۱﴾ د سر والا برخه د ذبحې وروسته حلاله ده، کما فی الدرالمختارِ : والمعتبرُ فی المتردیة وأواتها کنطیحةٍ وموقوذةٍ و ما أکلَ السبع والمریضة مطلق الحیاةِ و اِنْ قلّتْ (هامش رد المحتارِ ۵: ۴۱۶) ﴿۲﴾ وهوالموفق.

## د سر پرې حیوان چې د ذبح ځای یې پاتې وي، د حلالېدو حکم یې

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې سپي د یوې مرغۍ سر پرې کړ، بل سري یې په پاتې ستوني (مرۍ) باندې تېره چاړه تېره کړه او مرغۍ ژوندۍ وه، ایا دا مرغۍ حلاله ده او که حرامه؟ دغه راز که د وزې او یا هم له ګډې سره داسې وشي؛ نو بیا څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي فضل حق اضاخېل بالا پشاور

---

(بقیه حاشیه) الذئب أوداجها وهی حیة لا تذکی لفوات محل الذبح ولو انتزع رأسها وهی حیة تحل بالذبح بین اللبة واللحیین. (ردالمحتار ۵: ۲۱۷ کتاب الذبائح)

﴿۱﴾فی الهندیة: قطع الذئب من إلیة الشاة قطعة لا یؤکل المبان وأهل الجاهلیة کانوا یاکلونه فقال ﷺ: ما أبین من الحی فهو میتة.

(فتاوی هندیة ۵: ۲۹۱ کتاب الذبائح، الباب الثالث فی المتفرقات)

﴿۲﴾(الدر المختار ۵: ۳۳۴ کتاب الصید)

**جواب:** که مذبح یې پاتې وي بیا حلال دی، که مذبح او رګونه یې سپي وړي وي بیا یې خوړل حرام دي، فی الهندیة ۵: ۳۲۳ ولو انتـزعَ الـذئبُ رأسَ الشاةِ وهی حیّةٌ تحلُّ بالذبحِ بینَ اللبةِ واللحیینِ ، فیها أیضاً : شاةٌ قطعَ الذئبَ أوداجها وهی حیّةٌ لا تذکی لفوات محلّ الذبحِ کذا فی الوجیزِ للکردی«۱» فقط ، هوالموفق .

## د بحیره او سائبه حرام او حلال صورتونه

**سوال:** ما حکمَ الشریعةُ المصطفویةُ (علی صاحبها ألفَ ألفَ سلامٍ وتحیةٍ ) فی البحیرةِ وأخواتها ذبحها باذنِ مالکها و ذکرَ علیها اسم اللّٰه تعالی وحـــده فی وقتِ ذبحها أ یحلُّ أکلها امْ لا؟ بینوا توجروا

المستفتي: حکیم عبد الله شاه سیف الله ډاکخانه سیف اللہ او سپدونکی تنګی چارسده

**جواب:** الراجح کونُ البحیرةِ وَ السائبةِ منْ أفرادِ ما أهلّ به لغیر اللّٰه«۲»

«۱» (فتاوی هندیة ۵: ۲۹۱ کتاب الذبائح، الباب الثالث فی المتفرقات)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: قطع الذئب أوداجها وهی حیة لا تذکی لفوات محل الذبح ولو انتزع رأسها وهی حیة تحل بالذبح بین اللبة واللحیین. (ردالمحتار ۵: ۲۱۷ کتاب الذبائح)

«۲» فی مجموعة قواعد الفقه: ومنه سمیت البحیرة وذلک ماکانوا یجعلونه بالناقة إذا ولدت عشرة بطن شقّوا اذنها فسیبونها فلا تحمل ولا ترکب. (مجموعة قواعد الفقه ۲۰۳)

وفیها أیضًا: السائبة هی الناقة التی تسیب فلا تمنع من مرعی بسبب نذر علّق بشفاء مریض أو قدوم غائب. (مجموعة قواعد الفقه ۳۱۷)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: واعلم أن النذر الذی یقع للأموات من أکثر العوام وما یؤخذ من الدراهم والشمع والزیت و نحوها...... پاتې په بل مخ باندي

فما ذبح باسم الله بعد التوبة فهو حلالٌ لارتفاع العلة المحرمة و ما ذبح قبلَ التوبة فهوَ حرامٌ سواءٌ ذبحه بنفسه أوْ ذبحه غيره «۱» نعم! اذا خرجَ عنْ ملكه (قبلَ الذبحِ) فاذا ذبحه المالك الثانی باسم الله تعالی فهوَ حلالٌ لانتفاء الوصفِ المحرمِ و لا يجری نية الأجنبی فی ملك الغيرِ فافهمْ وتــدبرْ و لا تكــنْ مــن المفرطينَ ولا المتفرطينَ ، وهوالموفق.

## د غوټي پورته (فوق العقده) ذبح کول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې يو قصاب د شپې له خوا ګډه حلاله کړه، کله چې سهار شو؛ نو معلومه شوه چې ذبح د غوټي پورته شوې وه، ايا اوس به دا حيوان حلال وي که حرام او که مکروه؟ د ګډې او مرغې په غوټه (عقده) کې څه فرق شته او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبيد الله فاضل جامعه دار العلوم حقانيه مهمند ايجنسی.....

۱۹۷۰م/ ۱۱/ ۱۱/

---

باقي حاشيه إلى ضرائح الأولياء الكرام تقربًا إليهم فهو بالإجماع باطل وحرام مالم يقصدواصرفها لفقراء الأنام.

(الدرالمختار ۲: ۱۳۹، كتاب الصوم، مطلب فی النذر الذی يقع للأموات من أكثر العوام الخ)

«۱» قال المفتی كفايت الله رحمه الله تعالى: سوال : ما قولكم رحمكم الله فی البقرة التی تركت وربيت تقربا لغير الله ثم بدل المعقرب نيته وذبح البقرة بسم الله الله اكبر الحمها حلال أم حرام؟...... الجواب: إن بدل المعقرب نيته قبل ذبح البقرة وقصد التقرب بإراقة دمها إلى الله تعالى وتاب عن ما صدر منه من قصد التقرب إلى غيره تعالى ثم ذبحها تقربا إلى الله تعالى حلت البقرة وحل أكلها وإن لم يبدل نيته قبل ذبحها ولم يتب عمّا صدرمنه وذبحها على نيته السابقة لا يحلها التسمية اللسانية وحرمت البقرة وحرم أكلها مع كونها مذبوحة باسم الله تعالى. (كفايت المفتی ۸: ۲۳۳ كتاب الأضحية والذبيحة)

**جواب:** که د مرغی، غوا یا بل حیوان غوټه لاندې راشي؛ نو په حلالوالي کې یې هیڅ فرق نه راځي، وقدْ صرّحَ فی الذخیرةِ بأنَّ الذبحَ اذا وقعَ أعلى منَ الحلقومِ لا يحلُّ لأنَّ المذبحَ هو الحلقوم لكنْ روايةَ الامامِ الرستغفنى تخالفُ هذه حيثُ قالَ: هذا قولُ العوامِ وليسَ بمعتبرٍ فتحلُّ سواءٌ بقيتِ العقدة مما يلى الرأس أوِ الصدر لأنَّ المعتبرَ عندنا قطعُ أكثرِ الأوداجِ وقدْ وجدَ ، وكانَ شيخى يفتى بهذه الروايةِ و قدْ شنع الاتقانى فى غايةِ البيانِ على من خالفَ تلك الرواية غايةَ التشنيعِ مختصراً . (رد المحتارِ ٥: ٢٥٦) وقالَ العلامة الشامى رحمه الله تعالى : والتحريرُ للمقامِ أنْ يقالَ انْ كانَ بالذبحِ فوقَ العقدةِ حصلَ قطعُ ثلثة من العروقِ فالحقُّ ما قاله شراح الهدايةِ تبعاً للرستغفنى و الّا فالحقُّ خلافه اذا لم يوجدْ شرطُ الحلّ باتفاقِ المذهبِ و يظهرُ ذلك بالمشاهدة أوْ سؤال أهلِ الخبرةِ فاغتنمْ هذا المقالَ و دعْ عنك الجدالَ ﴿١﴾ مولانا خلیل احمد صاحب د خپل تحقیق او مشاهدې په بناء د جواز فتوی ورکړې ده، فليراجعْ الى امداد الفتاوى ٣: ٣٦٤ ﴿٢﴾ وهوالموفق .

## د محققینو په نزد د غوټې پورته ذبیحه پاکه ده

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې که حیوان د ستوني د غوټې نه پورته ذبحه شي؛ نو ایا دا به حلال وي که حرام او که مکروه؟ که حلال وي بیا د ټولو لپاره حلال دی او که یوازې د غریبانانو لپاره؟ په ذبحه کولو کې سنت طریقه د غوټې نه پورته ده او که ښکته؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا غلام رباني حسين آباد ..... ۱۹۷۵م / جنوري / ۲۸/

﴿١﴾ (ردالمحتار ٥: ٢٠٧، كتاب الذبائح)

﴿٢﴾ (امداد الفتاوى ٣: ٥٣٨، كتاب الصيد والذبائح والأضحية، حكم ذبح فوق العقدة)

**جواب:** د محققينو په نزد د غوټۍ پورته (فوق العقده) ذبحه كول د هر ښتمن او غريب لپاره حلال دي، كما في رد المحتارِ ٥: ٢٥٦ : وقد صرَّحَ في الذخيرة بأنَّ الذبحَ اذا وقعَ أعلى منَ الحلقومِ لا يحلُّ لأنَّ المذبحَ هو الحلقومُ لكن روايةَ الامام الرستغفنى تخالفُ هذه حيثُ قالَ: هذا قولُ العوامِ وليسَ بمعتبرٍ فتحلُّ سواءٌ بقيت العقدة مما يلى الرأس أوِ الصدر لأنَّ المعتبرَ عندنا قطعُ أكثرِ الأوداجِ وقدْ وجدَ ، وفيهِ أيضاً أقولُ والتحريرُ للمقامِ انْ يقالَ ان كانَ بالذبحِ فوقَ العقدةِ حصل قطعُ ثلاثة منَ العروقِ فالحقُّ ما قاله شراح الهدايةِ تبعاً للرستغفنى و الا فالحقُّ خلافه اذا لم يوجد شرط الحلِّ باتفاق أهلِ المذهبِ ويظهرُ ذلك بالمشاهدةِ أوْ سؤال أهلِ الخبرةِ فاغتنم هذا المقالَ و دعْ عنك الجدالَ،انتهى﴿۱﴾ مولانا خليل احمد صاحب د خپل تحقيق او مشاهدې په بناء د جواز فتوى وركړې ده، فليراجعْ الى امداد الفتـاوى ٣: ٣٦٤﴿۲﴾ كه ودجان او وريدان يې دماغوټه رسېدلي وي بيا يې په حلت كې

﴿۱﴾ (ردالمحتار ٥:٢٠٧، كتاب الذبائح)

﴿۲﴾ في إمداد الفتاوى: دمولانا خليل احمدصاحب ليكل شوى خط دڅوكلونو راهيسي راسره دى اودې تحقيق نه رسېدلى يم،زما په اند كوم حرام ويونكي چې وايي: كه دغوټي نه پورته ذبح وشي، غاړه او مرى يې پاتې شي دا ذبح صحيح نه شوه،وجه يې داده چې دخلكو تجربه نشته،ځكه چې غاړه په غوټي نه خلاصيږي بلكې،دسرله لورې پورته ختلې وي،ددې له امله دعوه چې كه ذبح د غوټې پورته وشي،نو غاړه او مرى به پرې نه شي،دا ډېره د حيرانتيا خبره ده... الجواب من اشرف علي:دحلت اوحرمت په دواړو قولونو كې داختلاف بنسټ دا دى چې غوټي نه پورته دذبح په صورت كې غاړه اومرى پرې كيږي اوكنه؟داكتوسره تعلق لري، دكتوروسته په ديكې اختلاف نه پيداكيږي اوداخرگنده ده چې دثقه راويانو دكتلو نه معلوميږي چې دا غاړوى حلال دى.(امدادالفتاوى ٣: ٥٣٨، ٥٣٩كتاب الذبائح)

هیڅ شک نشته، کما فی أبي السعود : والوريدانِ عرقانِ مكتنفانِ بصفحتي العنقِ في مقدمهما متصله بالوتين يردان منَ الرأسِ اليه (هامش التفسير الكبير ۷: ۶۲۶)«۱» والکشاف ۴: ۲۰:«۲» ومظهری ۹: ۶۷:«۳» فتدبرْ وهوالموفق.

## د غوټې پورته ذبحه کې د مرغانو او لويو حيواناتو تر منځ فرق نشته

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د مرغۍ د ذبحې پرمهال که غوټه پورته لاړه شي؛ نو حلاله ده او که حرامه؟ په مرغۍ او لويو حيواناتو کې څه فرق شته او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: احمد سعيد تحصيل ټانک ډی آئی خان

**جواب:** د مفتی به قول په رڼا کې د مرغۍ او لويو حيواناتو ترمنځ هيڅ فرق نشته، وهذه المسئلةُ مسطورةٌ في رد المحتارِ ۵: ۲۵۶«۴» فليراجعْ وهوالموفق.

## د خرې په شيدو لوی شوې چيلۍ (وزې) حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د يوې چيلۍ (وزې) بچی د خرې په شيدو لوی شي؛ نو د دې چيلۍ خرڅول او

«۱» (تفسير ابی السعود ۶: ۱۹۲، سورة ق آيت: ۱۶)

«۲» (تفسير کشاف ۴: ۳۷۳، سورة ق: آيت ۱۶، طبع بيروت)

«۳» (التفسير المظهری ۹: ۶۷، سورة ق: آيت: ۱۶، مکتبه رشيديه)

«۴» في ردالمحتار: وقد صرّح في الذخيرة بأن الذبح إذا وقع أعلى من الحلقوم لا يحل لأن المذبح هو الحلقوم لكن رواية الإمام الرستغفني تخالف هذه حيث قال: هذا قول العوام وليس بمعتبر فتحل سواء بقيت العقدة مما يلي الرأس أو الصدر لأنّ المعتبر عندنا قطع أكثر الأوداج وقد وجد وكان شيخي يفتي بهذه الرواية.

(ردالمحتار ۵: ۲۰۷، كتاب الذبائح)

د غوبنې خوړل یې څه حکم لري؟ حلال دي او که حرام؟ بینوا توجروا

المستفتي: فضل منان

**جواب:** څو ورځې چې نور خوراك وکړي بیا یې په خوړلو کې هیڅ خبره نشته، دغه راز خرڅول یې هم روا دي، في الهندية ٥: ٣٢٢: الجدى اذا كانَ يربى بلبنِ الأتانِ والخنزيرِ اعتلفَ أياماً فلا بأسَ به لأنه بمنزلةِ الجلالةِ﴿١﴾ وهوالموفق.

## د وینو څښونکي حیوان حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې که د غوا د چاغښت لپاره هغه ته وینه ورکول شي؛ نو د دغې غوا شیدې او غوښه څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: احمد سعید تحصیل ټانك ډی آئی خان

**جواب:** که په شیدو او غوښه کې یې د وینو او مرداری بوی محسوسېده یا یې تاثیر پکښې ؤ بیا مرداره ده او که د مرداری تاثیر پکښې نه وي بیا پاکه ده، ونظيره الجلالة فليراجعْ الى رد المحتارِ ٥: ٩٩: ﴿٢﴾ وهوالموفق.

## د مَآأُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِاللّٰهِ نه څه مطلب دی؟

**سوال:** ماقولكم أيهاالعلماء الحقانيونَ فى الترجيح لأحدِالقولينِ فى معنى قوله تعالى: مَا أُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰه، قالَ المفسرونَ المرادُ به رفعُ الصوتِ باسم اللّٰه تعالى فى وقتِ

---

﴿١﴾ (فتاوى هنديه ٥: ٢٩٠، كتاب الذبائح، الباب الثانى فى بيان مايؤكل من الحيوان ومالا يؤكل)

﴿٢﴾ فى ردالمحتار: (قوله التى تأكل العذرة) اى فقط حتّى أنتن لحمها قال فى شرح الوهبانية وفى المنتقى: الجلالة المكروهة التى اذا قربت وجدت منها رائحة فلا تؤكل ولا يشرب لبنها ولا يعمل عليها وذلك حالها.

(ردالمحتار ٥: ٢٣٩، كتاب الحظر والإباحة)

ذبح الحيوانِ وقالَ أهلُ الرأى فى زماننا بلِ المرادُ به رفعُ الصوت مطلقاً باسمِ غيرِ اللّٰه تعالى قبلَ وقت ذبحه أوْ فى وقتِ ذبحه فأى قولٍ راجحٌ و صحيحٌ عندكمْ؟ بينوا توجروا

المستفتي: حكيم عبد الله شاه صاحب تنگى چارسده ..... ۱۹۷۲ م / ۶ / ۵ /

**جواب:** فى الدرالمختارِ وغيره : ذبح لقدوم الأميرِ ونحوه كواحدٍ من العظماءِ يحرم لأنه أهلَّ به لغيرِ اللّٰه تعالى ولو ذكرَ اسم اللّٰه تعالى ، (هامش رد المحتارِ ۵: ۲۶۹ كتاب الذبائح)﴿۱﴾فدلتْ دلالةً واضحةً على أنْ كونَ الحيوانِ مَا أُهلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ على قصدِ تعظيم غير اللّٰه تعالى بالذبحِ لا على ذكر اسم غيرِ اللّٰه ، فما قيلَ انّه ما ذبح لغير اللّٰه بيانٌ للواقع لا أنّه تفسيرٌ للقرآنِ بلْ تفسير ما رفع به الصوت لتعظيم غيرِ اللّٰهِ سواءٌ ذكرَ عليهِ اسم اللّٰه أولا فهو حرامٌ بعد الذبحِ ، فالقولُ هو القولُ الثانى﴿۲﴾وهوالموفق .

## د چا په دروازه کې حیوان حلالول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې كه څوك د چا په دروازه كې حلاله شي؛ نو څه حكم لري؟ ايا هغه به حلاله وي او كه حرامه؟ بينوا توجروا

المستفتي: امير زمان لورالائى بلوچستان ..... ۱۹۸۶ م / ۴ / ۲۲ /

﴿۱﴾ (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۵: ۲۱۷، كتاب الذبائح)

وفى الهندية: وفى المشكل ذبح عند مرأى الضيف تعظيمًا له لا يحل اكلها وكذا عند قدوم الأمير او غيره تعظيمًا. (فتاوى هندية۵: ۲۸۶، كتاب الذبائح، الباب الأول)

﴿۲﴾ قالِ العلامة عبد الحى اللكنوى رحمه اللّٰه تعالى: ما أهل به لغير اللّٰه. نه هغه ښاروى مراد دى چې د الله تعالى پرته دبل چا خوشحالي پكښې مقصد وي، دوينې تويولو نه هم د الله تعالى پرته د بل چالويي مقصد وي، كه په داسې ښاروي بسم الله وويل شي بيا هم حرام دى. (مجموعة الفتاوى۲: ۲۱۱ كتاب الحظروالاباحة)

**جواب**: دا یو رواج دی، په دیکښې د حلالوونکي مطلب دا نه وي چې د غیر الله لپاره وینه تویه شي. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د پیر د روغتیا، باران او هدیره کې د حیوان حلالول

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې (۱) زموږ په علاقه کې خلك د غیر الله لپاره نذر مني، مثلاً دا ګډه د پیر عبد القادر جیلاني ده؛ خو د ذبح په وخت د الله تعالی نوم اخلي، ایا ددې غوښه خوړل حلال دي او که حرام؟

(۲) زموږ په ځای کې دا هم یو رواج دی چې د ناروغ د روغتیا په خاطر خلك هدیرې ته ګډه بوځي او هلته یې حلالوي، دغه راز د باران د وربدو لپاره هم هدیره کې ګډه حلالوي او بیا دعاګاني غواړي، دغه راز که په مال کې یې کومه ناروغي پیښه شي؛ نو یو یا دوه ګډې هدیرې ته بوځي، هلته یې حلالوي او خوري یې، بیا دعاګاني غواړي چې خدایه له دې مرضه مې مال ته نجات ورکړه!

(۳) که یو سړی یوازې د خدای د رضا لپاره ګډه هدیرې ته بوځي او هلته یې ذبح کړي، ایا په دیکښې ګناه شته او که نه؟ دغه راز خوړل یې څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: جامعه عربیه اسلامیه بحر العلوم کوټه پاکستان ..... ۱۹۸۸م/۶/۱۵/

**جواب**: د ذبیحې د حلت لپاره دوه شرطونه دي: (۱) لومړی دا چې له قصده به تسمیه نه پرېږدي، (۲) د وینې په تویولو سره د غیر الله خوشحالول مقصد نه وي، کما أشار الیه الفقهاء في کتاب الذبائح ﴿۲﴾ په دې ټولو صورتونو

﴿۱﴾ قال العلامة الشامي رحمه الله تعالی: فالذبح عند وضع الجدار أو عروض مرض أو شفاء منه لا شک في حله لأن القصد منه التصدق حموی. (ردالمحتار ۵: ۲۱۷ کتاب الذبائح)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالی: وتارک التسمیة عمداً فإن ترکها ناسیاً حل وإن ذکر مع إسمه تعالی غیره، فإن وصل بلا عطف ...... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

کې دویم شرط غالباً نشته، ددې له امله يې حرامول زیات راجح دي، بخلاف الذبحِ للضيفِ فانَّ القصدَ فيه تعظيمُ الضيفِ باللحمِ دونَ الاراقةِ(۱) وهو الموفق.

## د حاجیانو د راتلو او په ودونو کې د حیوان حلالول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي (۱) چې زموږ په ځای کې ځینې خلك د حاجي صلحب د راتلو سره هغه ته په ډالۍ کې گډه یا غوا ورکوي، څوك يې حلالوي او څوك يې همداسې ژوندی ورته سپاري، ایا دا ذبحه د مَآ أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللهِ لپاره ده او که نه؟

(۲) دغه راز د کوم سړي چې واده وي، هغه ته هم ځینې خلك په ډالۍ کې گډه یا بل حیوان ورکوي او د دوه قومونو د سولې پرمهال هم دغسې معامله تکراریږي، ددې ټولو شرعي حکم څه دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي عبد الرحمن ترخویه کلی ډاکخانه ږومیل ضلع بنو .....

۱۴۰۲ هـ / جمادی الأولی /۱۹/

---

باقي حاشیه كره وان عطف حرمت نحو بإسم الله وإسم فلان او فلان لأنه اهل به لغير الله. (درمختار مختصراً)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالیٰ: (قوله وتارك التسمية عمدًا) اى ولا تحل ذبيحة من تعمد ترك التسمية مسلمًا كان أو كتابيًا لنص القرآن ولانعقاد الإجماع ممن قبل الشافعي على ذلك.

(ردالمحتار ۵: ۲۱۰، ۲۱۱، كتاب الذبائح)

(۱) في الهندية: وفي المشكل ذبح عند مرأى الضيف تعظيمًا له لا يحل أكلها وكذا عند قدوم الأمير أو غيره تعظيمًا فأمّا إذا ذبح عند غيبة الضيف لأجل الضيافة فإنه لا بأس به كذا في الجوهرة النيرة.

(فتاوى هندية ۵: ۲۸۶، كتاب الذبائح، الباب الأول في ركنه وشرائطه الخ)

**جواب:** مفسرينو او فقهاء كرامو د مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللهِ درې صورتونه ليكلي دي، (۱) هغه چې د غير الله په نوم ونامول شي، ﴿۱﴾ (ب) هغه چې د غير الله په نوم ذبح شي، ﴿۲﴾ هغه وخت چې د وينو په تويولو كې د غير الله خوشحالي مقصد وي، ﴿۳﴾ بخلاف ما اذا أراد تعظيم غير اللّه كالضيفِ باللحمِ ﴿۴﴾ مستفتي چې كوم صورتونه ليكلي دا درې صورتونه پكښې نشته، حرام گڼل يې تكلف او تعمق دى، خو دومره ده چې په ديكښې تقرب الى الله هم مقصد نه وي، يوازې يو قومي رواج ته وده وركول دي، حرام نه دي، كما في ذبيحةِ القصابِ و كما اذا أخذ الشيخ النذيرةَ على سبيلِ الصدقةِ فليراجعْ الى رد المحتارِ ۲: ۱۷۵: قبيل الاعتكافِ ﴿۵﴾ وهو الموفق .

---

﴿۱﴾ في مجموعة قواعد الفقه: السائبة هي الناقة التي تسيب فلا تمنع من مرعى بسبب نذر علّق بشفاء مريض أو قدوم غائب. (مجموعة قواعد الفقه ۳۱۷)

﴿۲﴾ قال العلامة النووي رحمه الله تعالىٰ: قال رسول الله ﷺ لعن الله من ذبح لغير الله وأمّا الذبح لغير الله فالمراد به أن يذبح باسم غير اللّه كمن ذبح للصنم أوالصليب أو لموسىٰ أو لعيسىٰ عليهما السلام أو للكعبة ونحو ذلك فكل هذا حرام ولا تحل هذه الذبيحة. (حاشية النووي على الصحيح للإمام المسلم۲: ۱۲۰، باب تحريم الذبح لغير الله تعالىٰ)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ: ذبح لقدوم الأمير ونحوه كواحد من العظماء يحرم لأنه اهل به لغير الله ولو ذكر اسم الله تعالىٰ ولو ذبح للضيف لا يحرم. (درمختار ۵: ۲۱۷، كتاب الذبائح)

﴿۴﴾ في الهندية: وفي المشكل ذبح عند مرأى الضيف تعظيمًا له لا يحل أكلها وكذا عند قدوم الأمير أو غيره تعظيمًا فأما إذا ذبح عند غيبة الضيف لأجل الضيافة فإنه لا بأس به. (فتاوىٰ هندية ۵: ۲۸۶، كتاب الذبائح، الباب الأول)

﴿۵﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ: واعلم أن النذر پاتې حاشيه په بل مخ باندې

## د ظلم او قرض د خلاصون لپاره ذبح کول

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زيد د عمر لپاره يو ګډ ذبح کړ چې خالد په ما باندې ظلم کوي يا دا چې په ما باندې قرض دی، غواړم چې ته مې مرسته وکړې! ځکه چې ته زما ګاونډی يې! ايا ددې ذبيحې غوښه حلاله ده او که مرداره؟ بينوا توجروا

المستفتي: حاکم ګل وزيرستاني د دارالعلوم حقانيه زده کوونکی ......
۱۴۰۱ هـ / ۷ / ۴/

**جواب**: دا حيوان د رواج له امله ذبحه شوی، د تقرب الی غير الله په نوم نه دہ ذبح شوی، ﴿۱﴾ ددې خوراك روا دی، دا په مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ کې نه دی شامل ﴿۲﴾ وهوالموفق

---

باقي حاشيه الذی يقع للأموات من أكثر العوام وما يؤخذ من الدراهم والشمع والزيت ونحوها إلى ضرائح الأولياء الكرام تقربًا إليهم فهو بالإجماع باطل وحرام مالم يقصدوا صرفها لفقراء الأنام. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ولايجوز لخادم الشيخ أخذه إلّا أن يكون فقيرًا أوله عيال فقراء عاجزون فيأخذونه على سبيل الصدقة المبتدأة.
(ردالمحتار ۲: ۱۳۹، قبيل باب الاعتكاف)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: فالذبح عند وضع الجدار أو عروض مرض أو شفاء منه لاشک فی حله لأن القصد منه التصدق حموی.
(ردالمحتار ۵: ۲۱۷، کتاب الذبائح)

﴿۲﴾ قال العلامة عبد الحي اللكنوی رحمه الله تعالى: ما أهل به لغير الله نه هغه ځاروی مراد دی چې د الله تعالی پرته د بل چا خوشحالي پکښې مقصد وي، دوينې توبولو نه هم د الله تعالی پرته د بل چالويي مقصد وي، که په داسې ځاروي بسم الله وويل شي بيا هم حرام دی (مجموعة الفتاوی ۲: ۲۱۱ کتاب الحظر والاباحة)

## د باطلو معبودانو، بادشاهانو او مېلمنو لپاره د حيوان حلالول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې د باطلو معبودانو د لويي، د بادشاهانو د لويي او مېلمنو د عزت لپاره چې کوم حيوان حلال شي، د هغې د خوړلو څه حکم دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۹۸۸م/ ۱ / ۱۷/

**جواب:** بسم الله الرحمن الرحيم الحمد لله وكفى وسلامٌ على عباده الذينَ اصطفى أما بعدُ! هغه حيوان چې د باطلو معبودانو د لويي او تعظيم لپاره ذبحه شي حرامه ده او په مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّـهِ کې شامله ده، ځکه چې ذبح کوونکي د دې باطل معبود تعظيم وکړ، ﴿۱﴾ د وينې په تويولو سره نه په غوښې، ځکه چې د هغوی تعظيم او لوی ګڼل په غوښې سره څنګه متصور کېدای شي؟

دغه راز هغه حيوان چې د بادشاهانو او حاجيانو د تعظيم په نيت ذبحه شي هغه هم په مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّهِ کې شامله ده. كما في الدر المختار﴿۲﴾وغيره، ځکه چې د ذبح کوونکي مقصد دا نه وي چې مېلمه دې غوښه وخوري، كما لايخفى.

﴿۱﴾قال العلامة النووى رحمه الله تعالى: قال رسول اللهﷺ: لعن الله من ذبح لغير الله وأما الذبح لغير الله فالمراد به أن يذبح باسم غير الله كمن ذبح للصنم أو للصليب أو لموسى أو لعيسى عليهما السلام أو للكعبة ونحو ذلك فكل هذا حرام ولا تحل هذه الذبيحة. (حاشية النووى على الصحيح للإمام المسلم ۲: ۱۶۰، باب تحريم الذبح لغير الله تعالى)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: ذبح لقدوم الأمير ونحوه كواحد من العظماء يحرم لأنه أهل به لغير الله ولو ذكر اسم الله تعالى ولو ذبح للضيف لا يحرم. (درمختار ۵: ۲۱۷، كتاب الذبائح)

او هغه ګډه چې د مېلمه د خوراك لپاره ذبح شي هغه حلاله ده، دا ابراهیمي سنت دی او په دیکښې د ذبح کوونکي مقصد د مېلمه تعظیم دی د غوښې په خوړلو نه دا چې د وینو په تویولو د هغه تعظیم وشي. ﴿۱﴾وهو واضحٌ.

او هغه ګډ یا چېلۍ چې د بل په کور کې حلال شي، یا یې ترحم او مرسته مقصد وي د هغې خوړل حلال دي، دا بیا په مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰـهِ کې نه دي شامل، ﴿۲﴾ ځکه چې زیاتره وخت خلك د بل په کور کې خپل ګډان یوسي او هماغلته یې حلال کړي او په غوښه یې هیڅ کار نه لري، دا غوښه هماغه کور ته وسپاري ، فكيفَ ما يكون مَا أُهِلَّ به لِغَيْرِ اللّه وبالجملة أنَّ الذبحَ ههنـا يوفى الرسمَ ولا يقصد تعظيم أحد بالاراقة ، فافهمْ وهوالموفق

## د اوبو د زیاتېدو لپاره د ولي په قبر باندې ګډ حلالول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زموږ په کلي کې له پخوانیو سپین ږیرو له وخته یو داسې رواج دی چې کله په نهرونو کې قدرتي اوبه کمې شي؛ نو د کلي ملکان خلك د بزګرو او شتمنو خلکو نه پیسې غونډې کړي او په هغې باندې ګډ یا غوا واخلي، بیا یې د کلي په مشهور قبر (ارام بي بي) باندې لومړی شاوخوا تاو راتاو کړي، بیا یې حلال کړي او د خیرات نیت پکښې کوي، د دوی دا عقیده وي چې اوس به په نهر کې اوبه زیاتي شي، ایا شرعاً دا کار صحیح دی او که نه، ددې ذبیحې غوښه خوړل حلال دي او که نه؟ دغه راز په دیکښې برخه

---

﴿۱﴾ فی الهندية: وفی المشكل ذبح عند مرأى الضيف تعظيمًا له لا يحل أكلها و كذا عند قدوم الأمير أو غيره تعظيمًا فأما إذا ذبح عند غيبة الضيف لأجل الضيافة فإنه لا بأس به.

(فتاوی هندية ۵: ۲۸۶، كتاب الذبائح، الباب الأول)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه اللّٰه تعالى: فالذبح عند وضع الجدار أو عروض مرض أو شفاء منه لا شك فی حله لأن القصد منه التصدق حموی.

(ردالمحتار ۵: ۲۱۷، كتاب الذبائح)

اخیستل څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: عمر علي ضلع بنو ..... ۱۴۰۱ هـ / ربیع الأول /۸/

**جواب**: (۱) دا غلط کار او توهم پرستي ده. ﴿۱﴾

(۲) که په قبر باندې د ذبح نه مراد دا وي چې د قبر والا بزرګ خوشحاله شي او د هغه تعظیم مقصد وي، بیا نو دا ذبیحه مرداره ده، اګر که په بسم الله، الله اکبر ویلو سره حلاله شوې وي. وهوالموفق

(۳) او په دې کار کې سره له پوهې برخه اخیستل ځان په لویه ګناه کې شریکول دي، (د ردالمحتار﴿۲﴾ اومسند امام احمد څخه اخیستل شوي﴿۳﴾).

وهو الموفق

---

﴿۱﴾ في المرقاة: عن عبد الله بن مسعود رضی الله تعالی عنه عن رسول الله ﷺ قال الطیرة شرک) ای لاعتقادهم أن الطیرة تجلب لهم نفعًا أو تدفع عنهم ضرًا فإذا عملوا بموجبها فکانهم أشرکوا بالله فی ذلک ویسمّی شرکًا خفیًا وقال الشارح یعنی من اعتقد أن شیئًا سوی الله ینفع او یضر بالاستقلال فقد أشرک ای شرکًا جلیًا.

(مرقاة المفاتیح شرح مشکوٰة المصابیح ۹:۲، باب الفال والطیرة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: ذبح لقدوم الأمیر ونحوه کواحد من العظماء یحرم لأنه اهل به لغیر الله ولو ذکر اسم الله تعالی. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: لوضافه امیر فذبح عند قدومه فإن قصد التعظیم لا تحل وإن أضافه بها وإن قصد الإکرام تحل وإن أطعمه غیرها.

(ردالمحتار ۲۱۷:۵، کتاب الذبائح)

﴿۳﴾ عن علیّ رضی الله تعالی عنه سمعته (ﷺ) یقول: لعن الله من ذبح لغیر الله.

(مسند الإمام أحمد رحمه الله تعالی ۱۰۸:۱ مسند علیّ ابن ابی طالب رضی الله تعالی عنه)

## د سردار په وړاندې او د ښځې د غوښتلو پروخت د ګډې حلالول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي (۱) چې د دوه کسانو د ځمکې لانجه وه، هر یو د خپل کلي ملك ته یوه - یوه ګډه بوتله او هلته یې ورته حلاله کړه، ګډه به بیا ملك په خپل کور کې پخوي بیا به مولوي صاحبانو ته دعوت ورکوي او په هغوی به یې خوري.
(۲) یو سړی د خپل زوی لپاره د چالور غواړي؛ نو د ورتلو سره سم د هغوی په دروازه کې ګډه حلاله کړي، ددې ګډې خوړل څه حکم لري؟
(۳) دغه راز دوه سړي مشر سړي ته ګډه بوځي او هغه یې په کور کې پخوي؛ نو ددې غوښې خوړل څنګه دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي سید الدین ضلع ژوب ..... ۱۹۸۸م / ۶ / ۶/

**جواب:** دا ټولي ذبیحې حلالي دي، په مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ کې نه دي شاملي، ځکه چې ددې د وینې تویلو غرض د غیر الله خوشحالول مقصد نه دي. ﴿۱﴾

وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: فالذبح عند وضع الجدار أو عروض مرض أو شفاء منه لاشک في حلّه لأن القصد منه التصدق حموی.
(ردالمحتار ۵: ۲۱۷، کتاب الذبائح)

وقال العلامة اللکنوی رحمه الله تعالی: مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ نه هغه څاروی مراد دی چې د الله تعالی پرته دبل چا خوشحالي پکښې مقصد وي، دوینې تویولو نه هم د الله تعالی پرته د بل چالویي مقصد وي، که په داسې څاروي بسم الله وویل شي بیا هم حرام دی (مجموعة الفتاوی ۲: ۲۱۱ کتاب الحظر والاباحة)

## د پیر د خوشحالولو لپاره د هغه په نوم نامول شوي ذبيحه

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې کوم سړی د ژوندي يا مړ پير په نوم يو حيوان هبه کړي، بيا دغه حيوان ددې پير ځای ته بوځي او د هغه د خوشحالولو لپاره يې هلته حلال کړي، ددې سړي دا کار څنګه دی او ايا دا ګډه په مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ کې شامله ده او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الله عفى عنه دار العلوم ربانيه كراچى ...... ۱۹۸۴م / ستمبر / ۳۰ /

**جواب:** هغه حيوان چې د غير الله د خوشحالولو په نيت حلال شي، هغه د عالمانو په اتفاق حرام او مردار دی، د هغې پوره تفصيل په معارف القرآن لومړي ټوك د مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ آيت تر تفسير لاندې ليکل شوی دی، په ياد صورت کې ګډه مرداره ده، ﴿۱﴾ پاتې شوه دا خبره چې دا کار څه حکم لري؟ نو په ديکښې د عالمانو دوه قوله دي يو د کفر او بل د عدم کفر، علامه شامي عدم کفر ته ترجيح ورکړې، والتفصيلُ فى الدر المختارِ والشامية ج ۶: ص: ۳۰۱، ۳۱۰ ﴿۲﴾ خو که ددې سړي دا عقيده هم وي چې پيرصاحب زما د ټولو حالاتو څخه خبر دی،

---

﴿۱﴾ قال المفتي محمّد شفيع رحمه الله تعالى: دويم صورت هغه دی چه د الله ﷻ درضا پرته څاروی ذبح شي يعني د وينې تويولو نه مقصد دغير الله خوشحالول وي، خو دحلالولو پرمهال بياد الله ﷻ نوم اخلي لکه څرنګه چې دډېر ناخبره خلك دبزرګانو او پيرانو دخوشحالولپاره وزه ياګومه مرغى حلالري او بيا د ذبح پرمهال د الله ﷻ نوم اخلي، داصورت هم د فقهاؤ په اتفاق سره حرام او حلال شوی څاروی مردار دی. (معارف القرآن: ۱: ۴۲۱ سورة البقرة، آيت: ۱۷۳)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: قلت وفي صيد المنية انه يكره ولا يكفر لأنا لانسيء الظن بالمسلم انه يتقرب إلى الآدمي بهذا النحر. (الدر المختار)

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ...... پاتې حاشيه په بل مخ باندې

زما د کارونو جوړوونکی او خرابوونکی دی؛ نو ددې عقیدې درلودلو له امله بیا کافر دی، کما فی رد المحتارِ ٣: ٢٧ ﴿١﴾ وأیضاً فی الخانیةِ علی هامش الهندیةِ ١: ٣٣٤ ﴿٢﴾ وهکذا فی البزازیةِ ﴿٣﴾ والبحرِ ٢ ﴿٤﴾ (هکذا نقلت من أحسنِ الفتاوی) ﴿٥﴾ فقط واللّٰه تعالیٰ أعلمُ .

هذا الجوابُ صحیحٌ المجیبُ:

محمد فرید عفی عنه احمد ممتاز دار العلوم ربانیه کراچی

---

(بقیه حاشیه)(وقوله هل یکفر) أی فیما بینه وبین اللّٰه تعالیٰ إذ لا یفتیٰ بکفر مسلم أمکن حمل کلامه أوفعله علی محمل حسن أو فی کفره خلاف (قوله أنه یتقرب إلی الآدمی) ای علی وجه العبادة لأنه المکفر وهذا بعید من حال المسلم فالظاهر أنه قصد الدنیا او القبول عنده بإظهار المحبة بذبح فداء عنه لکن لما کان فی ذلک تعظیم له لم تکن التسمیة مجردة للّٰه تعالیٰ حکما. (الدرالمختار مع ردالمحتار ٥: ٢١٨ کتاب الذبائح)

﴿١﴾ وفی ردالمحتار: (قوله قیل یکفر) لأنه اعتقد أن رسول اللّٰه ﷺ عالم الغیب. (ردالمحتار ٢: ٣٠٠، کتاب النکاح قبیل فصل فی المحرمات)

﴿٢﴾ وفی الخانیة: رجل تزوج امرأة بشهادة اللّٰه ورسوله کان باطلاً لقوله ﷺ لا نکاح إلا بشهود وکل نکاح یکون بشهادة اللّٰه وبعضهم جعلوا ذلک کفرًا لأنه یعتقد أن الرسول ﷺ یعلم الغیب وهو کفر. (فتاوی خانیة علی هامش الهندیة ١: ٣٣٤، کتاب النکاح فصل فی شرائط النکاح)

﴿٣﴾ فی البزازیة: تزوجها بشهادة اللّٰه تعالیٰ جل جلاله ورسوله علیه الصلوٰة والسلام لا ینعقد ویخاف علیه الکفر لأنه یوهم أنه علیه الصلوٰة والسّلام یعلم الغیب.
(فتاوی بزازیة علی هامش الهندیة ٤: ١١٩، کتاب النکاح، الفصل السادس فی الشهود)

﴿٤﴾ وفی البحر الرائق: لو تزوّج بشهادة اللّٰه ورسوله لا ینعقد ویکفر لاعتقاد أن النبی یعلم الغیب. (البحر الرائق ٣: ٨٨، کتاب النکاح)

﴿٥﴾ (أحسن الفتاوی ١: ٣٦، کتاب الإیمان والعقائد)

## د سولې لپاره د ګډې حلالول

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ په کلي کې چې کله د دوه ډلو تر منځ خفګان وي او خلک يې بيا روغه کوي؛ د کلي ملکانو په يوه ډله باندې ګډه لازمه کړي او د بلې ډلې کور ته يې ور وړي، څکه چې که د هغه کور ته په زرګونو او لکونو روپۍ ورکول شي، په هغې نه وي خوشحاله، بلکې په دې ګډه باندې خوشحاليږي، اوس ددې ګډې خوړل جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: سيف الرحمن شريک دوره حديث

**جواب**: دا ذبيحه په مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ کې نه ده شامله، په ديکښې د غير الله تقرب مقصد نه وي، يوازې د رواج پابندي وي، بيا په خاصه توګه هغه وخت چې خصم خفه وي او د هغه خوشحالي مقصد وي.《۱》 وهو الموفق

## د مقتول د اولياؤ د خوشحالولو لپاره ذبح کول

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې **الف** او **ب** دوه ډلې دي، **الف** ډلې د **ب** ډلې څخه سړی مړ کړ، **الف** ډلې **ب** ډلې ته درې ګډې وليږلې، د سولې لپاره داسې رواج دی چې لومړی ګډه به د مقتول سړي په قبر ذبحه کوي، دويمه به د مقتول د وارثانو د کور په دروازې ذبحه کوي او دريمه به په چوک کې

---

《۱》 في الكاملية: فالذبح عند وضع الجدار أو عروض مرض أو شفاء منه لا شك في حلّه لأن القصد منه التصدق، حموي.

(فتاوی کاملية ۲۳۹، کتاب الذبائح، مطلب فيما يذبح عند وضع الجدار أو شفاء مريض)

قال العلامة اللكنوي رحمه الله تعالى: مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ نه هغه څاروی مراد دی چې د الله تعالی پرته د بل چا خوشحالي پکښې مقصد وي، دوېمې تويولو نه هم د الله تعالی پرته د بل چالويي مقصد وي، که په داسې څاروي بسم الله وويل شي بيا هم حرام دی. (مجموعة الفتاوی: ۲، ۲۱۱ کتاب الحظر والاباحة)

ذبحه کوي، دا په داسې حال کې چې صبا صادق راختلى وي او کله چې لمر بنه ګرم شي؛ نو خلك ګوري چې ګډې تياري ذبحه شوي پرتې وي، ايا دا ګډې حلالي دي او كه حرامي؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد عمر خان ضلع وتحصيل بنو ..... ۱۴۰۱ هـ / ربيع الأول / ۲۹/

**جواب:** دا ګډې په مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ کې نه دي شاملي، په ديکښې د غير الله تقرب مقصد نه وي، يوازې د رواج پابندي وي، ددې له امله دا ګډې حلالي دي. لعدمِ العلة المحرمةِ «۱» وهو الموفق.

## د دربيم ګړو مظلوم ته د ورکړې غوښې حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ په ځای کې داسې رواج وي چې کله دوه کسان په خپل منځ کې جنګ وکړي؛ نو دربيم ګړي وتاکل شي، بيا هغه د ضارب (وهونکي) څخه يو ګډ او څه روپۍ واخلي مضروب (وهل شوي سړي) ته يې ورکړي؛ نو زموږ لپاره ددې ګډې خوراك څه حکم لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: ملك خوشحال حسن، کوهاټ ..... ۱۳۹۵ هـ / شعبان / ۲۵/

**جواب:** دا په مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ کې نه ده شامله، خوراك يې حلال دی، «۲» لأنه لم

---

«۱» قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: فالذبح عند وضع الجدار أو عروض مرض أو شفاء منه لا شك فى حله لأن القصد منه التصدق حموى. (ردالمحتار ۵:۲۱۷، كتاب الذبائح)

وقال العلامة اللكنوى رحمه الله تعالى: مَاأُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ نه هغه څاروی مراد دی چې د الله تعالى پرته د بل چا خوشحالي پکښې مقصد وي، دوينې تويولو نه هم د الله تعالى پرته د بل چالويي مقصد وي، كه په داسې څاروي بسم الله وويل شي بيا هم حرام دی. (مجموعة الفتاوىٰ: ۲:۲۱۱ كتاب الحظر والاباحة)

«۲» قال العلامة عبد الحى اللكنوى رحمه الله تعالى: مَاأُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ نه هغه څاروی مرادی چې د الله تعالى پرته د بل چا خوشحالي پکې مقصد وي، باقي حاشيه په بل مخ

يتقربُ به الى غير الله تعالى كما لم يتقرب به الى الله فيكونُ مثلُ ذبيحة القصابِ، نعم! قصدوا به اتباعَ الرسمِ وهوليسَ بمحرمٍ فافهمْ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## د مظلوم د خوشحالولو لپاره د ګډي حلالول په مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللهِ کې نه دي شامل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زموږ په کلي کې داسې رواج دی کله چې د دوه سړیو په یو شي باندې جنګ شي، یو پکښې ظالم او بل مظلوم وي؛ نو د کلي سپین ږیري خلک په ظالم باندې ګډه لازمه کړي او د مظلوم کور ته یې ننواتي وروړي، په روغه کې دا ګډه بوتلل یو مهم عنصر دی. په دیکښې نه د چا مېلمستیا مقصد وي او نه هم څوک په غوښو موړول، بلکې یوازې په وینې تویولو سره د مظلوم خوشحالي مطلب وي، د قرآن، حدیث او حنفي فقهي له مخې ددې ګډ حلالول او غوښې خوړل څه حکم لري؟ او ایا دا په مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللهِ کې نه ده شامله؟ بینوا توجروا

المستفتي: صاحبزاده مفتاح الدین، کربوغه شریف، تحصیل هنګو کوهاټ

---

(باقي حاشیه) دویني تویولو نه هم د الله تعالی پرته د بل چالویي مقصد وي، که په داسې څاروي بسم الله وویل شي بیا هم حرام دی. (مجموعة الفتاوی: ۲: ۲۱۱ کتاب الحظر والاباحة)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: فإنه لاريب أن القصاب يذبح للربح ولو علم انه نجس لايذبح فيلزم هذا الجاهل ان لاياكل ما ذبحه القصاب ...... فالذبح عند وضع الجدار او عروض مرض او شفاء منه لا شك فى حله لأن القصد منه التصدق، حموى.

(ردالمحتار ۵: ۲۱۷، كتاب الذبائح)

**جواب:** فقهاء کرامو لیکلي دي: چې د ذبیحې د حلالوالي لپاره یوازې د الله تعالی نوم اخیستل ناکافي دي، څکه چې ددې سره - سره به د ذبح مقصد د وینې په تویولو کې د بل چا تعظیم نه وي. کما یدلُّ علیهِ حرمة الذبحِ لقدومِ السلطانِ وغیره بخلافِ قصدالتعظیمِ باللحمِ فانه غیرمضر کما فی الضیفِ﴿۱﴾

د غور کولو وروسته معلومیږي چې په دیکښې د غیر الله تعظیم مقصد نه وي، بلکې په دیکښې د رواج پابندي وي او د پښېمانی اظهار وي، د حرمت کوم ښکاره څرګندویې نه کوي. ﴿۲﴾

لیعلمَ أنه لا یحصلُ حلُّ الذبیحة بذکر اسم الله علیها فقط بل لا بدَّ من عدمِ قصد تعظیمِ غیر الله تعالی بالذبحِ واراقة الدمِ ولهذا حرموا ما ذبح عندَ قدومِ السلطانِ وغیره ولوْ ذکر اسم الله علیه لأنَّ فیهِ تعظیم السلطانِ بالاراقة بخلافِ الذبحِ لقدومِ الضیفِ لأنه تعظیمٌ باللحمِ وکذا ما یذبحُ القصاب لأنه لمْ یقصد تعظیم غیر الله تعالی بالاراقةِ وبالجملة أنَّ المحرمَ هو قصد التعظیمِ بالاراقةِ ولم یوجد فی الصورةِ المسؤلة لأنَّ مطمعَ نظرهمْ رعایةُ الرسم و اقدامة الندامة وغیره فافهمْ! وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم رحمه الله تعالی: رجل ذبح للضیف شاة فذکر اسم الله علیها فقال یحل أکله ولو ذبح لأجل قدوم الأمیر أو قدوم واحد من العظماء وذکر اسم الله یحرم أکله لأنه ذبحها لأجله تعظیمًا له. (البحر الرائق ۸: ۱۶۸، ۱۶۹، کتاب الذبائح)

﴿۲﴾ قال العلامة الحموی رحمه الله تعالی: وأما الذبح عند وضع الجدار أو عروض مرض أو شفاء من مرض فلا شک فی أن القصد هو التصدق.
(غمزعیون البصائر شرح الأشباه والنظائر ۳: ۲۳۰، کتاب الصید والذبائح)

وقال العلامة اللکنوی رحمه الله تعالی: مَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ نه هغه ځاروی مراد دی چې د الله تعالی پرته دبل چا خوشحالي پکښې مقصد وي، دوینې تویولو نه هم د الله تعالی پرته د بل چالویي مقصد وي، که په دا سې ځاروي بسم الله ووېل شي بیا هم حرام دی (مجموعة الفتاوی ۲: ۲۱۱ کتاب الحظروالاباحة)

**د سولې، قرض او مرګ په وخت د کورنی د خوشحالولو لپاره ذبح کول**

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي (۱) چې د زید او عمر تر منځ شخړه ده، زید د عمر سره سوله نه کوي، که عمر یو ګډ واخلي او د زید کور ته یې ننواتې راوړي بیا یې هلته حلال کړي؛ نو ایا دا مذبوحه به حلاله وي او که مرداره؟

(۲) که د زید او عمر تر منځ سوله ممکن وي او د ربیم ګړي فیصله کوونکي خلك په زید او عمر دواړو باندې یو ګډ وټاکي؛ نو بیا د داسې ګډ حلالول څه حکم لري؟

(۳) دغه راز زید د عمر نه د زرو (۱۰۰۰) روپو غوښتنه کوي او عمر انکار کوي، اوس زید ددې لپاره چې عمر ورته په قرض روپۍ ورکړي؛ نو د هغه د کور مخې ته یې ګډ حلال کړ، ایا د داسې ګډ خوړل روا دي او که ناروا؟

(۴) دغه راز زید وفات شو او د هغه ملګري عمر د هغه د وارثانو خوشحالولو لپاره یو ګډ د هغوی په کور کې حلال کړ؛ نو ددې ذبیحې څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: حمید خان آفریدی، متعلم دارالعلوم حقانیه ..... ۱۳۹۲ هـ/محرم الحرام/۱۵/

**جواب:** په دې حلالولو کې عزت او مېلمستیا مقصد وي او یا هم صدقه مطلب وي، د همدې امله داسې ذبیحې حلالې دي، في الكاملية ۲۳۹ : عنِ الردِّ و على هذا فالذبحُ عندَ وضعِ الجدارِ أوْ عروضِ مرضٍ أوْ شفاءِ منهُ لا شكَّ في حلِّه لأنَّ القصدَ منهُ التصدق، حموى﴿۱﴾ قلتُ: وجهُ الدلالةِ أنَّ الاكرامَ جائزٌ و مشروعٌ و مندوبٌ كالتصدقِ ،وليسَ هذا ممّاأهلَّ به لغيرِ اللّه لأنَّ الذابحَ لايقصد التقرب بالاراقة بلْ يقصد الاكرام باهداء اللحم﴿۲﴾ فافهمْ وهوالموفق .

﴿۱﴾ (فتاوى كاملية ۲۳۹، كتاب الذبائح، مطلب فيما يذبح عند وضع الجدار)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفي: ولو ذبح للضيف لايحرم..... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

## د استسقاء وروسته په هدیره کې حیوان حلالول اوغوښه يې په خلکو تقسیمول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په ځينو ځايونو کې داسې رواج دی چې کله باران ودريږي او وچ کالي پيل شي؛ نو خلك د استسقاء د لمانځه لپاره لرې پرتو دښتو ته لاړ شي او هديرې ته غويان او ګډي بوځي او هلته يې حلالوي بيا يې په خلکو تقسيموي، دا کار په شريعت کې څه حکم لري او ددې غوښې خوړل څنګه دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد ابراهیم تیراوي ، متعلم دار العلوم حقانیه ..... ۱۹۸۹م / ۹/ ۱/

**جواب:** هر کله چې دا ذبیحه ما أهلّ به لغیر الله نه ده؛ نو نه ممنوع ده او نه هم مطلوب، خو دا چې خلك وربانديې ګمراه کيږي او دا يې ذهن ته راځي چې دا د اسلام رکن دی؛ نو مکروه ده. ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## د ولي په نوم نذر شوی حیوان د ذبح وروسته هم حرام دی

**سوال:** وماحكمَ الشريعةُ المحمديةُ فى البقرة المنذورةِ قبلَ الذبحِ بسنة أوْشهرٍ أوْ

(بقیه حاشیه) لأنه سنة الخليل وإكرام الضيف إكرام الله تعالٰى. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالٰى: ومن ظنّ انه لايحل لأنه ذبح لإكرام ابن آدم فيكون اهل به لغير الله فقد خالف القرآن والحديث والعقل فإنه لاريب أن القصاب يذبح للربح ولو علم أنه نجس لا يذبح فيلزم هذا الجاهل أن لا يأكل ما ذبحه القصاب.

(ردالمحتار ۵: ۲۱۷، كتاب الذبائح)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالٰى: سجدة الشكر مستحبة، به يفتٰى لكنها تكره بعد الصلٰوة لأن الجهلة يعتقدونها سنة او واجبة وكل مباح يؤدى إليه فمكروه.

(الدرالمختار ۱: ۵۷۷، قبيل باب صلاة المسافر)

(هكذا فى الفتاوى الهندية ۱: ۱۳۶، قبيل الباب الرابع عشر فى صلاة المريض)

يومٍ أوْ ساعةٍ للولی كما هو الرسمُ فی زماننا و ذكر عليها اسم اللّــه تعــالی وحده فی وقتِ ذبحها أيحل أكلها لفقراء الأنامِ أمْ جعلتْ كــالخنزيرِ بنــذر الناذرِ بلْ هی أشدُّ منهُ جرماً ؟ بينوا توجروا

المستفتي: حكيم عبد الله شاه صاحب، سكنه سيف الله ډاكخانه تنګی، چارسده

**جواب**: هذه البقرةُ حرامٌ كلحمِ الخنزيرِ لأنها مما أهلَّ به لغيرِ اللّه وهوَ حــرامٌ بنصِّ القرآنِ ﴿۱﴾ وهوالموفق .

## د غير الله د تعظيم لپاره د مذبوحه حيوان د غوښي حکم

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي ما چې ستاسو نه کومه استفتاء غوښتې وه هغه مونږ ته راورسېده، ترکوم ځايه چې مونږ علم لرو هغه دا چې ذبح په څلور قسمه ده:

(۱) يو دا چې د ذبح څخه مراد او مقصد غوښه وي، برابره خبره ده چې د مېلمستيا لپاره وي او که د غير مېلمستيا، د بېلګې په توګه لکه قصاب چې يوازې د خرڅولو لپاره حيوان حلال کړي.

(۲) دويم قسم هغه ذبحه ده چې د شکر په ډول وشي، لکه د عقيقې حيوان، دداسې حيواناتو د غوښې په پاکوالي کې هيڅ شك نشته.

(۳) درېيم قسم هغه غوښه ده چې د هغه د وينو په تويولو کې د غير الله تعظيم او عزت مقصد نه وي، په دې درېيم قسم کې نذر لله، صدقه لله، ذبح الأضحى او داسې نورې شاملې دي، دا ټول قسمه حيوانات حلال او پاك دي.

---

﴿۱﴾ قال الله تعالى: حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ. (سورة المائدة، آيت ۳)

وفی الهندية: وفی المشكل ذبح عند مرای الصيف تعظيمًا له لا يحل أكلها وكذا عند قدوم الأمير أو غيره تعظيمًا.

(فتاوى هندية ۵: ۲۸۷، كتاب الذبائح، الباب الأول فی ركنه وشرائطه الخ)

(۴) لیکل شوي دي چې د ما أهلَّ به لغیر الله نه مراد هغه حیوان دی چې د غیر الله د تقرب لپاره ذبح شي او د وینو تویولو مقصد هم د غیر الله خوشحالي وي، داسې حیوان به حرام وي، اګر که د ذبحې پرمهال یې د الله تعالی نوم وربانديې اخیستی وي او په حدیث کې هم د ما أهله به لغیر الله الفاظ په دې اړه راغلي دي، لکه د حضرت علي (رضی الله عنه) څخه په یو روایت کې راځي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي: لعنَ منْ ذبحَ لغیر الله تعالی ، (مسلم ۲ توك ۱۶۰مخ، نسائی ۲ توك ۱۸۶ مخ او مستدرك للحاکم ۴ توك ۱۵۰ مخ )

شرعا هم داسې سوله کول ښه نه دي چې حرام حلالو ته مائل شي او حرام حلالو ته مائل شي. لکه د تفسیر الاتقان د عبارت څخه چې معلومیږي: (والصلحُ خیرٌ ) لاندې لیکي: (بلْ لا یجوزُ القولُ لعمومِ الآیة ، و انَّ کلَّ صلحٍ خیرٌ لأنَّ ما أهلَّ حراما أوْ حرَّمَ حلالاً فهو ممنوعٌ ، اتقان ج: ۱: ص: ۱۹۳) زموږ د علم سره سم دا ذبح ناروا ده. که ستاسو په نزد مشتبه شی وي؛ نو بیا هم د اصولو قاعده ده کله چې یو شی د حل او حرمت ترمنځ دایر شي؛ نو ترجیح به یې حرمت ته ورکول کیږي. څکه خو په حدیث کې هم داسې راغلي دي: دعْ ما یریبك الی ما لا یریبك ، محترمه تاسو دا اوسني رسمونه هم د جواز لپاره علت وګرځولو. د جاهلي رسمونو سره د دین څه تعلق دی؟ په دې اړه به زه یو اشتهار هم چاپوم، که ستاسو سره قطعي او یقیني دلایل وي هغه راته ولیکه؛

زه خو وایم چې دا څلورم نمبر ذبحه چې د غیر الله تقرب او تعظیم پکښې وي حرام ناجائز بلکې شرك دی چې له امله یې د غوښې خوړل هم حرام دي. دا څلور واړه هغه اقسام دي چې په قرآن کې یې د حلت او حرمت په اړه دلایل شته، تاسو دا څلورم قسم د پښېماني اظهار علت وګرځولو او د جواز فتوی مو ورکړه، موږ د همدې هیواد اوسېدونکي یو. موږ ته هم د هر څه په اړه ښه علم شته. په دیکښې هم یو کس په خپله کړې ګناه پښېمانه او د مقابل لوري تعظیم او د ځان تذلیل (سپکاوي) لپاره هغه ته حیوان وړل کیږي او د هغې غوښه خوړل کیږي، د بېلګې په توګه که هغه ته دسلو روپو غوښه د قصاب نه

واخيستل شي او وركول شي؛ نو دا هغه خپله بې عزتي ګڼي او هغه وربانديږ خوښ نه وي؛ خو که هغه ته د دېرشو روپو (۳۰) ګېډه د هغه په کور کې ذبحه شي؛ نو بيا وربانديږ خوښ وي، ځکه چې هغه په خپل کور کې د ګېډې په حلالولو وياړي او خپل تعظيم يې ګڼي، د (فصلّ لربك) څخه هم دغه مطلب دی چې د وينې تويول عبادت دی، دغه تعظيم په ياده مسئله کې هم دی، ځکه چې فقهاؤ صراحتاً دا عبارت ليکلی او ويلي يې دي: چې د ذبح کوونکي د نيت اول وخت ته اعتبار دی، په اول وخت کې د ذبح کوونکي د خپل ځان تذليل او د ورکوونکي تعظيم مقصد وي، مفسرينو هم د ما أهلّ به لغير الله څخه تعظيم مراد اخيستی دی، دا خبره مولانا عبد الحی رحمه الله په خپله فتاوی ۲ ټوک ۴۰ مخ کې ليکلې ده. بينوا توجروا

المستفتي: صاحبزاده مفتاح الدين، کربوغه شريف ... ۱۹۷۳م / جولائی / ۲۱/

**جواب**: ستاسو درانه حضور ته السلام عليکم: وروسته له سلامه واضحه دي وي چې که ته خالی الذهن يې؛ نو تا ته به معلومه شي چې د حکم دارو مدار په اهلال لغير الله باندې دی، که په اراقة الدم (د وينې تويولو) کې د غير الله تقرب مقصد وي؛ نو حرامه به وي که نه نو حلال به وي، فالمحرمُ المصرحُ فی القرآن﴿۱﴾ والحديث﴿۲﴾والفقه﴿۳﴾ هو الاهلالُ لغير الله لا عدم الاهلالِ بالله كماأنّ المحرمَ هوالتعمدُ بترك اسم الله تعالى لاعدم التعمد باسم الله و المتحققُ فی الذبيحة

---

﴿۱﴾ قال الله تعالى: إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنزِيرِ وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ.

(سورة البقرة آيت:۱۷۳)

﴿۲﴾ فی الصحيح للإمام المسلم: قال رسول الله ﷺ: لعن الله من ذبح لغير الله.

(الصحيح للإمام المسلم ۲:۱۶۰، باب تحريم الذبح لغير الله تعالى)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصكفی رحمه الله تعالى: ذبح لقدوم الأمير ونحوه كواحد من العظماء يحرم لأنه أهل به لغير الله ولو ذكر اسم الله تعالى ولو ذبح للضيف لا يحرم.

(درمختار ۵:۲۱۷، كتاب الذبائح)

المرسومة هو الثانی دونَ الأولِ والأصلُ هو الاباحةُ والحلُّ فافهمْ و لا تكن من المتشددينَ فقط وهوالموفق .

## ماشيني ذبيحه او د بيروني هېوادونو د غوښي خوړولو حكم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د ماشيني ذبيحې خوړل روا دي او که ناروا؟ په دغسې آلاتو باندې ذبحه كول جائز دي او كه ناجائز؟ په اسلامي هېوادونو كې هم داسې ذبحې ډېرې كېږي، لكه دبئ، ابو ظبی او د نورو غير اسلامي هېوادونو څخه هم دلته داسې غوښې راځي، د شرعي دلايلو په رڼا كې موږ ته د مسئلې حل راولېږئ! دا به ستاسو ډېره مهرباني وي. بينوا توجروا

المستفتي: محمد منصور بنو منډی بنو

**جواب:** حقيقت دا دی چې كومه ذبحه د لبه او حلق ترمنځ وي، هغې ته ذبح اختياري ويل كېږي، كما فی الدر المختار: و ذكوة الاختيار ذبح بين الحلقِ واللبة ﴿۱﴾هكذا فی سائرِ الفتاوی ﴿۲﴾ برابره خبره ده چې اله مخصوصه وي، د ذبح كوونكي په اختيار كې وي او كه نه وي. كما فی صورة رفعِ المانع يدلُ عليه ما فی الهندية ۵: ۳۲۲ : وانْ كانت (الحمامة ) تهتدى الى المنزل فانْ أصاب السهم المذبحَ حلَ وانْ أصابَ موضعاً آخرَ اختلفوا فيه والصحيحُ أنّه لا يحل أكلها روى ذلك عنْ محمدٍ رحمه الله تعالى لأنه اذا كانت تهتدى الى منزله يقدرعلى الذكوة الاختيارية، انتهى ﴿۳﴾ وجهُ الدلالة أنه جعلَ هذا الذبحَ اختيارياً و انْ

﴿۱﴾ (الدرالمختار ۵: ۲۰۶ كتاب الذبائح)

﴿۲﴾ فی السراجية: موضع الذكاة الاختيارية مابين اللبة واللحيين.

(فتاوی سراجية ۳۷۹ كتاب الصيد والذبائح ، باب الذكاة الاختيارية)

﴿۳﴾ (فتاوی هندية۵: ۲۹۱ كتاب الذبائح، الباب الثالث فی المتفرقات)

كان أى السهمِ من قبيلِ رفعِ المانعِ معَ كونِ السهمِ بعدَ الرمى قاطعاً بلا اختيار الذابحِ فافهمْ ، ددې وجې ماشيني ذبحه مرداره نه ده خو د بې ځايه تكليف وركولو له امله مكروه ده، ﴿۱﴾ داچې عالمان په دې اړه خپل منځ کې سره اختلاف لري او بې دينه حکومتونه ترې خپلې غلطې ګټې اخلي؛ نو موږ هم په دې وجه د حلت فتوى نه ورکوو، ﴿۲﴾ پاتې شو غير اسلامي هېوادونه نو د هغو غوښو خوړل حرام دي، ځکه چې د ذبح او د بسم الله ويلو حال نه دی معلوم ﴿۳﴾ وهو الموفق .

## د ذبح وروسته د غلا حيوان حلال دی

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې غل حيوان ذبح کړي او د ذبح وروسته بېرته مالك ته په لاس ورشي؛ نو ايا د داسې حيوان غوښه خوړل روا دي او که ناروا؟ بينوا توجروا

المستفتي: ګل زمان قيوم آباد، کورنګی نمبر ۴ کراچی

**جواب:** كه سارق مسروقه حيوان په شرعي طريقې سره ذبحه کړي بيا يې خوړل روا دي، كمافى شرح

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالىٰ: وكره كل تعذيب بلا فائدة مثل قطع الرأس والسلخ قبل أن تبرد أى تسكن عن الاضطراب.

(الدرالمختار ۵:۲۰۸ كتاب الذبائح)

﴿۲﴾ قال العلامة المفتى رشيد أحمد رحمه الله تعالىٰ: دحضرت مولانامفتي محمد شفيع رحمه الله جواب صحيح دی چې په ماشين باندې ذبح کول ناروا ده خو بيحه پاك ده.

(أحسن الفتاوى ۷: ۴۷۳ كتاب الصيد والذبائح، أحسن القضاء فى الذبح بإعانة الكهرباء)

﴿۳﴾ قال العلامة الدكتور وهبة الزحيلى رحمه الله تعالىٰ: تحرم اللحوم المستوردة من البلاد الوثنية كاليابان أوالشيوعية كروسيا والصين أوالتى لاتدين بدين سماوى كالهند.

(الفقه الإسلامى وأدلته ۳: ۲۷۶۰، الباب التاسع الذبائح والصيد، المبحث الأول)

التنوير: سرقَ شاةً فذبحها بتسمية فوجدَ صاحبها هلْ توكلُ ؟ قالَ لا ، قـالَ العلامة الشامي : وفيهِ نظرٌ لأنّ المعتمد خلافه﴿١﴾وهوالموفق.

## مسروق حیوان د الله په نامه ذبحه کولو سره سارق نه کافر کیږي

**سوال:** د دين عالمانو او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د مسروق حيوان د ذبح كولو پرمهال كه سارق بسم الله الله اكبر ووايي، ايا د شريعت له مخې دا سارق كافر كيږي او كه نه؟ په ده باندې ښځه طلاقه ده او كه نه يوازې گناهگار شو؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الرزاق ملا كنډ ايجنسي ..... ١٣٨٩ هـ / جمادى الأولى / ٢/

**جواب:** دا ذبح او تكبير د ذبح لپاره ده، ددې لپاره نه وي چې (نعوذ بالله) حرام ورته حلال شي، ددې له امله ذابح او نكاح ته يې هيڅ خطر نشته، يدلُ عليهِ جزئيات ذبح المسروقة والمغصوبة﴿٢﴾وفيهِ جزئيةٌ صريحةٌ﴿٣﴾لمْ يحضرنْ محلها الآنَ . فقط وهوالموفق .

---

﴿١﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار٥: ٣٣٩ كتاب الصيد، قبيل كتاب الرهن)

وقال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالى: اجاز جمهور الفقهاء غير الظاهرية ذبيحتهما (الغاصب والسارق) وذبيحة المستكره لأن لهما قصدًا صحيحًا ولأنه ليس وجود الملك شرطًا من شروط الذكية.

(الفقه الإسلامي وأدلته ٣: ٢٧٦٣، الباب التاسع الذبائح والصيد، المبحث الأول)

﴿٢﴾ في الهندية: في المنتقى لو غصب اضحية غيره وذبحها عن نفسه وضمن القيمة لصاحبها أجزاه ماصنع لأنه ملكها بسابق الغصب كذا في الخلاصة.

(فتاوى هندية ٥: ٣٠٢ كتاب الأضحية، الباب السابع)

﴿٣﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: سرق شاة فذبحها بتسمية فوجد صاحبها هل تؤكل؟ الأصح لا، لكفره بتسميته على الحرام..... پاتې حاشيه په بل مخ باندې

## د ماشیني ذبیحې حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې ماشیني ذبیحه څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: حافظ ابراهیم کیمل پور ..... ۱۹۷۶م/۳/۲۴/

**جواب:** احتیاط دا دی چې ماشیني ذبیحه ونه خوړل شي، ځکه چې ددې د حل او حرمت په اړه د عالمانو اختلاف دی، ﴿۱﴾ دویمه دا چې ددې حلالونکي غالبه دا ده چې متروك التسمیه عامداً دي ﴿۲﴾ او پاتي شوه دا چې د بهرنیو هېوادونو نه چې کومې غوښې رواړل کیږي د هغې نه خو دې خامخا خلك ځانونه ساتي، ﴿۳﴾ ځکه چې

(بقیه حاشیه) القطعی بلا تملك ولا إذن شرعی. (الدر المختار)

قال العلامة الطحطاوی رحمه الله تعالیٰ: (قوله لکفره الخ) المعتمد أنه لایکفر بذلك إلا إذا استحل ولایلزم من تسمیته علی الحرام اعتقاد الحل ویؤیده قولهم تصح التضحیة بشاة الغصب. (الطحطاوی علی الدر المختار ۴: ۲۳۳ کتاب الصید، قبیل کتاب الرهن)

(ومثله فی رد المحتار ۵: ۲۳۹ کتاب الصید)

﴿۱﴾قال العلامة المفتی رشید أحمد رحمه الله تعالیٰ: الجواب باسم ملهم الصواب:

مفتي محمد شفیع رحمه الله جواب صحیح دی چې په ماشین باندې ذبح کول ناروا ده خو بیحه پاك ده.

(أحسن الفتاوی ۷: ۴۷۹، کتاب الصید والذبائح، أحسن القضاء فی الذبح بإعانة الکهرباء)

﴿۲﴾ فی الفتاوی السراجیة: متروك التسمیة عامدًا حرام خلافًا للشافعی رحمه الله تعالیٰ. (الفتاوی السراجیة ۳۸۲ کتاب الصید والذبائح، باب التسمیة علی الذبیحة)

﴿۳﴾ قال العلامة الدکتور وهبة الزحیلی رحمه الله تعالیٰ: فالذابح الذی لاتؤکل ذبیحته وتحرم بالاتفاق هو الکافر من غیر أهل الکتاب کالمشرك...... وبناء علیه تحرم اللحوم المستوردة من البلاد الوثنیة کالیابان أو الشیوعیة کروسیا والصین أوالتی لاتدین بدین سماوی کالهند. (الفقه الإسلامی وأدلته ۳: ۲۷۰۰، الباب التاسع الذبائح والصید، المبحث الأول)

ظاهره دا ده چې ددې ذابح غير مسلم او تارك التسميه عامداً دى ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## د ماشيني ذبيحې جواز او د هغې طريقه کار

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په امريکا کې د مرغانو فارمونه وي، هلته د ذبحې داسې کار روان وي چې په سوونو او زرګونو مارغان په يوه لين راروان وي او تېرې چړې او چاقوګان ورته زوړند وي، يو مسلمان يې خواته ولاړ وي او تکبيرونه وايي؛ خو دا مسلمان نه شي کولای چې د هرې مرغۍ د سر قلمولو پر وخت تکبير ووايي؛ نو ددې ذبحې د حلت او حرمت په اړه شرعي حکم څه دى؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الرحمن فاضل دار العلوم حقانيه حضرو کيمل پور .....

۱۹۸۷م / ۱۱ / ۱۵/

**جواب:** که دغه ماشين ته مسلمان سړى زور ورکوي او دخپل وس سره سم تکبير (بسم الله اکبر) وايي؛نو سره له دې چې مکروه دي؛خوخوړل يې حلال دي، لأنّ الذبحَ الاختيارى ما كانَ فى المذبح لا ما يكونُ آلته فى اختيار الذابحِ كما يدلُّ عليه جزئيات الهندية۵: ۳۱۶،۳۲۲ ﴿۲﴾، ﴿۳﴾ ولجواز ذبح الحيوانات المتعددة بالتسمية الواحدة عند اتحاد

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وتارك التسمية عمدًا) اى ولا تحل ذبيحة من تعمد ترك التسمية مسلمًا كان او كتابيًا لنص القرآن ولانعقاد الإجماع ممن قبل الشافعي على ذلك. (ردالمحتار ۵: ۲۱۱ كتاب الذبائح)

﴿۲﴾ فى الهندية: والذبح هو فرى الأوداج ومحله مابين اللبة واللحيين.

(فتاوى هندية ۵: ۲۸۵ كتاب الذبائح، الباب الأول فى ركنه وشرائطه الخ)

﴿۳﴾ فى الهندية: والحمامة إذا طارت من صاحبها فرماها صاحبها أوغيره قالوا إن كانت لاتهتدى إلى المنزل حل أكلها سواء أصاب السهم المذبح. پاتې حاشيه په بل مخ باندې

الفعلِ كما فى الهندية ۵: ۳۲۰﴿۱﴾ وهوالموفق.

## ماشيني ذبحه د بې ضرورته عذاب وركولو له امله مكروه ده

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په ځينو ځايونو كې ماشيني ذبح كيږي، ايا داسې ذبح جائز ده او كه ناجائز؟ كه ناجائزه وي او د غوښې خوراك يې حرام وي؛ نو تاسو مهرباني وكړئ په حوالو سره مسئله نوره هم شايسته كړئ او د دواړو جهانونو ثواب حاصل كړئ! بينوا توجروا

المستفتي: مولوي ضياء الرحمن مدرس دار العلوم منهاج العلوم نرياب ضلع كوهاټ ..... ۱۴۰۲ هـ / ربيع الأول /۲۹/

**جواب:** واضحه دې چې كه د ماشين په ذبح بسم الله وويل شي؛ نو پاك او حلال دى، لوجود الذبحِ الاختيارى فيه وهو قطع الأوداجِ كما فى ذبائحِ شرحِ التنويرِ: ذكوة الاختيارِ ذبح بينَ الحلقِ واللبة ، انتهى﴿۲﴾ قلتُ ولا يلزمُ فيهِ كونُ الآلةِ فى اختيار الذابحِ كما يشيرُ اليهِ ما فى الهندية ۵: ۳۲۲ : الحمامةُ اذا طارتْ من صاحبهافرماها صاحبها أوْغيره قالوا انْ كانتْ لاتهتدى الى المنزل حلّ أكلها سواءٌ

---

(بقيه حاشيه) أو موضعًا آخر لأنه عجز عن الزكاة الاختيارية وإن كانت تهتدى إلى المنزل فإن أصاب السهم المذبح حلّ، وإن أصاب موضعًا آخر اختلفوا فيه والصحيح أنه لا يحل.

(فتاوى هندية ۵: ۲۹۱ كتاب الذبائح، الباب الثالث فى المتفرقات)

﴿۱﴾ فى الهندية: ولو أضجع إحدى الشاتين على الاخرى تكفى تسمية واحدة إذا ذبحهما بإمرار واحد ولو جمع العصافير فى يده فذبح وسمّى وذبح آخر على أثره ولم يسمّ لم يحل الثانى ولو أمر السكين على الكل جاز بتسمية واحدة كذا فى خزانة المفتين.

(فتاوى هندية ۵: ۲۸۹ كتاب الذبائح، الباب الأول)

﴿۲﴾ (الدرالمختار ۵: ۲۰۶ كتاب الذبائح)

أصابَ السهمُ المذبحَ أوْ موضعاً آخرَ لأنّه عجزَ عنِ الزكاة الاختياريــة وانْ كانتْ تهتدى الى المنزلِ فانْ أصابَ السهمُ المذبحَ حلّ وانْ أصــابَ موضــعاً آخرَ اختلفوا فيهِ والصحيحُ أنه لا يحلُّ «۱» فافهمْ.

دغه راز واضحه دي وي چې ساه پکښې وي؛ نو د وينې توييدل ضروري نه دي، لکه ځرنګه چې په فتاوی کې ليکل شوي دي؛ خو دا چې بې ضرورته يو حيوان ته عذاب ورکول کيږي؛ نو خوړل يې مکروه دي، په ديکښې د ډيرې بې احتياطی لـه کبلـه عالمانو د عدم جواز فتوی ورکړې ده چې دا يو زبردست پرمختنګ ګنم. والله أعلمُ.

## د ماشيني ذبحي تفصيلي مسئله

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې ماشيني ذبحه حلاله ده او که مرداره؟ تفصيلي وضاحت وکړئ! بينوا توجروا

المستفتي: حافظ القاری سعيد الرحمن ..... ۱۹۸۹م / ۶ / ۲۷/

**جواب:** بسم الله الرحمن الرحيم، نحمده ونصلی علی رسوله الكريم

---

«۱» (فتاوی هندية ۵: ۲۹۱ كتاب الذبائح، الباب الثالث فی المتفرقات)

«۲» قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: تحل ذبيحة علمت حياتها وان لم تتحرك ولم تخرج منها دم.

(ردالمحتار ۵: ۳۳۶ كتاب الصيد)

«۳» فی السراجية: شاة ذبحت وعُلم حياتها وقت الذبح ولم يخرج منها دم حلت...... ويكره أن ينخع الشاة وهو ان يكسر عنقها قبل ان تموت وقيل هو ان يبالغ فی الذبح حتی يبلغ النخاع وهو عرق فی الصلب إلى أصل العنق.

(فتاوی سراجية ۳۸۰ كتاب الصيد والذبائح، باب الزكاة الاختيارية)

أما بعدًا! د فقهي جزئياتو څخه څرګند يږي چې ماشيني ذبح حلاله ده. ځکه چې ذبح كوونكى يې مسلمان او د ذبحي پروخت تكبير ويل كيږي او دا كومه ضروري نه ده چې خامخا د ذبحي د شروع كېدو پرمهال دي وويل شي،بوازې بسم الله الله اكبرويل هم كافي كيږي، كمافى الهندية٥: ٣٢٠﴿١﴾ د عادت څخه هم معلوميږي چې عوام د ذبح پروخت بسم الله، اللــه اكـبر وايي، نه خاص د ذبحي د شروع كېدو پرمهال. والمانعُ هوَ الثانى دونَ الأولِ كما فى الصفحة المذكورةِ ســابقاً﴿٢﴾ دغه راز دا ماشيني چاړه پې درپې چليږي دريږي هم نه. والمانعُ هوَ الثانى دونَ الأولِ كما فى الهندية ٥: ٣٢٠ ولو اضجعَ احدى الشاتينِ على الأخرى تكفى تسمية واحــدة اذا ذبحهمــا بامرارٍ واحدٍ (أى بلا وقفة) ولوْ جمعَ العصافيرَ فى يده فذبحَ وسمــى و ذبــحَ آخرَ على أثره ولمْ يسم لمْ يحل الثانى ولوْ أمرَ السكين على الكلّ جازَ بتسميةٍ واحدة كذا فى خزانة المفتيينَ ﴿٣﴾وهوالموفق .

**يادونه**: د ذبح په وخت د حد نه زيات تجاوز كول د تكليف له امله مكروه عمل دى ﴿۴﴾ والله أعلمُ .

---

﴿١،٢﴾ فى الهـنـدية: أما شـرائـط الـذكـاة فأنواع منها أن يكون مسلمًا أوكتابيًا...... ومنها التسـمية حالة الذكاة عندنا...... ومنها أن يريد بها التسمية على الذبيحة فإن أراد بها التسمية لافتتـاح العـمـل لا يحـل...... وأما وقت التسمية فوقتها على الذكاة الاختيارية وقت الذبح لايجوز تقديمها عليه إلّا بزمان قليل لايمكن التحرز عنه.

(فتاوى هندية ٥: ٢٨٦ كتاب الذبائح، الباب الأول)

﴿٣﴾(فتاوى هندية٥: ٢٨٩، كتاب الذبائح،الباب الأوّل)

﴿۴﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: وكره كل تعذيب بلافائدة مثل قطع الرأس والسلخ قبل أن تبرد.

(الدرالمختار ٥: ٢٠٨ كتاب الذبائح)

## د ذبح پروخت نه بلکې په ماشین باندې د بسم الله لیکل ناکافي دي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اړه څه وایي چې د بهر هېوادونو څخه په بندو ډبو کې ماشیني غوښې راځي، په دیکښې غیر مسلم هېوادونه هم شامل دي، یوازې په ماشینونو بې بسم الله اکبر لیکلي وي، ایا دا لیکل د حلالوالي لپاره کافي دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الله ابو ظبی ..... ۱۹۷۶ م / ۳ / ۱۹/

**جواب:** واضحه دي وي د مسلمانو هېوادو نه چې کومه غوښه راځي د هغې خوړل روا دي﴿۱﴾ او کومه چې د کافرو هېوادونو نه دلته راځي د هغې د خوړلو نه دي ځان وساتل شي، ځکه چې په ظاهره کې دوی متروك التسمیه دي، یوازې لیکل یې ناکافي دي،﴿۲﴾ دغه راز په ماشین سره ذبح شوی حیوان هم

---

﴿۱﴾ في إعلاء السنن: عن عائشة أنهم قالوا يا رسول الله ﷺ إن قومًا حديثو عهد لجاهلية يأتون بلحمان لاندرى أذكروا اسم الله عليه أم لم يذكروا أنأكل منها؟ فقال رسول الله ﷺ: سمّوا الله وكلوا.

أقول: في الحديث دليل على انه إن كان الآتي بمثل هذا اللحم هو المسلم يجوز أكله لحسن الظن بالمسلم وحمل فعله على الوجه الصحيح.

(إعلاء السنن ١٧: ٧٧ كتاب الذبائح، باب اللحم لايدرى أذكر اسم الله عليه أم لا)

﴿۲﴾ في ردالمحتار: فالأولى أن يقال إن كان الموضع ممّا يسكنه أو يسلك فيه مجوسی لا يؤكل وإلّا أكل. (ردالمحتار ٥: ٣٣٩ كتاب الصيد)

وقال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالى: تحرم اللحوم المستوردة من البلاد الوثنية كاليابان أو الشيوعية كروسيا والصين أو التي لا تدين بدين سماوى كالهند...... جمهور الفقهاء غير الشافعية تشترط التسمية عند التذكية وعند الإرسال في العقر فلا تحل الذبيحة سواء كانت أضحية أم غيرها في حال ترك التسمية عمدًا وكانت ميتة.

(الفقه الإسلامي وأدلته ٣: ٢٧٦٠، الباب التاسع الذبائح والصيد، المبحث الأول)

مختلف فیه ده.﴿۱﴾ وهو الموفق .

## د موږ په ذبح سره د بچي د حلت او حرمت مسئله

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د یو ذبح شوي حیوان په خېټه (نس) کې بچی وي؛ نو ددې د ذبحې طریقه څه ده؟ دغه راز د داسې ذبح شوي حیوان غوښه خوړل روا دي او که ناروا؟

---

﴿۱﴾قال العلامة المفتي رشید أحمد رحمه الله تعالی: دمفتي شفیع صاحب جواب:

لاندې شرطونو سره به غوښه پاکه وي، که په دغو کې یو شرط هم ونه موندل شو بیا ناپاکه ده

(۱) په ماشین ذبح کونکی به مسلمان، یهودي یا نصراني وي.

(۲) د چارې د چلولو پر مهال به یې یو ازې د الله نوم (بسم الله الله اکبر) اخیستلی وي.

(۳) په څومره څارویو چې په یو ځل چاړه تېره شوې وي، هر څاروی به ځان ته وي، هغه څاروی چې مردار شوی وي هغه سره یې غوښه شریکه شوې نه وي، خودا چې ټول مسلمانان ددې شرطونو نه په اسانه نشي خبرېدلای، نو ځکه ددې څارویو دغوښونه ځان ساتل غوره دي. والله سبحانه وتعالی اعلم

بنده محمد شفیع عفی الله عنه دار العلوم کراچی

دمفتي محمد قاسم العلوم ملتان والا جواب:

زه پوهېږم چې توکمه (بټن) وهونکی به مسلمان وي او د توکمې پر مهال به (بسم الله الله اکبر) هم وایي، خو بیا هم دغه رواجي ذبیحه پاکه نه ده بلکې مرداره ده.

الجواب باسم ملهم الصواب: دحضرت مولانا مفتي محمد شفیع رحمه الله جواب صحیح دی چې په ماشین باندې ذبح صحیح نه ده خو ذبیحه یې حلاله ده. فقد والله تعالی اعلم

رشید احمد

(احسن الفتاوی ۷: ۴۶۹، ۴۷۳ کتاب الصید والذبائح، احسن القضاء فی الذبح بإعانة الکهرباء)

مهرباني وکړئ په تفصیلي فتوی مو ونازوئ! بینوا توجروا

المستفتي: ضیاء الحق ۱۵ FPU ..... ۱۴۰۳ هـ / شعبان / ۱۸/

**جواب:** دې حدیث ته ذکوة الجنینِ ذکوة امه ( رواهُ الترمذی ) ﴿۱﴾ په کتو سره که د مزر د حلالولو وروسته یې بچی ژوندی راووت؛ نو هغه به هم ذبح کیږي، که بچی یې ژوندی نه ؤ بیا به مردار وي. ولیس المرادُ منَ الحدیثِ التداخلُ والا یقال ذکوة الأمِّ ذکوة الجنینِ ﴿۲﴾ کما فی قراءة الامامِ قراءة المقتدی و کما فی سترة الامام سترة القومِ . وهوالموفق .

## د مسلمانانو اړاره په غیر اسلامي هیوادونو کې د غوښې خوړلو مسئله

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زید داسې هیواد ته تللی چې هلته مسلمانان نشته، د اسلام هیڅ نښه نه موندل کیږي، ایا زید ددې هیواد مذبوح حیوان خوړلای شي؟ په داسې حال کې چې هلته د غوښې نه پرته بل هیڅ خوراك هم نه وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۹۷۵ م / اپریل / ۲۶/

---

﴿۱﴾ (سنن الترمذی ۱: ۱۷۸، ابواب الصید عن رسول الله ﷺ)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالیٰ: وقالا إن تم خلقه أکل لقوله علیه الصلوٰة والسلام ذکاة الجنین ذکاة امه، وحمله الإمام علی التشبیه ای کذکاة امه، بدلیل انه روی بالنصب. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: أن الجنین وهو الولد فی البطن إن ذکی علی حدة حل وإلا لا، ولا یتبع امه فی تذکیتها لو خرج میتاً...... (قوله بدلیل انه روی بالنصب) وعلیه فلا إشکال انه تشبیه، وان کان مرفوعاً فکذلک لانه أقوی فی التشبیه من الأول کما عرف فی علم البیان، قیل ومما یدل علی ذلک تقدیم ذکاة الجنین.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۵: ۲۱۳، کتاب الذبائح)

**جواب:** دا سړى مضطر (مجبور محض) نه دى، دده لپاره ددې غوښې خوړل حرام دي،《۱》مرغى، دوډى، دال، سبزى موندونكى به څنګه مضطروي؟《۲》وهوالموفق.

## د چين نه راوړل شوي غوښې حكم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د چين نه د مهاجرو لپاره غوښه راوړل كيږي، ايا ددې خوړل حرام دي او كه حلال؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي عطاء الله مهاجر افغانستان ..... ۱۴۰۲ هـ / صفر المظفر / ۲۸/

**جواب:** كه د سفير په ذريعه دا خبر معلوم چې دا پاكه غوښه ده او مسلمانانو حلاله كړې ده، بيا يې خوړل روا دي او په نورو صورتونو كې يې خوړل ناروا دي 《۳》وهوالموفق.

---

《۱》قال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالى: ولا تحل اللحوم المستوردة من البلاد الوثنية أواللادينية كاليابان والهند والدول الشيوعية...... وأما الطالب الذى يدرس فى البلاد الشيوعية فيجب عليه الامتناع من تناول الطعام المشتمل على اللحوم ويكتفى بأكل أغذية النباتات والخضار...... ولا يحل بحال أكل تلك اللحوم الممنوعة وبخاصة الخنزير فى أى بلد حتى مع ادعاء وجود الضرورة، لأن معنى الضرورة لايتوفر حينئذ، إذ يمكن الحفاظ على النفس من الهلاك بتناول أطعمة غيرممنوعة شرعًا.

(الفقه الإسلامى وأدلته٣: ٢٨٠١ قبيل الفصل الثانى الصيد)

《۲》وفى تفسير القرطبى: فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ :قال قتادة والحسن والربيع وابن زيد وعكرمة غيرباغ فى أكله فوق حاجته ولاعاد بأن يجد عن هذه المحرمات مندوحة ويأكلها...... فأباح الله فى حالة الاضطرار أكل جميع المحرمات لعجزه عن جميع المباحات كمابيّنّا، فصار عدم المباح شرطًا فى استباحة المحرم.

(الجامع لأحكام القرآن٢: ٢٢٨ سورة البقرة، آيت ١٧٣)

《۳》قال العلامة الحموى :اعلم أن الشك على ثلاثة أضرب پاتې حاشيه په بل مخ

**د بهرنيو هېوادونو څخه په بندو ډبيانو کې د چرګانو او ګډو د غوښو حکم**

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې دلته ذبحه شوي مارغان خرڅيږي، په خوند او رنګ کې يې هيڅ فرق نه وي، دغه راز د ګډو او وزو غوښې د ململو او بخملو په ټوټو کې بندې رواړل کيږي، په پلاستکو او واورو باندې پوښل شوي وي، ايا ددې خوړل حلال دي او که حرام؟ بينوا توجروا

المستفتي: فضل اكبر متعلم دار العلوم حقانيه پبو نوبنار ..... ١٤٠١ هـ/ ٧/ ٩/

**جواب:** د سفارت خانو څخه د معلومات کولو وروسته چې دا پاکه غوښه ده او مسلمانانو حلاله کړې ده؛ نو بيا يې خوړل روا دي او که نه وي؛ نو په نورو صورتونو کې يې خوړل ناروا دي ﴿١﴾ وهو الموفق .

(بقيه حاشيه) شک طرأ على أصل حرام...... مثل أن يجد شاة مذبوحة فى بلد فيها مسلمون ومجوس فلاتحل حتى يعلم أنها ذكاة مسلم لأنها أصلها حرام وشككناه فى الذكاة الذبيحة. (شرح الأشباه والنظائر للحموى ١: ١٩٣، القاعدة الثالثة، اليقين لايزول بالشک)

وقال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالىٰ: ويقبل قول كافر ولو مجوسيًا اشتريت اللحم من كتابى فيحل أو قال اشتريته من مجوسى فيحرم ولايرده بقول الواحد، وأصله أن خبرالكافر مقبول بالإجماع فى المعاملات .(درمختار)

وقال العلامةابن عابدين: (قوله اشتريته من مجوسى فيحرم) ظاهره أن الحرمة تثبت بمجرد ذلک وإن لم يقل ذبيحة مجوسى، وعبارة الجامع الصغير وإن كان غير ذلک لم يسعه أن يأكل منه، قال فى الهداية: معناه إذاقال كان ذبيحة غير الكتابى والمسلم اه، تأمل، وفى التاترخانية قبيل الأضحية عن جامع الجوامع لأبى يوسف من اشترى لحما فعلم أنه مجوسى وأراد الرد فقال ذبحه مسلم يكره أكله آه، ومفاده أن مجرد كون البائع مجوسيا يثبت الحرمة، فإن بعد إخباره بالحل بقوله ذبحه مسلم كره أكله فكيف بدونه تأمل. (ردالمحتار ٥: ٢٢٢، ٢٢٣ كتاب الحظر والإباحة)

﴿١﴾ قال العلامة الحموى : اعلم أن الشک على ثلاثة أضرب پاتي حاشيه په بل مخ

## په شرعي طريقه ذبحه شوي حيوان غوښه په ډبو کې

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د بهرنيو هېوادونو څخه په بندو ډبيانو کې ځينې شيان راځي، په هغوی کې د چرګانو غوښې هم وي او په ډبې باندې یې لیکلي وي چې په شرعي طريقه باندې ذبح شوي دي، ددې څه حکم دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: عاصي اختر گل ..... ۱۹۷۵م / ۱۱ / ۲۱/

**جواب:** تاسو په کومه واسطه دا معلومه کړئ چې ذبح کوونکي یې مسلمانان دي او که کافران؟ که کافران وي؛ نو اهل کتاب دي او که غير اهل کتاب؟ که ذبحه کوونکي مسلمانان يا اهل کتاب وي ، هغه اهل کتاب چې

---

(بقيه حاشيه)شک طرأ على أصل حرام...... مثل أن يجد شاة مذبوحة في بلد فيهامسلمون ومجوس فلا تحل حتى يعلم أنها ذكاة مسلم لأنها أصلها حرام وشككناه في الذكاة المبيحة. (شرح الأشباه والنظائر للحموى ۱: ۱۹۳، القاعدة الثالثة: اليقين لايزول بالشک)

وقال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالىٰ: ويقبل قول كافر ولو مجوسيًا اشتريت اللحم من كتابى فيحل أوقال اشتريته من مجوسى فيحرم ولايرده بقول الواحد وأصله أن خبر الكافر مقبول بالإجماع في المعاملات. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: (قوله اشتريته من مجوسى فيحرم) ظاهره أن الحرمة تثبت بمجرد ذلک وإن لم يقل ذبيحة مجوسى، وعبارة الجامع الصغير وإن كان غير ذلک لم يسعه أن يأكل منه، قال في الهداية: معناه إذا قال كان ذبيحة غير الكتابى والمسلم اه تأمل، وفي التاتارخانية قبيل الأضحية عن جامع الجوامع لأبي يوسف من اشترى لحمًا فعلم أنه مجوسى وأراد الرد فقال ذبحه مسلم يكره أكله، اه، ومفاده أن مجرد كون البائع مجوسيًا يثبت الحرمة، فإن بعد إخباره بالحل بقوله ذبحه مسلم كره أكله فكيف بدونه تأمل . (ردالمحتار ۵: ۲۲۲، ۲۲۳، كتاب الحظر والإباحة)

دهریان نه وي، خدای، نبوت، قیامت، د جنت او دوزخ نه انکار نه کوي؛ نو د دوی دلاسو نو ذبیحه خوړل روا ده، ﴿۱﴾ که نه نو پرهیز دي وکړي ﴿۲﴾ وهو الموفق.

## د کافرو هېوادونو نه راوړل شوي غوښه بې تحقيقه خوړل منع دي

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې (۱) سعودي ته د خارج هېوادو لکه: فرانس، برازیل، استریلیا او بلجیم نه غوښه او چرګان راځي، د هغو خوړل زموږ لپاره څه حکم لري؟

(۲) دلته د چرګانو دکانونه هم شته په هغې کې ژوندي چرګان دي، ذبحه کوونکي يې مسلمان وي؛ خو د ذبحې طريقه يې داسې ده چې د چرګې دواړه پښې او وزري ونړي او پورته يې کړي سر يې ښکته کړي، بيا پرې تېره چاړه راکاږي، په دې اړه شرعي مسئله څه ده؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد نعمان جده سعوديه عربيه ..... ۱۹۸۵ م / ۸ / ۶/

**جواب**: ترکومه چې خبره نه يقيني شوې نه وي، د کفر به هېوادونو نه راوړل شوې غوښه بې تحقيقه خوړل منع دي، ځکه دا نه وي معلومه چې د دې حلالوونکی مسلمان دی او که کافر او نه هم

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: وحل ذبيحة مسلم وكتابي لامجوسي ووثني ومرتد و محرم وتارك التسمية عمدًا يعني لا تحل ذبيحة هؤلاء.

(البحر الرائق ۸: ۱۶۸ كتاب الذبائح)

﴿۲﴾ قال العلامة ظفر احمد العثماني رحمه الله تعالى: داخيرې دهغه چا په حق کې دي چې رښتيا هم عيسائي يا يهودي وي، که هسې په نوم عيسائي يا يهودي وي او په عقائدو کې ملحد وي لکه څرنګه چې دنن سبا ډېر انګريزان دغسې دي، دوی زموږ له خبرو وتلي دي، نه د دوی دلاس ذبيحه حلاله ده او نه هم د دوی له ښځو سره نکاح کول روا دي

دا معلومات شته چې دا ذبحه په اسلامي طريقه شوې او که په غير اسلامي طريقه؟﴿۱﴾ د مسلمانانو ذبحه که په هره طريقه شوې وي حرمت پکښې نشته، ﴿۲﴾ خو کله - کله مکروه کيږي، والله أعلمُ بالصواب.

## د کفري او غير کفري عقيدې لرونکو شيعه ګانو د ذبيحې حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زه په ژوند کې زيات وخت د خپل کور نه بهر تجارت کوم، زه چې په کوم ځای کې يم هلته شيعه ګان ډېر زيات دي، ذبحه همدا خلك کوي، ځينې وخت داسې هم راشي چې هغوی راته د ډوډۍ دعوت وکړي؛ نو ايا د هغوی د لاس ذبيحه پاکه ده؟ جواب راته بنهٔ تفصيلي وليکئ! د همېش لپاره به درته دعاګانې کوم. بينوا توجروا

المستفتي: محمد حسين تمبر مرچنټ معرفت مجيد بنګش يونين ګډز لاری اډه کوهاټ..... ۱۳۸۹ هـ / صفر / ۲۳/

**جواب:** که دا ذبيحه د هغو شيعه ګانو وي چې کافران دي، لکه حضرت علي رضی الله تعالی عنه معبود وايي، هغه پېغمبر ګڼي، يا د حضرت عايشې رضی الله عنها د افك واقعه ربښتيا

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وذكاة الاختيار ذبح بين الحلق واللبة وعروقه الحلقوم والمرئ والودجان وشرط كون الذابح مسلمًا حلالًا خارج الحرم أو كتابيًا ولا تحل ذبيحة غير كتابي من وثني ومجوسي ومرتد وتارك التسمية عمدًا.

(الدرالمختار مختصرًا ۵۱: ۲۰۶ كتاب الذبائح)

﴿۲﴾ قال العلامة ظفر احمد العثماني رحمه الله تعالى: عن عائشة أنهم قالوا: يا رسول الله! إن قومًا حديثو عهد لجاهلية يأتون بلحمان لاندرى أذكروا اسم الله عليه أم لم يذكروا، أنأكل منها؟ فقال رسول الله ﷺ: سموا الله وكلوا، اقول: في الحديث دليل على أنه إن كان الآتي بمثل هذا اللحم هو المسلم يجوز أكله لحسن الظن بالمسلم وحمل فعله على الوجه الصحيح.

(إعلاء السنن ۱۷: ۷۷ كتاب الذبائح، باب اللحم لايدرى أذكراسم الله عليه أم لا)

کښي؛ ﴿۱﴾ نو د کفر له امله د دوی د لاس ذبیحه مرداره ده، ﴿۲﴾ که دا خلك صحابه کرامو او ازواج مطهراتو ته کنځلې کوي؛ نو د زیاترو محققینو په نزد کافران نه دي، صرحَ به فی تمهید السلمی وسائرةابن الهمام وفتحِ القدیر﴿۳﴾ وشرحِ الفقه الأکبرِ لعلی القاری﴿۴﴾و بحر العلوم شرح المسلم وغیره، د دوی د لاس ذبیحه به پاکه وي، په شرط ددې چې کومه ښکاره مرداري د دوی په ذبیحه کې نه وي. فقط وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: وبهذا ظهر أن الرافضی إن کان ممن یعتقد الألوهیة فی علیّ أو أن جبرائیل غلط فی الوحی أوکان ینکر صحبة الصدیق أویقذف السیدة الصدیقة فهو کافر لمخالفته القواطع المعلومة من الدین بالضرورة.
(ردالمحتار ۲: ۳۱۴ کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾فی البحر الرائق: لا مجوسی ووثنی ومرتد ومحرم وتارک التسمیة عمدًا یعنی لا تحل ذبیحة هؤلاء. (البحر الرائق ۸: ۱۲۸ کتاب الذبائح)

﴿۳﴾قال العلامة ابن الهمام رحمه الله تعالیٰ: والثالث قوم لهم منعة وحمیة خرجوا علینا بتاویل یرون انه علی باطل کفر أومعصیة یوجب قتاله بتاویلهم وهؤلاء یسمّون بالخوارج یستحلون دماء المسلمین وأموالهم ویسبون نسائهم ویکفرون أصحاب رسول الله ﷺ وحکمهم عند جمهور الفقهاء وجمهور أهل الحدیث حکم البغاة...... وذهب بعض أهل الحدیث إلی أنهم مرتدون لهم حکم المرتدین...... قال ابن المنذر ولا أعلم أحدًا وافق أهل الحدیث علی تکفیرهم...... وابن المنذر اعرف بنقل مذاهب المجتهدین.
(فتح القدیر ۵: ۳۳۴ باب البغاة)

﴿۴﴾قال العلامة علی القاری رحمه الله تعالیٰ: والجمع بین قولهم لا یکفر أحد من أهل القبلة وقولهم من قال بخلق القرآن أواستحالة الرؤیة أوسبَّ الشیخین اولعنهما وأمثال ذلک مشکل کما قال شارح العقائد وکذا شارح المواقف إن جمهور المتکلمین والفقهاء علی انه لا یکفر أحدمن أهل القبلة...... ویدفع الإشکال...... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

## د مېلمه لپاره د چرګ حلالول

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ په ځای کې داسې رواج وي چې کله چاته مېلمه ورشي؛ نو د هغه د مېلمستيا په خاطر ورته چرګ يا بل شی د خپل وس سره سم حلال کړي، يو سړی وايي چې دا ذبيحه قطعاً حرامه ده، ايا دده دا خبره څه حقيقت لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: فضل هادي مردان ..... ۱۹۶۹ م/ ۷/ ۲۲/

**جواب**: دا سړی په ښکاره غلطی باندې دی، ځکه چې ابراهيم عليه السلام د مېلمنو لپاره خوسی حلال کړی ؤ او الله تعالی بې له کوم نکير او رده په قرآنکريم کې د هغه عمل ستاينه وکړه، دا په ما أهلَّ به لغير الله کې نه دی شامل، ځکه چې د مېلمه عزت په غوښې سره کول مقصد دی نه د وينې په توپولو سره،﴿۱﴾ وهوالموفق .

---

(بقيه حاشيه) بأن نقل كتب الفتاوى مع جهالة قائله وعدم إظهار دلائله ليس بحجة من ناقله إذ مدار الاعتقاد فى المسائل الدينية على الأدلة القطعية...... وقد تصدى الإمام ابن الهمام فى شرح الهداية للجواب عن هذه الحكاية حيث قال: اعلم أن الحكم بكفر من ذكرنا من أهل الأهواء مع ماثبت عن أبى حنيفة رحمه الله تعالى والشافعى رحمه الله تعالى من عدم تكفير أهل القبلة من المبتدعة كلهم محمله أن ذلک المعتقد فى نفسه كفر، فالقائل به قائل بما هو كفر وإن لم يكفر.

(شرح الفقه الأكبر ۱۵۴ عدم جواز تكفير أهل القبلة)

﴿۱﴾قال الله تبارک وتعالى: وَلَقَدْ جَآءَتْ رُسُلُنَآ إِبْرَاهِيمَ بِالْبُشْرَىٰ قَالُوا سَلَامًا، قَالَ سَلَامٌ فَمَا لَبِثَ أَنْ جَآءَ بِعِجْلٍ حَنِيذٍ. (سورة هود آيت: ۶۹)

﴿۲﴾قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: ولو ذبح للضيف لايحرم لأنه سنة الخليل، وإكرام الضيف إكرام الله تعالى. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله لايحرم الخ)...... پاتې حاشيه په بل مخ باندې

## د حیوان په ژوند او مرګ کې د شاهدانو ترمنځ د اختلاف په صورت کې د غوښې حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یو سړي غوبی واخیست، په لاره کې ترې راپرېوت، دې سړي غوبی پرېښود او دوه درې میله لرې د اوبو لپاره چېرته لاړ، په لاره باندې تېرېدونکو خلکو دا شاهدي ورکړه چې غوبی مخکې مړ شوی ؤ، مالك ورغی او په ستوني یې ورته چاړه پرېښوده، حال دا چې تکبیر یې هم پرې ونه ویل، یو سړي ورسره د غوښو په پرې کولو کې مرسته وکړه، کله چې هغوی د غوښې خرڅول پیل کړه؛ نو خلکو ورباندې اعتراضونه شروع کړه چې دا خو مرداره ده، نو ورسره شریك سړي په قسمونه خوړل چې د ذبحې پروخت دې حیوان پښه وښوځول، وروسته یو ایماندار سړي او دوه نورو ښځو شاهدي ورکړه چې دا غوبی په لاره کې مړ پروت ؤ، ددې دواړو لپاره ځان ځانته شاهدی څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد مسکین دکاندار بلند کوټ ..... ۱۹۹۲م/ ۹/ ۱۸/

**ځواب:** ممکنه ده چې دې درې کسانو غوبی د بې هوشی په حالت کې لیدلی وي، ددې وجې مورږ د حرمت فتوی نه شو ورکولای. فقط وهو الموفق.

## د حیوان په حلالوالي او مرداروالي کې د شاهدانو تر منځ د اختلاف مسئله

**سوال:** ددین عالمان اومفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې دذبح پرمهال څلور کسان

---

(بقیه حاشیه) قال البزازی: ومن ظن أنه لایحل لأنه ذبح لاکرام ابن آدم فیکون أهل به لغیر الله تعالی فقد خالف القرآن والحدیث والعقل. (ردالمحتار ۵:۲۱۷ کتاب الذبائح)

وفی الهندیة: وفی المشکل ذبح عند مرأی الضیف تعظیما له لایحل أکلها...... فأما إذا ذبح عند غیبة الضیف لأجل الضیافة فإنه لابأس به کذا فی الجوهرة النیرة.

(فتاوی هندیة ۵:۲۸۶ کتاب الذبائح، الباب الأول)

موجود وو، ذبح کوونکي د ذبح وروسته وویل چې په دیکښې ژوند شکي دی، بس دا وینا یې وکړه او خپل کورته لاړ، پاتې درې کسانو کې چې دوه یې مالکان او یو پردی ؤ، سهار وختي یې غوښه په خلکو تقسیم کړه، یو سرې او کورنی یې د غوښې د خوړلو نه انکار وکړ، بس دا خبره په خلکو کې مشهوره شوه چې مشکوکه غوا یې دربانده وخوړل، کله چې د دې ځلورو کسانو نه پوره تحقیق وشو؛ نو د ذبح کوونکي د وینا له مخې چې کله مې چاړه پرې راکاږل؛ نو وینه یې ګرمه وه؛ خو د رګونو نه معلومېده چې ساه پکښې نشته، پاتې درې کسان (دوه مالکان او یو پردی سړی) وایي: چې ذبح کوونکی دروغ وایي او غویی ژوندی وه، تاسو مهرباني وکړئ او د مسئلې په حل باندې مو پوه کړئ؛ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي محمد سعید ..... ۱۹۷۳م / ۲ / ۲۵/

**جواب**: تاسو په دې تولو کې د حلال والا شهادت قبول کړئ؛ لأنَّ الشــهادةَ على النفي غير معتبرة ﴿۱﴾وهو الموفق .

---

﴿۱﴾ فی شرح المجلة: إنما شرعت البينة لإظهار الحق بناءً عليه لاتقبل الشهادة بالنفی الصرف كقولک فلان مافعل هذا الأمر والشیئ الفلانی ليس لفلان وفلان ليس بمديون لفلان. (شرح المجلة للأتاسی ۵: ۲۴۹، المادة: ۱۶۹۹ الفصل الثالث فی شروط الشهادة)

# كتاب الأضحية

......: قال الله تبارک وتعالیٰ :......

قُلْ اِنَّ صَلاتِی وَنُسُکِی وَمَحْیَایَ وَمَمَاتِی لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ. (سورة الأنعام)

فَصَلِّ لِرَبِّکَ وَانْحَرْ.
(سورة الکوثر)

# كتاب الأضحية

قالَ اللهُ تبارك وتعالى : ﴿ قُلْ إِنَّ صَلاَتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴾ (سورة الأنعام ) ﴿ فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ ﴾ (سورة الكوثر)

## قرباني ولي كيږي او حكم يې ولې شوى؟

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې قرباني ولي كيږي او ابراهيم عليه السلام ته يې ولي حكم وشو؟ بينوا توجروا

المستفتي: غلام محمد كيملپور ..... ۱۹۷۲م / ۲ / ۸ /

**جواب:** قرباني د ابراهيم عليه السلام سنت دى، ﴿۱﴾ او موږ ته يې پېغمبر صلى الله عليه وسلم د ادا كولو په اړه حكم كړى دى؛ نو په موږ هم قرباني واجب شوه ﴿۲﴾ وهوالموفق .

## قرباني ته د مال ضايع كول ويل كفر او زنديقيت دى

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د پاكستان ځينې نوم وړي خلك قرباني ته د مال ضايع كول وايي، ځينې بيا وايي چې قرباني په منى كې د حاجيانو سره خاص ده، مهرباني وكړئ د قرباني مشروعيت راته په ډاګه كړئ؛ بينوا توجروا

المستفتي: نور محمد فيصل آباد ..... ۱۴۰۵ هـ/ صفر / ۲۰/

---

﴿۱﴾عن زيد ابن أرقم قال قال أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم يا رسول الله! ما هذه الأضاحي؟ قال سنة أبيكم إبراهيم عليه السلام الخ.

(مشكوة المصابيح ۱۲۹، باب الأضحيه، الفصل الثالث)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله فتجب التضحية) والوجوب هو قول أبي حنيفة ومحمد وزفر والحسن وإحدى الروايتين عن أبي يوسف رحمهم الله تعالى.

(ردالمحتار ۵: ۲۲۰ كتاب الأضحية) .

**جواب**: قرباني په هر مسلمان باندې واجب ده، ﴿١﴾ دغه راز دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم، راشده خلفاوو او نورو صحابه کرامو سنت دی، د قرباني په مشروعیت د دین ټول امامان اتفاق لري، ﴿٢﴾ په دې باندې د ټولو مسلمانانو اتفاق دی، دې ته د مال ضایع کول یا په حج کې یوازې د منی په خلکو خاص کول الحاد ﴿٣﴾ او زندیقیت دی، ﴿٤﴾ مسلمانان چې په کومو مسائلو اتفاق لري، په هغو باندې بحث کول د پاکستانیو شیعه ګانو خاصیت دی، مسلمان ولس له دوی سره په داسې مسائلو کې بحث کول د وخت ضایع کول ګڼي وهوالموفق .

---

﴿١﴾ قال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالى: الأضحية واجبة على كل حرّ مسلم...... وأمّا الوجوب فقول أبي حنيفة ومحمّد وزفر والحسن وإحدى الروايتين عن أبي يوسف رحمهم الله تعالى. (الهداية ٤: ٤٤٣ كتاب الأضحية)

﴿٢﴾ قال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالى: وثبتت مشروعيتها بالكتاب والسنة والإجماع، أما الكتاب: فقوله تعالى: فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ...... وأما السنّة: فأحاديث ومنها حديث أنس رضي الله تعالى عنه قال: ضحّى رسول الله ﷺ بكبشين أملحين أقرنين فرأيته واضعًا قدميه على صفاحها ويسمّي ويكبر فذبحها بيده، وأجمع المسلمون على مشروعية الأضحية.

(الفقه الإسلامي وأدلته ٣: ٢٧٠٢، الباب الثامن الأضحية والعقيقة)

﴿٣﴾ وفي مجموعة قواعد الفقه: الملحد: هو من مال عن الشرع القويم إلى جهة من جهات الكفر كالباطنية أو الطاعن في الدين مع ادعاء الإسلام أو الذي يؤوّل في ضروريات الدين لإجراء أهوائه.

(مجموعة قواعد الفقه ٥٠٥، التعريفات الفقهية)

﴿٤﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: فإن الزنديق يموّه كفره ويروّج عقيدته الفاسدة ويخرجها في الصورة الصحيحة، وهذا معنى إبطان الكفر.

(ردالمحتار ٣: ٣٢٢ باب المرتد، مطلب في الفرق بين الزنديق والمنافق الخ)

## د قرباني د نصاب اندازه

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قرباني لپاره نصاب څه دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: حاجي عبد الله چارسده ..... ۱۴۰۲ هـ / ذی الحجه / ۲۴/

**جواب:** د چا سره چې اوه نيمې تولې سره زر، اوه پنځوس نيمې تولې سپين زر وي، يا د کور دورمره سامان وي چې د ۱۵۷۵ روپو څخه زياتي وي؛ نو په هغه باندې قرباني واجب ده. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## يوازې په لسمه د ذی الحجې د قرباني د جواز قول صحيح نه دی

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې ايا رښتيا هم قرباني يوازې په لسمه ذی الحجه باندې کيږي؟ په يوولسمه او دولسمه ذی الحجه قرباني نه کيږي، مهرباني وکړئ او مسئله راته روښانه کړئ؛

بينوا توجروا

المستفتي: محمد صديق چوهان ډيره غازي خان

---

﴿۱﴾قال العلامة الكاسانى رحمه الله تعالى: وأما شرائط الوجوب...... ومنها الغنى...... وهو ان يكون فى ملكه مائتا درهم أو عشرون دينارًا أو شيئ تبلغ قيمته ذلک سوى مسكنه وما يتأثث به وكسوته وخادمه وفرسه وسلاحه وما لا يستغنى عنه وهو نصاب صدقة الفطر.
(بدائع الصنائع ۴:۱۹۲، كتاب الضحية، شرائط الوجوب)
وفى الهندية: والموسر فى ظاهر الرواية من له مائتا درهم أو عشرون دينارًا أو شيئ يبلغ ذلک سوى مسكنه ومتاع مسكنه ومركوبه وخادمه فى حاجته التى لا يستغنى عنها.
(فتاوى هندية ۵:۲۹۲ كتاب الأضحية، الباب الأول)

**جواب**: واضحه دي وي دا قول چې قرباني يوازې يوه ورځ جائز ده، دا د ابن سيرين رحمه الله قول دی، (روح المعانی ۱۷: ۱۴۵)، ﴿۱﴾ دا قول د قرآن، حديث او آثارو نه مخالف دی، ځکه خو هيڅ قابل قبول نه دی، أمّا مخالفته عن القرآن، فلأنّ الله تبارك وتعالى قال: ﴿ لِيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ فِي أَيَّامٍ مَّعْلُومَاتٍ عَلَىٰ مَا رَزَقَهُم مِّن بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ ..... الآية﴾ ﴿۲﴾ ولفظ الأيام جمعٌ، وأما مخالفته عن الحديث فلأنّ رسولَ الله صلى الله عليه وسلم قال: أيامُ التشريقِ كلها أيام ذبحٍ رواهُ أحمدُ وابنُ حبانَ والدارُ قطنی كما فی الدراية ﴿۳﴾ و أمّا مخالفته عن الآثار فلما روى عنْ عمرَ و على وابنِ عمرَ وابنِ عباسٍ وانسٍ وأبی هريرةَ رضی الله تعالى عنه و عنهمْ أنّ أيامَ النحرِ ثلاثةٌ أفضلها أولها (كما فی روح المعانی ۱۷ : ۱۴۵) ﴿۴﴾ و أثرُ علیٍّ رواهُ مالكٌ فی مؤطائه فليراجعْ ﴿۵﴾ فقط.

---

﴿۱﴾ قال العلامة سيد محمود احمد الآلوسی رحمه الله تعالى: (فی أَيَّامٍ مَّعْلُومَٰتٍ) ای مخصوصات وهی أيام النحر ...... وعدتها ثلاثة أيام يوم العيد ويومان بعده عندنا ...... وعند ابن سيرين يوم واحد ...... ولم نجد فی ذلک مستندا يعول عليه.

(روح المعانی ۲۲: ۱۴۵، مبحث فی تفسير قوله تعالى: لِيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ ...... الآية)

﴿۲﴾ (سورة الحج آيت: ۲۸ پاره: ۱۷)

﴿۳﴾ (الدراية فی تخريج أحاديث الهداية على هامشه ۴: ۴۴۶ كتاب الأضحية)

﴿۴﴾ (روح المعانی ۲۲: ۱۴۵ مبحث فی تفسير قوله تعالى: لِيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ ..... الآية)

﴿۵﴾ مالک عن نافع ان عبد الله بن عمر رضی الله تعالى عنهما قال: الأضحى يومان بعد يوم الأضحى، مالک أنه بلغه عن علی بن أبی طالب رضی الله تعالى عنه مثل ذلک.
(مؤطا الإمام مالک ۴۹۷، كتاب الأضحية)

## د لسمي ذي الحجې نه وړاندې لمونځ او قرباني نه صحيح کيږي

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې يو سړي دوه ورځې وړاندې اختر وکړ او قرباني يې ذبح کړه، اوس په دې سړي باندې اصلي د اختر لمونځ او قرباني واجب ده او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۹۷۶م/۱/۱/

**جواب:** په شرط ددې چې رښتيا او ثابت وي، دا سړی به دويم ځل د اختر لمونځ او قرباني کوي ﴿۱﴾ وهوالموفق.

## د غنی (شتمن او مالدار) درې قسمونه

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د غنی او مالداری تعريف (پېژندګلوو) څه دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**جواب:** الغنی علی ثلاثة أقسام: غنی يوجبُ الزكوة وهو ملك نصاب نامٍ حالَ عليه الحولُ، وغَنى يحرمُ أخذ الزكوة ويوجبُ صدقةَ الفطرِ والأضحيةَ ولا يوجبُ ايتاء الزكوة وهو ملك نصاب غير نامٍ فاضلٍ عن الحاجة الأصلية، وغنى يحرمُ السؤال دونَ أخذ الزكوة وهو أنْ يكونَ لهُ قوتُ يومه أوْ يقدرُ علی تحصيله بكسبه (د شامي نه راخيستل شوي) ﴿۲﴾

---

﴿۱﴾ فی شرح الوقاية: وأوّل وقتها بعدالصلوٰة إن ذبح فی مصر ای بعد صلوٰة العيد يوم النحر وبعد طلوع فجر يوم النحر إن ذبح فی غيره. (شرح الوقاية ۴: ۳۹، كتاب الأضحية)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: والحاصل أن النصاب قسمان موجب للزكاة وهو النامی الخالی عن الدين وغير موجب لها وهو غيره فإن كان مستغرقًا بالحاجة لمالكه أباح أخذها وإلاحرمه وأوجب غيره من صدقة الفطر والأضحية ونفقه القريب المحرم كما فی البحر وغيره (قوله من لا شيی له) فيحتاج إلی المسئلة لقوته وما يواری بدنه ويحل له ذلک بخلاف الأوّل ويحل صرف الزكاة لمن لا تحلّ له المسئلة.

(ردالمحتار ۲: ۶۴ كتاب الزكاة، باب المصرف)

و بحر «۱» وفتح القدير «۲» وغيره.

و أما الغنى الذى يوجب الحجّ فهو ما يكفى الزاد والراحلةَ فضلاً عما لابدَّ منهُ و عنْ نفقةِ عياله الى عوده (د شامي نه راخيستل شوي) «۳».

و أما أرض الاستغلالِ فحكمها ما فى رد المحتارِ ۲: ۸۸: سئلَ محمدٌ عمنْ له أرضٌ يزرعها أوْ حانوتٌ يستغلها أوْ دار غلتها ثلاثة آلاف ولا تكفى لنفقته و نفقة عياله سنة يحل له أخذ الزكوة وانْ كانتْ قيمتها تبلغ ألوفاً وعليهِ الفتوى «۴» و فى الهندية

«۱» قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالىٰ: (قوله وغنى يملك نصابا) اى لا يجوز الدفع له ...... أطلقه فشمل النصاب النامى السالم من الدين الفاضل عن الحوائج الأصلية الموجب لكل واجب مالى والنصاب الذى ليس بنام الفارغ عما ذكر الموجب لثلاثة: صدقة الفطر والأضحية ونفقة القريب فإن كلا منهما محرم لأخذ الزكاة...... إذ قوت اليوم أصل تحريم السوال. (البحر الرائق ۲: ۲۴۳ كتاب الزكاة، باب المصرف)

«۲» قال العلامة ابن الهمام رحمه الله تعالىٰ: والحاصل أن النصب ثلاثة، نصاب يوجب الزكاة على مالكه وهو النامى خلقةً أو اعدادًا و هو سالم من الدين ونصاب لا يوجبها وهو ماليس أحدهما فإن كان مستغرقًا بحاجة مالكه حلّ له أخذها وإلا حرمت عليه...... فإن كان محتاجًا إلى ماذكرنا حاجة أصلية فهو فقير يحلّ دفع الزكاة إليه وتحرم المسئلة عليه، ونصاب يحرم المسئلة وهو ملك قوت يومه أو لا يملكه لكنّه يقدر على الكسب.

(فتح القدير ۲: ۲۰۲، ۲۰۳، كتاب الزكاة، باب المصرف).

«۳» قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالىٰ: فرض على مسلم حرّ مكلف صحيح بصير ذى زاد وراحلة فضلًا عمّا لا بد منه وفضلًا عن نفقة عياله ممن تلزمه النفقة.

(الدرالمختار مختصرًا ۲: ۱۵۳ تا ۱۵۶، كتاب الحج)

«۴» (ردالمحتار ۲: ۷۱، كتاب الزكاة، باب المصرف، مطلب فى الحوائج الأصلية)

۴: ۲۳۱: وانْ كانَ صاحبُ ضيعة انْ كانَ له من الضياعِ ما لوْ باعَ مقدارَ ما يكفى الزاد والراحلة ذاهباً وجائيا ونفقة عياله و أولاده و يبقى له من الضيعة قدر ما يعيشُ بغلة الباقى يفترضُ عليهِ الحجُ والا فلا فافهمْ ﴿۱﴾وهو الموفق.

## د نصاب اندازه او د قرباني د قضاء کېدو حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د زكات او قرباني لپاره د سرو زرو قيمت ته اعتبار دى؛ نو د سرو زرو د قيمت اندازه هم وليكئ؛ دغه راز كه د يو سړي نه په اختر كې قرباني پاتې شي؛ نو د هغه لپاره څه حكم دى؟ بينوا توجروا

المستفتي: مجيب الله بلوچستاني ...... ۱۴۰۲ هـ / ذى الحجه / ۲۸ /

**جواب:** د قرباني د وجوب لپاره اوه نيمي تولې سره زر او دوه پنځوس نيمي تولې سپين زر دي، لكه: په دېرش روپۍ يوه توله ده؛ ۵۰. ۵۲ ۳۰= ۱۵۷۵ پاكستاني روپۍ ترې جوړېږي، يا په كور كې د ضرورت نه زيات د ۱۵۷۵ روپو شيان وي، بس همدا نصاب دى، ﴿۲﴾ او كوم مالدار چې قرباني ونه كړي؛ نو د يو ګډ يا چېلي قيمت دې يو غريب يا په ډېرو غريبانو صدقه كړي (شامي) ﴿۳﴾ وهوالموفق .

---

﴿۱﴾ (فتاوى هندية: ۱ :۲۱۸ كتاب المناسك، الباب الأول)

﴿۲﴾ فى الهندية: ولا يجوز دفع الزكاة إلى من يملك نصابًا أى مال كان دنانير أو دراهم أو سوائم أو عروضًا للتجارة أو لغير التجارة فاضلاعن حاجته فى جميع السنة.

( فتاوى هندية ۱ :۱۸۹، باب فى المصارف)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وتصدق بقيمتها غنى شراها أولا)...... ذكر فى البدائع أن الصحيح أن الشاة المشتراة للأضحية إذا لم يضح بها حتى مضى الوقت يتصدق الموسر بعينها حية كالفقير ...... پاتې حاشيه په بل مخ باندې

## په لري پرتو سیمو کې د اختر د لمانځه وړاندې قرباني کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د ستر اختر په ورځ د لمانځه نه وړاندې قرباني کول جائز دي او که نه؟ کومه قرباني چې د اختر د لمانځه وړاندې وشي بیا څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: حافظ عبد العزیز بلوچستاني ...... ۱۳۹۵ هـ / ربیع الأول / ۲۱/

**جواب:** په لرې پرتو سیمو (قری) کې د لمر ختلو وروسته د لمانځه نه وړاندې قرباني جائز ده، په ښارونو او نږدې کلیو کې به د اختر د لمانځه وروسته قرباني کوي، که ددې نه مخکې یې وکړه بیا به ناکافي وي، (۱) شامي نه راخیستل شوي ﴿۱﴾ وهندیة، ﴿۲﴾ (وغیرهما) ﴿۳﴾ وهو الموفق.

---

(بقیه حاشیه) بلا خلاف بین أصحابنا...... أمّا إذا لم یشترها فما معنی أنّه یتصدّق بقیمتها فإنها غیر معیّنة، فبین أن المراد إذا لم یشترها قیمة شاة تجزئ فی الأضحیة.
(ردالمحتار ۵:۲۲۶ کتاب الأضحیة)

﴿۱﴾ فی الدر المختار: وأول وقتها بعد الصلوٰة إن ذبح فی مصر...... وبعد طلوع فجر یوم النحر إن ذبح فی غیره. (الدر المختار ۵:۲۲۳، کتاب الأضحیة)

﴿۲﴾ فی الهندیة: والوقت المستحب للتضحیة فی حق أهل السواد بعد طلوع الشمس وفی حق أهل المصر بعد الخطبة کذا فی الظهیریة ولو ذبح والإمام فی خلال الصلاة لا یجوز. (فتاوی هندیة ۵:۲۹۵ کتاب الأضحیة، الباب الثالث فی وقت الأضحیة)

﴿۳﴾ فی البحر الرائق: (ولا یذبح مصری قبل الصلوٰة ویذبح غیره) یعنی لا یجوز لأهل المصر أن یذبحوا الأضحیة قبل أن یصلوا صلوٰة العید، ویجوز لأهل القری والبادیة أن یذبحوا بعد صلوٰة الفجر قبل أن یصلی الإمام صلوٰة العید، والأصل فی ذلک قوله ﷺ: من ذبح قبل صلوٰة الإمام فلیعد ذبیحته ومن ذبح بعد صلوٰة الإمام فقد تمّ نسکه.
(البحر الرائق ۸:۱۷۵، کتاب الأضحیة)

## د اختر د لمانځه کولو په صورت کې د زوال وروسته قرباني جائز ده

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که په ښار کې د څه عذر له امله د لوی اختر لمونځ پاتې شي؛ نو په اوله ورځ قرباني جائز ده او که نه؟ که جائز وي؛ نو د جواز دا صورت د ورځې له کوم وخته پیل کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الکریم د توره‌هیر اوسېدونکی ..... ۱۹۷۵ م / جلوری / ۲۹/

**جواب:** په اوله ورځ د زوال وروسته قرباني جائز ده، كما في الدر المختار: وبعدَ مضى وقتها قالَ العلامة الشامى : و وقتُ الصلوة من الارتفاعِ الى الزوالِ لوْ لَمْ يصلوا لعذرٍ «۱» وهو الموفق .

## د حاجي لپاره د قرباني حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د زید څلور زامن دي، زید مخکې قرباني کول، دا کال بیت الله شریف ته د فرضي حج د اداینې لپاره تللی، د هغه څلور واړه زامن په کور کې موجود دي؛ نو د زید لپاره هماغه یوه قرباني چې په مکه مکرمه کې کیږي کافي ده او که موږ هم دلته ورته قرباني وکړو؟ بینوا توجروا

المستفتي: اسرار الحق گړهی کپوره

**جواب:** که زید د قران یا تمتع اراده کړې وي؛ نو په هغه باندې یو دم (قرباني) په حرم مکي کې واجب دی او هغه چې مخکې به یې په کور کې کول؛ نو په مکه کې یې هم کولای شي او په کور کې یې هم ورته کولای شي او که زید

---

«۱» (الدر المختار مع رد المحتار ۵: ۲۲۴ كتاب الأضحية)

وفى الهندية: إذا ترك الصلاة يوم النحر بعذر أو بغير عذر لا تجوز الأضحية حتى تزول الشمس. (فتاوی هندیة ۵: ۲۹۵ کتاب الأضحية، الباب الثالث)

مفرد بالحج وي؛ نو بيا يوه قرباني په حرم كې ده. (د شامي نه راخيستل شوي) «۱»، بحر«۲» الهندية«۳» وهو الموفق.

## په نابالغ باندې د قربانۍ حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيانددې مسئلې په اړه څه وايي چې زما ورور د اتو كالو دى، پلار مو وفات شوى دى، ايا دا ورور مو يوازې قرباني كولاى شي او كه نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: سيد محمد بلوچستان ..... ۱۳۹۷ هـ / ذى الحجه / ۱۷/

**جواب:** نابالغ نه خپله قرباني كولاى شي او نه هم ولي اجازه لري چې د نابالغ له خوا قرباني وكړي، يدلُّ عليه ما فى شرحِ التنويرِ : و قيلَ لا ، صححه فى الكافى قالَ : وليسَ للأبِ أنْ يفعله من

«۱» قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: قوله وذبح (المتمتع) كالقارن ولم تنب الأضحية عنه لأنّه أتى بغير الواجب عليه إذلا أضحية على المسافر ولم ينو دم التمتع...... وأجاب الرحمتى بأن الدم ليس من افعال الحج والعمرة ولذا لم يجب على المفرد باحدهما بل وجب شكرًا على المتمتع بها.

(ردالمحتار ۲: ۲۱۳، كتاب الحج، باب التمتع)

«۲» فى البحر الرائق: (قوله ثمّ اذبح) اى على وجه الأفضلية لأنّ الكلام فى المفرد وهو ليس بواجب عليه وإنما يجب على القارن والمتمتع، وأما الأضحية فإن كان مسافرًا فلا أضحية عليه وإلّا فعليه كالمكى.

(البحر الرائق ۲: ۳۴۶ كتاب الحج)

«۳» فى الهندية: لم يرجع إلى المنى فإن كان معه نسك ذبحه وإن لم يكن فلا يضره لأنه مفرد بالحج ولو كان قارنًا أو متمتعًا فلا بد له من الذبح.

(فتاوىٰ هندية ۱: ۲۳۱ كتاب الحج، الباب الخامس)

مَالِ طفله و رجحه ابنُ الشحنة ، قلتُ وهوالمعتمد الخ، هامش رد المحتارِ ۵: ۲۷۶ ﴿۱﴾وهوالموفق.

## په نابالغ د زکات او قرباني حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې که د نابالغ هلك یا جینۍ سره د زکات نصاب پوره وي؛ نو ایا په هغوی باندې قرباني کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: رحیم الله اضاخیل بالا ..... ۱۹۹۶م / ۷ / ۲۳/

**جواب:** په داسې نابالغه باندې زکات نشته، عشر، فطرانه او قرباني وربانديې واجب ده، کما فی شرح التنویرِ علی هامش رد المحتارِ ۲: ۹۹:﴿۲﴾ ۵: ۲۷۱﴿۳﴾ فلیراجعْ ﴿۴﴾وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ (الدر المختار ۵: ۲۲۳ کتاب الأضحیة)

فی الاختیار لتعلیل المختار: وأما أولاده الصغار فروی الحسن عن أبی حنیفة أنه یجب علیه أن یضحّی عن أولاده الصغار کصدقة الفطر وعنه لا تجب...... وقیل الأصح انها لا تجب فی مال الصبی بالإجماع لأنّها قربة فلا یخاطب بها، بخلاف صدقة الفطر.

(الاختیار لتعلیل المختار ۵: ۲۱، ۲۲، کتاب الأضحیة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالٰی: (قوله عقل وبلوغ) فلا تجب علی مجنون وصبی لأنها عبادة محضة ولیسا مخاطبین بها.

(ردالمحتار ۲: ۴ کتاب الزکٰوة، مطلب فی أحکام المعتوه)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالٰی: (قوله ویضحّی عن ولده الصغیر من ماله) أی مال الصغیر و مثله المجنون، قال فی البدائع: وأما البلوغ والعقل فلیسا من شرائط الوجوب فی قولهما، وعند محمّد من الشرائط حتّی لا تجب التضحیة فی مالهما لو موسرین.

(ردالمحتار ۵: ۲۲۲، کتاب الأضحیة)

﴿۴﴾ قلت: الراجح هو الأول(المسئلة الأولی). (سیف الله حقانی)

## په پلار باندې د نابالغه اولاد له طرفه د قربانۍ حکم

**سوال:** ما يقولُ العلماء الكرامُ في هذه المسئلةِ أنَّ وجوبَ الأضحيةِ في صغيرٍ أوْ صغيرةٍ على الأبِ أوْ على الوصي ثابتٌ أمْ لا ؟ وهل يجبُ على الأبِ من مال الصغيرِ أوْ منْ مالِ نفسه أوْ على صغيرٍ لا على الأبِ والولي ؟ (والصغيرُ مكلفٌ به أمْ لا؟ والخلافُ في الوجوبِ أمْ في الاستحبابِ)؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الله متعلم دار العلوم حقانيه اکوړه خټک ..... ۱۹۸۳ م / دسمبر/۴/

**جواب:** لا يجبُ على الأبِ أنْ يضحي عنْ ولدهِ الصغيرِ نعمْ اذا كانَ للصغيرِ مالٌ فيضحي عنهُ كما في الهندية ۵:۳۲۵ : وفي الولد الصغيرِ عنْ أبي حنيفةَ رحمه الله تعالى روايتانِ ، في ظاهر الروايةِ : تستحب ولا تجبُ .... والفتوى على ظاهرِ الروايةِ ، وانْ كانَ للصغيرِ مالٌ قالَ بعضُ مشائخنا تجبُ على الأبِ، كذا في فتاوى قاضي خان وهو الأصحُ هكذا في الهداية﴿۱﴾وهو الموفق.

## ولي د خپل نابالغ یتیم له طرفه د قربانۍ کولو حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د نابالغ یتیم له طرفه قرباني څه حکم لري؟ که ورباندې وي؛ نو خپله به یې کوي او که سرپرست به یې ورته کوي؟ او د صدقة الفطر څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: رحیم الله باچا صاحب اضاخیل بالا نوشهره ..... ۱۴۰۲ هـ / ذی القعده / ۲۳/

﴿۱﴾ (فتاوی هندیة ۵: ۲۹۳ كتاب الأضحية، الباب الأول)

وقال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالى: وان كان للصغير مال يضحي عنه أبوه أو وصيه من ماله عند ابي حنيفة وابي يوسف رحمهما الله تعالى...... وقيل لا يجوز التضحية من مال الصغير في قولهم...... والأصح ان يضحي من ماله. (الهداية ۴: ۴۴۴ كتاب الأضحية)

**جواب**: د نابالغ یتیم د مال نه به سرپرست هم قرباني کوي او صدقه فطر به هم ترې ادا کوي ﴿۱﴾ وهوالموفق .

## په قربانۍ کې وکالت صحیح دی

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې حاجي صاحب کله حج ته تلو؛ نو په کور کې یې څوك وکیل جوړ کړ، ددې څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: امین الحق بلوچستانی ......۱۹۷۸ م / ۱۰ / ۲۴/

**جواب**: د قربانۍ وکالت (سپارل) بل چاته صحیح دي،﴿۲﴾ خو غوره دا ده چې خپله کوم ځای کې دی هلته دي وکړي وهوالموفق .

## په مسافر باندې د قربانۍ حکم

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یو مسافر چې کور او بچې یې ورسره وي، ایا په هغه باندې قرباني واجب ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: شرف الدین بلوچستانی ..... ۱۹۷۶ م / ۲ /۵/

---

﴿۱﴾ فی الهندیة: وللوصی فی قول أبی حنیفة رحمه الله تعالی أن یضحّی من مال الصغیر قیاسًا علی صدقة الفطر ولا یتصدق بلحمه ولکن یاکله الصغیر فإن فضل شئ لا یمکن ادخاره یشتری بذلک ما یمکن ادخاره مما ینتفع بعینه کذا فی فتاوی قاضی خان.

(فتاوی هندیة۵:۲۹۳ کتاب الأضحیة، الباب الأول)

﴿۲﴾ فی الهندیة: ومنها أنه تجری فیها النیابة فیجوز للإنسان أن یضحی بنفسه أو بغیره باذنه لأنها قربة تتعلق بالمال فتجری فیها النیابة.

(فتاوی هندیة ۵:۲۹۳ کتاب الأضحیة، الباب الأول)

**جواب**: په مسافر باندې قرباني واجب نه ده، ﴿۱﴾ خو په غریب او مسافر کې هم فرق کول ضروري دي وهو الموفق.

## د سود ورکوونکي او اخیستونکي سره د قرباني حکم

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د سود ورکوونکي او اخیستونکي سره قرباني جائز ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا عبد الرزاق لوند خوړ مردان ...... ۱۹۶۹م/ ۲/ ۱۳/

**جواب**: سود خور او سود ورکوونکي په فاسقانو کې شمار دي کافران نه دي، ځکه نو د دوی سره قرباني جائز ده، ﴿۲﴾ سره له دې چې صحیح کیږي؛ خو دده د بد عملی له امله د عدم اجابت (نه قبلیدو) خطره ده: نو ځان دي ترې ساتي! ﴿۳﴾ وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ في الاختيار: وهي واجبة على كل مسلم حرّ مقيم...... وإنما لم تجب على المسافر لأنها اختصت بأسباب شق على المسافر تحصيلها وتفوت بمضي الوقت فلم تجب.
(الاختيار لتعليل المختار ۵:۲۰ كتاب الأضحية)

وفي الهندية: ولا تجب على المسافرين.

(فتاوى هندية ۵:۲۹۳ كتاب الأضحية، الباب الأول)

﴿۲﴾ قال العلامة الكاساني رحمه الله تعالى: وأما شرائط الوجوب...... فمنها: الإسلام فلا تجب على الكافر لأنها قربة والكفر ليس من أهل القرب.

(بدائع الصنائع ۴:۱۹۵، كتاب التضحية، شرائط الوجوب)

﴿۳﴾ عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ إن الله طيب لا يقبل إلا طيبا وإن الله أمر المؤمنين بما أمر به المرسلين فقال يَاأَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا، وقال الله تعالى: يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ.

(مشكوة المصابيح ۱:۲۴۱ باب الكسب وطلب الحلال)

## د زياتره حرام مال والا سره د قرباني حكم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د سود خور سره قرباني جائز ده او كه ناجائز؟ بينوا توجروا

المستفتي: د ګاشګور خوازه خيله سوات اوسېدونكي ..... ۱۹۷۳م/۲/۱۴/

**جواب:** كه ددې سود خوړتول مال د حرامو نه وي بيا قرباني ورسره جائزده. ﴿۱﴾ كه ټول يا زياتره مال يې حرام وي؛ نو قرباني دې ورسره نه كوي، لأنّه مالــه غير طيبٍ﴿۲﴾والله تعالى لا يقبلُ الا الطيبَ﴿۳﴾وقالَ الامامُ الكرخـى اذا اشترى الرجلُ شيئاً و دفعَ منْ مالِ الحرامِ فلا يطيبُ ذلك الشـئُ وقــولُ الكرخى هو المفتى به ، والتفصيلُ فى رد المحتارِ ۴: ۲۱۹ ﴿۴﴾ وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ فى الهندية: وأما شرائط الوجوب...... ومنها الإسلام فلا تجب على الكافر.

(فتاوى هندية ۵:۲۹۲ كتاب الأضحية، الباب الأول)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله كما لو كان الكل خبيثًا) فى القنية لو كـان الـخبيث نصابًا لا يلزمه الزكوة لأنّ الكل واجب التصدّق عليه فلا يفيد إيجاب التصدّق ببعضه. (ردالمحتار ۲:۲۸ باب زكوة الغنم)

﴿۳﴾ عن أبى هريرة رضى الله تعالى عنه قال قال رسول اللهﷺ إن الله طيب لا يقبل إلا طيبًا، وإن الله أمر المؤمنين بما أمر به المرسلين فقال: يَاأَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوْا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوْا صَالِحًا، وقال الله تعالى: يَاأَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا كُلُوْا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ.

(مشكوة المصابيح ۱:۲۴۱ باب الكسب وطلب الحلال)

﴿۴﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله اكتسب حرامًا الخ) توضيح المسئلة مافى التتارخانية حيث قال رجل اكتسب مالًا من حرام...... پاتې حاشيه په بل مخ باندې

## د فاسق، بدعتي او سود خور سره د قرباني کولو حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د لوی اختر په قرباني کې اوه کسان شریکان دي، په هغوی کې فاسق، فاجر او سود خوران هم دي، ایا د نېکو بندګانو نه بغیر ددې نورو قرباني قبلیږي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: نور بادشاه متعلم دار العلوم حقانیه ..... ۱۹۸۵م / ۱۲ / ۱۲ /

**جواب:** د داسې شریکانو سره شراکت د ذمې فارغولو ته کوم زیان نه رسوي، زیات ثواب لره زیان رسوي، لوجود أصلِ الشرطِ وهو الاسلامُ﴿۱﴾وهو الموفق.

---

(بقیه حاشیه) ثم اشترى فهذا على خمسة أوجه: إما إن دفع تلک الدراهم إلى البائع أولاً، ثمّ اشترى منه بها أو اشترى قبل الدفع بها ودفعها أو اشترى قبل الدفع بها ودفع غيرها أو اشترى مطلقًا ودفع تلک الدراهم أو اشترى بدراهم آخر ودفع تلک الدراهم...... وقال الكرخي في الوجه الأول والثاني لا يطيب وفي الثلاث الأخيرة يطيب وقال أبوبكر لا يطيب في الكلّ ولكن الفتوى الآن على قول الكرخي.

(ردالمحتار ۴: ۲۴۴ مطلب إذا اكتسب حرامًا ثم اشترى الخ)

﴿۱﴾ قال العلامة الكاساني رحمه الله تعالى: وأما شرائط الوجوب...... فمنها الإسلام فلا تجب على الكافر لأنها قربة والكافر ليس من أهل القرب.

(بدائع الصنائع ۴: ۱۹۵، كتاب التضحية)

وقال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالى: اتفق الفقهاء على أن المطالب بالأضحية هو المسلم الحر البالغ العاقل المقيم المستطيع.

(الفقه الإسلامي وأدلته ۴: ۲۷۱۱، الباب الثامن: الأضحية، المطلب الثالث)

## د بت خرخوونکي سره د قرباني يو ځای کولو حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ د کلي سره نژدې په يو غره کې يو بت پيدا شو، ځينو خلکو هغه خرڅ کړ، د کلي عالمانو دا فتوی ورکړه چې د بت خرخوونکو لمونځ نه صحيح کيږي او که په دغو روپو باندې د قربانۍ لپاره څناور واخلي؛ نو قرباني به يې هم نه صحيح کيږي، ايا د دوی دا خبره حقيقت لري او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۹۷۴م / ۵ / ۴/

**جواب:** واضحه دې وي چې د بتانو اخيستل او خرڅول حرام دي، لحديثٍ متفقٍ عليهِ ، عنْ جابرٍ رضى الله عنه يقولُ عامَ الفتحِ وهو بمكةَ انَّ اللّه تعالى حرَّمَ بيعَ الخمرِ والميتةِ والخنزيرِ والأصنامِ﴿۱﴾ ولأنها غير متقومة فى حقِّ المسلمِ لعدمِ جوازِ الانتفاعِ أشارَ اليهِ فى بيوعِ الدر المختارِ﴿۲﴾ په دې سره کفر نه لازميږي،﴿۳﴾ نو ځکه د دوی سره نکاح او قرباني هم جائز ده، دوی د مسلمانانو له صفه ويستل ظلم او حرام عمل دی، قال الله تعالى: وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن مَّنَعَ مَسَاجِدَ اللَّهِ أَن يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ .... الآية﴿۴﴾ وهو الموفق .

---

﴿۱﴾ (مشكوة المصابيح ۲۴۱، باب الكسب وطلب الحلال)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: وبطل بيع مال غير متقوم أى غير مباح الانتفاع به ابن كمال. (الدر المختار ۴: ۱۱۵، باب البيع الفاسد)

﴿۳﴾ قال العلامة الإمام الأعظم رحمه الله تعالى: ولا نكفر مسلمًا بذنب من الذنوب وان كانت كبيرة إذا لم يستحلها ولا نزيل عنه الإيمان.

(الفقه الأكبر على هامش شرح الفقه الأكبر ۱۷، الكبيرة لا تخرج المؤمن من الإيمان)

﴿۴﴾ (سورة البقرة آيت: ۱۱۴)

## د قربانۍ په بچي راروان کال قرباني نه کيږي

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که د قربانۍ د مال نه دوه درې ورځې وړاندې بچی پيدا شي، په همدې بچي راروان کال قرباني کيږي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي صالح دين ټانك ..... ۱۹۷۴م / دسمبر / ۵/

**جواب:** د داسې بچي قرباني نه صحيح کيږي، کما في الهندية ۵: ۳۳۴ :
وانْ بقى الولد عنده حتى كبرَ وذبحه للعام القابلِ أضحيةً لا يجوزُ وعليهِ أخرى لعامه الذى ضحى و يتصدقُ به مذبوحاً معَ قيمةِ ما نقص بالذبحِ والفتوى على هذا كذا فى فتاوى قاضى خان﴿۱﴾وهوالموفق.

## د قربانۍ د ورځو تېرېدو وروسته قيمت صدقه کول پکار دي

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که د مجبورۍ له امله په قربانۍ کې برخه پيدا نه شي او د اختر ورځې تيرې شي؛ نو بيا څه کول پکار دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: نور علي ..... ۱۹۷۶م/ ۱ / ۱۹/

**جواب:** د قربانۍ، په ورځو کې قرباني واجب ده، د قربانۍ د ورځو په تېرېدو بې بيا قيمت صدقه کول پکار دي (شامی) ﴿۲﴾ وهوالموفق .

﴿۱﴾ (فتاوى هندية ۵: ۳۰۲ كتاب الأضحية، الباب السادس)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وتصدق بقيمتها غنى شراها أولا) كذا فى الهداية وغيرها كالدرر وتعقبه الشيخ شاهين بأن وجوب التصدق بالقيمة مقيد بما إذا لم يشتر. (ردالمحتار ۵: ۲۲۶، كتاب الأضحية)

## د ایصال ثواب لپاره د غوا قرباني کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې که په یوه قربانۍ کې تولي برخې د ایصال ثواب لپاره وي، د ژوندي خلکو یوه برخه هم پکښې نه وي، ایا دا جواز لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: فخر الدین ولد مولوی نصیر الدین غورغوشتوي ..... /رجب المرجب/ ۱۰/

**جواب:** دا عوامي قید دی کتابي قید نه دی، د مړي له طرفه ټوله قرباني هم جائز ده، کما کانَ عليٌّ رضى الله عنهُ يضحّى عنه عليهِ الصلوة والسلام بالشاةِ ،رواهُ أبو داؤدَ﴿۱﴾ وهوالموفق .

## د رهن شوي ځمکې نه د نصاب په مالک قرباني واجب نه ده

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زید ځمکه لري او د ځمکې قیمت یې تقریباً لس زره روپو تـه رسیږي، د زید دا ټوله ځمکه د بل سړه ګرو (رهن) ده، زید په لاس کې نغدي روپۍ نه لري؛ خو که د ځمکې څه برخه خرڅه کړي؛ نو خپله ټوله قرضه وربانديې پوره کولای شي او ځمکه هم د رهن څخه خلاصولای شي، زید داسې نه کوي، ایا په زید باندې قرباني واجب ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: غلام حبیب ..... ۱۹۷۴م/ ۲ / ۱۱/

**جواب:** په زید باندې قرباني واجب نه ده. ﴿۲﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ عن حنش قال رأيت عليًا رضى الله تعالى عنه يضحّى بكبشين فقلت له ما هذا؟ فقال: ان رسول الله ﷺ اوصانى ان اضحّى عنه فانا اضحى عنه.

(سنن ابى داؤد ۲ :۳۸۵ کتاب الضحايا، باب الأضحية عن الميت)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: فلا زكوٰة على مكاتب لعدم الملک التام...... ولا فى مرهون بعد قبضه (درمختار)...... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

## د قرباني قضا څنګه راګرځي؟

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قرباني قضا شته او که نه؟ تقريبا اوه (۷) کاله کيږي چې قرباني نه ده شوې، ايا اوس ددې قضا شته او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: وزير محمد متعلم دار العلوم حقانيه ...... ۱۳۹۷ هـ / ذی القعده / ۲۹/

**جواب**: د قرباني لپاره قضا نشته، يعنې د قرباني څخه ذمه نه فارغيږي؛ خو دومره ده چې ګډ دې صدقه کړي او يا دې هم نغدې روپۍ خلکو ته ورکړي (د فتاوی هنديه نه اخيستل شوی)﴿۱﴾ وهوالموفق .

## هغه چې صاحب نصاب نه وي، قرباني پرې نه کيږي

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې ما خپل تجارت د ډيرې کمزورۍ له امله بچيانو ته وسپارلو، هغوی زما هر ډول خدمت کړی دی او د خپلې مور لپاره يې هر کال قرباني کړې ده، دا کال هغوی وايي چې تا ته هم قرباني کوو؛ نو زما قرباني به واجب وي او که نفل؟ بينوا توجروا

المستفتي: حاجي محمد اسمعيل مردان..... ۱۴۰۴ هـ / ذی الحجه / ۲۸/

---

(بقيه حاشيه) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ولا في مرهون) أي لاعلى المرتهن لعدم ملك الرقبة ولا على الراهن لعدم اليد وإذا استرده الراهن لا يزكّي عن السنين الماضية...... ويدلّ عليه مافي البحر: ومن موانع الوجوب الرهن وظاهره ولو كان الرهن أزيد من الدين. (ردالمحتار مع الدرالمختار ۲: ۷ كتاب الزكاة)

وفي الهندية: ولا على الراهن إذا كان الرهن في يد المرتهن هكذا في البحر الرائق.

(فتاوی هندية ۱: ۱۷۲ كتاب الزكاة، الباب الأول)

﴿۱﴾ في الهندية: ومنها أنها تقضى إذا فاتت عن وقتها لم قضاؤها قد يكون بالتصدق بعين الشاة حية وقد يكون بالتصدق بقيمة الشاة.

(فتاوی هندية ۵: ۲۹۴ كتاب الأضحية، الباب الأول في تفسيرها الخ)

**جواب:** دا اوسنی گټه ستا د بچیانو ده، ددې نه بغیر که ستا سره د نصاب په اندازه پوره مال نه وي؛ نو بیا ستا له طرفه قرباني نفل ده، واجبه نه ده. ﴿۱﴾ واللّٰهُ أعلمُ.

## د قربانۍ په نصاب کې د ذبح تر وخته پورې د نفقې اعتبار شته

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قربانۍ په نصاب کې د نفقې اعتبار شته او که نه؟ که وي نو د څومره وخت لپاره؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الرحمن ژوب ..... ۱۹۷۷ م / نومبر / ۲۷/

**جواب:** د ذبح تر وخته پورې اعتبار لري، (د رد المحتار نه اخیستل شوی: ۵: ۲۷۲) ﴿۲﴾ وهو الموفق.

## تاکلی مهر معجل قرباني منع کوي

**سوال:** د دین عالمان اومفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ په خایونو کې د پرش یا خلوبنت

﴿۱﴾ فی الهندیة: وأما شرائط الوجوب: منها الیسار وهو ما یتعلق به وجوب صدقة الفطر دون ما یتعلق به وجوب الزکاة.

(فتاوی هندیة ۵: ۲۹۲ کتاب الأضحیة، الباب الأول)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله والیسار الخ) بأن ملک مائتي درهم أو عرضًا یساویها غیر مسکنه وثیاب اللبس أو متاع یحتاجه إلی أن یذبح الأضحیة.

(ردالمحتار ۵: ۲۱۹ کتاب الأضحیة)

وفی الخلاصة: قال أبوحنیفة الموسر الذی له مائتا درهم أو عرض یساوی مائتی درهم سوی المسکن والخادم والثیاب التی یلبس ومتاع البیت الذی یحتاج إلیه وهذا إذا بقی له إلی أن یذبح الأضحیة.

(خلاصة الفتاوی ۴: ۳۰۹ کتاب الأضحیة، الفصل الثانی)

زره روپۍ مهر اېښودل کیږي، د مثال په توګه ما لس زره روپۍ ادا کړي دي، هغه چې مې نه دي ورکړي ایا هغه زما په غاړه قرض دي او که نه؟ او ددې قرض له امله دا سړی د قرباني نه کولو عذر پېش کولای شي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مجیب الله بلوچستاني متعلم دار العلوم حقانیه ..... ۱۴۰۲ هـ/ذی الحجه/۲۸/

**جواب:** که د نکاح په عقد کې ددې مقدار تعین شوی وي؛ نو دا پاتې روپۍ دربانده قرض دي، په تا باندې قرباني نه کیږي «۱» وهو الموفق.

**د (وي سي آر) د اخیستونکي او خرڅوونکي سره یو ځای د قرباني کولو حکم:**

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې دي (وي سي آر) د اخیستونکي او خرڅوونکي سره د قربانۍ کولو څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۹۸۶ م/ ۸ / ۱۱/

**جواب:** دا چې د (وي سي آر) کار کوونکي دا شیان په استعمالوونکو خرڅوي؛ نو د ګناه او حرام کېدو له امله دا قیمت واجب الرد دی «۲» او ددې تاجر سره شراکت د غل او دووس سړي سره یو شان دی. وهو الموفق

---

«۱» فی الهندیة: وکذلک المهر یمنع مؤجلا کان أو معجلا لأنه مطالب به کذا فی محیط السرخسی وهو الصحیح علی ظاهر المذهب. (فتاوی هندیة ۱: ۱۷۳ کتاب الزکاة، الباب الأول)

وقال العلامة الکاساني رحمه الله تعالیٰ: ومنها أن لایکون علیه دین مطالب به من جهة العباد عندنا، فإن کان فإنه یمنع وجوب الزکاة بقدره حالا کان أو معجلا...... وعلی هذا یخرج مهر المرأة فإنه یمنع وجوب الزکاة عندنا معجلا کان أو مؤجلا لأنه إذا طالبته یؤاخذ به. (بدائع الصنائع ۲: ۸۳ کتاب الزکاة، دین زکاة)

«۲» قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالیٰ: ویکره تحریما بیع السلاح من أهل الفتنة إن علم لأنه إعانة علی المعصیة...... قلت وأفاد کلامهم ان ماقامت المعصیة بعینه یکره بیعه تحریما وإلا فتنزیها، نهر. ...... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

## د سپینو زرو د نصاب اوسنی قیمت معتبر دی

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د شریعت په کتابونو کې د زکات نصاب دوه سوه درهمه دی چې د هندوستان د څلوېښتو روپو سره برابر دی؛ نو ایا د قربانۍ لپاره هم دا نصاب دی؟ په داسې حال کې چې د سپینو زرو د اوسنیو څلوېښتو سکو تر منځ خو پوره فرق راغلی دی، په څلوېښت روپۍ خو یوازې د قربانۍ تصور هم ناممکن دی؛ نو ایا د اوسنی زمانې د سکو سره یې موازنه کول ضروري دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: سید ګل بلی ټنګ کوهاټ ..... ۱۹۷۵ م / جون / ۱۲/

**جواب:** واضحه دي وي چې دوه سوه درهمه د دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو قیمت دی، پاکستانی یا هندستانی روپۍ خو نه سپین زر (فضه) دي او نه هم غالب الفضه دي، نو په دیکښې به د قیمت اعتبار وي، د پنځلس روپۍ یوه تولې په حساب سره نصاب ۷۸۷،۵۰=۱۵×۵۲،۵۰ اوه سوه اوه اتیا روپۍ اته آنې جوړیږي ﴿۱﴾ وهو الموفق.

---

(بقیه حاشیه) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله لأنه إعانة على المعصية) ...... ونظيره بيع المعازف لأن المعصية تقام بها عينها.

(الدر المختار مع رد المحتار ۳:۳۲۳ قبيل كتاب اللقيط، مطلب كراهة بيع ما تقوم المعصية بعينه)

﴿۱﴾ قال العلامة الكاساني رحمه الله تعالى: فإن كانت أثمانا رائجة أو كان يمسكها للتجارة يعتبر قيمتها، فإن بلغت قيمتها مائتى درهم من أدنى الدراهم التى تجب فيها الزكاة وهى التى الغالب عليها الفضة تجب فيها الزكاة وإلا فلا.

(بدائع الصنائع ۲:۱۰۳ كتاب الزكاة، الأثمان المطلقة)

## د بادي لپاره په اينبودل شوو روپو د قرباني حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې موږ اوه ورونه يو، درې ورونو مو ودونه کړي دي، په يو واده تقريباً درې زره روپۍ خرچه راځي، ټول مال مو شپږ زره روپۍ ده، ايا د ستر اختر قرباني په موږ واجب ده؟ بينوا توجروا

المستفتي: عيسى خان جنرل سټور کوئټه ..... ۱۹۸۷م / ۸ / ۲۲/

**جواب:** تاسو ټول ورونه به قرباني کوئ، ځکه چې په ظاهره تاسو شتمن يئ.﴿۱﴾ وهو الموفق.

## اوه تولې سره زر او څه روپۍ وي، نو قرباني واجب ده

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د هندې سره اوه تولې سره زر او څه روپۍ دي، ايا په هغې باندې قرباني واجب ده او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: نذير احمد متعلم دار العلوم حقانيه ..... ۱۴۰۴ هـ / ذی القعده / ۳۰/

**جواب:** ددې مال قيمت د سپينو زرو د قيمت نصاب ته رسيږي، بلکې تر هغې هم زياتيږي، په هنده باندې قرباني واجب ده، وهو قولُ الوهبانية واليه مالَ العلامة الشامي رحمه الله تعالى فليراجعْ الى رد المحتارِ ۲: ۸۹﴿۲﴾ واللّٰهُ أعلمُ بالصوابِ.

---

﴿۱﴾ فی الهداية: الأضحية واجبة على كل حرّ مسلم موسر في يوم الأضحى عن نفسه. (هداية ۴: ۴۴۳ كتاب الأضحية)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: قال في العناية: ولا يجوز دفع الزكاة إلى من ملك نصابًا سواء كان من النقود أو السوائم أو العروض ..... لأنّ قول العناية سواء كان الخ مفيد تقدير النصاب بالقيمة سواء كان من العروض أو السوائم ..... فقد نصّ على اعتبار قيمة السوائم في عدة كتب من غير خلاف في الأشباه والسراج باتي حاشيه په بل مخ باندي

## که د يوې تولې سرو زرو قيمت د سپينو زرو د نصاب سره پوره وي؛ نو قرباني واجب ده:

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که د چا سره دومره اندازه سره زر وي چې قيمت يې د دوه پنځوس نيمو تولو سپينو زرو سره برابرېږي، ايا په هغه باندې قرباني واجب ده او که نه؟ که واجب نه وي؛ نو مفتي محمد شفيع رحمه الله چې په احکام قرباني کې دا لاندې عبارت ليکلی، ددې څه مطلب دی؟

عبارت دا دی: د چا سره چې دوه پنځوس نيمې تولې سپين زر وي، دا مال برابره خبره ده چې سره زر، سپين زر يا ددې جوړ شوي ګاڼه وي... ؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم متعلم دار العلوم حقانيه ...... ۱۹۸۶م/ ۹/ ۱۱/

**جواب:** د رد المحتار د عبارت څخه معلومېږي، وهي رواية المحيط، د چا سره چې دومره سره زر وي چې قيمت يې دوه سوه درهمو ته رسيږي؛ نو په هغه باندې قرباني واجب ده، لأنه حرمَ عليه أخذ الزكوة، فافهمْ! ﴿۱﴾ وهو الموفق.

(بقيه حاشيه) والوهبانية وشرحها والذخائر الأشرفية، وفي الجوهرة قال العلامة المرغيناني: إذا كان له خمس من الإبل قيمتها أقل من مائتی درهم تحل له الزكوة وتجب عليه، بهذا ظهر أن المعتبر نصاب النقد من أیّ مال كان بلغ نصابا من جنسه أو لم يبلغ. (ردالمحتار ۲: ۷۱ كتاب الزكوة، باب المصرف، مطلب في الحوائج الأصلية)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: إذا كان له خمس من الإبل قيمتها أقل من مائتی درهم تحل له الزكاة وتجب عليه، وبهذا ظهر أن المعتبر نصاب النقد من أیّ مال كان بلغ نصابًا من جنسه أولم يبلغ آه ما نقله عن المرغيناني آه مافي الشرنبلالية ملخصًا ووفق ط بأنه روى عن محمّد روايتان في النصاب المحرم للزكاة هل المعتبر فيه القيمة أو الوزن؟ ففي المحيط عنه الأول وفي الظهيرية عنه الثاني وتظهر الثمرة فيمن له تسعة عشر دينارًا قيمتها ثلاث مائة درهم مثلًا فيحرم أخذ الزكاة ...... پاتې حاشيه په بل مخ باندې

**په اوه تولې سره زرو باندې د زکات، صدقه فطر او قربانۍ کولو حکم**

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د زید سره اوه تولې سره زر د اصلي حاجت نه زیاتي پرتې دي، چې د اوس وخت سره سم د سپينو زرو د نصاب نه څو چنده زیات قیمت لري، اوس په زید باندې زکات، صدقه فطر او قرباني واجب ده او که نه؟ که په ده باندې واجب نه وي؛ نو زید خپله زکات، صدقه فطر او نور واجب صدقې له خلکو اخیستلای شي او که نه؟ د شرعي دلائلو په رڼا کې مسئله راته نوره هم روښانه کړئ؛ الله جل جلاله به يې درته ښه بدل کړي. بینوا توجروا

المستفتي: مولوي مبارك شاه مدرس مدرسه ایوبیه تجوړی بنو ...... ۱۹۸۹م/فروری/۱۹/

**جواب:** په زید باندې قرباني او صدقة الفطر واجب دي، أما الأولُ فلما فی الهندية ۵: ۳۲۵ : و ببقرة واحدةٍ غنى و بثلاثة ثيران اذا ساوى أحدهما مائتى درهم صاحب نصابٍ﴿۱﴾انتهى وأمّا الحاقُ صدقة الفطرِ بالأضحية فلما صرحوا به عنْ اتّحادِ شرائطهما كمافى الهندية۵: ۳۲۴﴿۲﴾فافهمْ وهوالموفق.

---

(بقيه حاشيه) على الأول لا على الثاني...... وعلى رواية المحيط من اعتبار القيمة يحمل ما فى الشرنبلالية وغيرها.

(ردالمحتار ۲: ۷۱ كتاب الزكاة، باب المصرف، مطلب فى الحوائج الأصلية)

﴿۱﴾ (فتاوى هندية ۵: ۲۹۳ كتاب الأضحية، الباب الأول فى تفسيرها وركنها وصفتها وشرائطها)

﴿۲﴾ فى الهندية: وأما شرائط الوجوب منها اليسار وهو ما يتعلق به وجوب صدقة الفطر دون ما يتعلق به وجوب الزكاة.

(فتاوى هندية ۵: ۲۹۲ كتاب الأضحية، الباب الأول فى تفسيرها وركنها الخ)

## په دوه توله سرو زرو او څه نغدو روپو باندې د زکات او قربانۍ حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د یوې ښځې سره دوه تولې سره زر دي او ورسره دوه نیم زره نغدي روپۍ هم دي، په دې ښځې باندې زکات او قرباني څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: حافظ تعویز ګل نریاب هنګو ..... ۱۴۰۴ هـ / ربیع الأول / ۲۸ /

**جواب:** دا ښځه به قرباني کوي، ﴿۱﴾ د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد به زکات هم ورکوي، (شامی) ﴿۲﴾ وهو الموفق.

## د مختلفو انواعو د حیواناتو په مجموعي قیمت د قربانۍ حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د یو سړي سره مختلف نوعه حیوانات دي؛ خو یو قسم یې هم د نصاب اندازې ته نه رسیږي او د تجارت لپاره هم نه دي، ایا دا سړی به قرباني او صدقه فطر ورکوي؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد بلوچستانی ..... ۱۴۰۱ هـ / ۵ / ۳۰ /

---

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: في العناية: لا يجوز دفع الزكاة إلى من ملك نصابًا سواء كان من النقود أو السوائم أوالعروض...... لأن قول العناية سواء كان الخ مفيد تقدير النصاب بالقيمة سواء كان من العروض أوالسوائم...... أن المعتبر نصاب النقد من أى مال كان بلغ نصابا من جنسه أولم يبلغ.
(ردالمحتار ۲: ۴۷ كتاب الزكاة، باب المصرف، مطلب فى الحوائج الأصلية)

﴿۲﴾قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالىٰ: (قوله وقيمة العروض الخ) تقدم قريبًا تقويم العرض إذا بلغ نصابًا، وماهنا فى بيان ما إذا لم يبلغ نصابا، وعنده من الثمنين مايتم به النصاب، وفى النهر قال الزاهدى: وله أن يقوّم أحد النقدين ويضمه إلى قيمة العروض عند الإمام. (ردالمحتار ۲: ۳۷ كتاب الزكاة، باب زكاة المال)

**جواب:** په دې سړي باندې قرباني واجب ده، ځکه چې د صدقة الفطر وجوب په مالدارۍ دی، نه د مال په نماء باندې؛ خو دومره ده چې په دې سړي باندې زکات نشته، يدلُّ على أصلِ المسئلة ما فى أضحية الهندية ۵: ۳۲۵ : و ببقرة واحدةٍ غنى و بثلاثة ثيران اذا ساوى أحدهما مائتى درهم صاحب نصابٍ،انتهى ﴿۱﴾ والأصلُ أنه منْ يجبُ عليهِ الأضحيةُ يجبُ عليهِ صدقة الفطر و يحرم عليهِ أخذ الزكوة ﴿۲﴾ وهوالموفق .

## د مختلفو حيواناتو په مجموعي قيمت د قرباني حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ د ځای خلك کډي آو چېلې اخلي، اوس د يو سړي سره څلور اوښان، لس غويان او شل وزې دي، د زکات د نصاب له مخې زکات ورباندې نه کيږي، ځکه چې د يو جنس څخه نه دي، ايا په دې سړي باندې قرباني واجب ده او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: حافظ محمد يعقوب کوئټه ..... ۱۹۷۵ م / مارچ / ۱۵/

**جواب:** په دې سړي باندې قرباني او صدقة الفطر واجب نه دي. ﴿۳﴾ كمافى البحر ۲: ۲۴۵ قالَ

---

﴿۱﴾ (فتاوى هندية ۵: ۲۹۳ كتاب الأضحية، الباب الأول)

وفى خلاصة الفتاوى: وفى الفتاوى الدهقان ليس بغنى بفرس واحد وبحمار واحد فإن كان له فرسان أوحماران وأحدهما يساوى مائتى درهم فهو نصاب...... وببقرة واحدة غنى وبثلاثة ثيران إذا تساوى أحدهما مائتى درهم صاحب نصاب.

(خلاصة الفتاوى ۴: ۳۱۰ كتاب الأضحية، الفصل الثانى فى نصاب الأضحية)

﴿۲﴾ قال العلامة الكاسانى رحمه الله تعالى: وأما الغناء الذى يحرم به أخذ الصدقة وقبولها فهو الذى تجب به صدقة الفطر والأضحية. (بدائع الصنائع ۲: ۱۵۸ فصل مصارف الزكاة)

﴿۳﴾ ماقبل اور اس مسئلہ میں فرق ذريعۂ معاش ہے۔ (سیف اللہ حقانی)

هشامٌ سألتُ محمداً عنْ رجلٍ له تسعة عشر ديناراً تساوى ثلثة مائة درهمٍ هلْ يسعه أنْ يأخذَ ؟ قالَ نعم! ولا يجبُ عليه صدقة فطره﴿۱﴾ انتهى ، قلتُ: و حكمُ الأضحيةِ و صدقة الفطرِ واحدٌ كما صرحوا به﴿۲﴾وهوالموفق.

## غوا او چېلۍ په اصلي حاجت کې نه دي حساب

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې غوا او چېلۍ په اصلي حاجت کې شمار دي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مبارك شاه لکي دار العلوم ..... ۱۹۷۶م / ۲ / ۲۱/

**جواب:** نه په دې غواګانو باندې زکات شته (لعدم النماء ) ﴿۳﴾او نه هم په اصلي حاجت کې حساب دي، فلا يأخذ الزكوة و يجبُ عليه صدقة الفطرِ والأضحية﴿۴﴾وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ (البحر الرائق ۲: ۲۴۵ كتاب الزكاة، باب المصرف)

﴿۲﴾ فى الهندية: وأما شرائط الوجوب منها اليسار وهو ما يتعلق به وجوب صدقة الفطر دون مايتعلق به وجوب الزكاة. (فتاوى هندية ۲: ۲۹۲ كتاب الأضحية، الباب الأول)

﴿۳﴾ قال العلامة الكاسانى رحمه الله تعالىٰ: ومنها كون المال ناميا لأن معنى الزكاة وهو النماء لا يحصل إلّا من المال النامى ...... وإنما نعنى به كون المال معدًا للاستنماء بالتجارة أو بالإسامة لأن الإسامة سبب لحصول الدر والنسل والسمن.

(بدائع الصنائع ۲: ۹۱ كتاب الزكاة)

﴿۴﴾ فى الهندية: وأما شرائط الوجوب، منها اليسار وهو مايتعلق به وجوب صدقة الفطر ...... وأمّا ما عدا ذلك من سائمة أو رقيق أو متاع لتجارة أو غيرها فإنه يعتد به من يساره ...... وببقرة واحدة غنى وبثلاثة ثيران إذا ساوى أحدهما مائتى درهم صاحب نصاب.

(فتاوى هندية ۵: ۲۹۲، ۲۹۳ كتاب الأضحية)

## په حیوان، زېوراتو او سامان باندې د قربانۍ د وجوب حکم

**سوال**: د دین عالمان او مفتیانددې مسئلې په اړه څه وایي چې د یو سړي سره نغدې روپۍ نه وي، بلکې مال لکه: غویان، ګډې، چېلۍ او څمکه ورسره وي، ایا په دې سړي باندې قرباني واجب ده او که نه؟ دغه راز که د یو سړي سره پیسې وي؛ خو دومره قرض ورباندې وي چې د سامان د قیمت نه کم وي، نو ددې به څه حکم وي؟ د قربانۍ د وجوب نصاب څومره دی؟ د نن سبا څومره روپۍ ترې جوړېږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۳۹۴ هـ / ذی الحجه / ۱/

**جواب**: زېورات، د ضرورت نه زیات مال او سامان چې کله د دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو قیمت ته ورسیږي؛ نو دا د قربانۍ د واجب کېدو پوره نصاب دی. ﴿۱﴾ که مالك یې قرض داره وي؛ نو د قرض په اندازه روپۍ چې ترې کمې کړي او بیا هم دومره پاتې شي چې قیمت یې د دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو ته رسیږي، نو بیا هم قرباني واجب ده، ﴿۲﴾ او د موجوده روپو د حساب له مخې چې یوه توله په پنځلس روپۍ حساب شي نو ۱۵ × ۵۲،۵۰ = ۷۸۷ روپۍ ترې جوړیږي ﴿۳﴾ وهو الموفق.

## کور په اصلي حاجت کې داخل دی او که نه؟

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي (۱) چې د اصلي حاجت والا شیانو په تعریف کې د اوسېدو کور شامل دی او که نه؟

---

﴿۱﴾ في الهندية: وهی واجبة علی الحر المسلم المالک لمقدار النصاب فاضلاً عن حوائجه الأصلية كذا في الإختيار شرح المختار، ولا يعتبر فيه وصف النماء ويتعلق بهذا النصاب وجوب الأضحية ووجوب نفقة الأقارب هكذا في فتاوى قاضي خان.

(فتاوى هندية ٥: ١٩١ كتاب الزكاة، الباب الثامن في صدقة الفطر)

﴿۲﴾ وفي الهندية: ولو كان عليه دين بحيث لو صرف فيه نقص نصابه لاتجب.

(فتاوى هندية ٥: ٢٩٢ كتاب الأضحية ، الباب الأول)

که داخل وي؛ نو د هر ورور تنها - تنها کور حساب دی او که یو کور؟

(۲) یو سړی د کرایه په کور کې اوسیږي، په داسې حال کې چې د خپل کور اخیستو وس لري، که دغه سړی په دې روپو باندې ځای واخلي؛ نو د نصاب نه هم خلاصیږي، او س روپی په اصلي حاجت کې مشغولي دی او که نه؟

بینوا توجروا

المستفتي: عبد الرحمن ژوب ..... ۱۹۷۴ م / نومبر / ۲۷/

**جواب** کور په اصلي حاجت کې شامل دی؛ خو د بې کوره سړي د کور قیمت د حاجت اصلي څخه خارج دی، وهو المختارُ عندَ صاحبِ البدائعِ «۱» والهداية «۲» وهو الموفق.

## د کور شیان او نیمه توله سرو زرو باندې د قرباني حکم

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې یو سړی د خپل کور مالك وي، د کور ضروري شیان هم ورسره وي، نیمه توله سره زر

«۱» في البدائع: ثم قدر الحاجة ماذكره الكرخي في مختصره فقال لا باس بأن يعطى من الزكاة من له مسكن وما يتأثث به في منزله وخادم وفرس وسلاح وثياب البدن وكتب العلم إن كان من أهله فإن كان له فضل عن ذلك مايبلغ قيمته مائتي درهم حرم عليه أخذ الصدقة لما روى عن الحسن البصري أنه قال كانوا يعطون الزكوة لمن يملك عشرة آلاف درهم من الفرس والسلاح والخادم والدار وقوله كانوا كناية عن أصحاب رسول الله ﷺ وهذا لأن هذه الأشياء من الحوائج اللازمة التي لا بد للإنسان منها فكان وجودها وعدمها سواء.
(بدائع الصنائع ۲: ۱۵۸، كتاب الزكوة، مصارف الزكوة)

«۲» في الهداية: صدقة الفطر واجبة على الحر المسلم إذا كان مالكا لمقدار النصاب فاضلا عن مسكنه وثيابه...... وقدر اليسار بنصاب لتقدر الغناء في الشرع به فاضلا عما ذكر من الأشياء لأنها مستحقة بالحاجة الأصلية والمستحق بالحاجة الأصلية كالمعدوم.
(هداية ۱: ۲۰۸ كتاب الزكوة، باب صدقة الفطر)

هم ورسره وي، ايا په داسې سړي باندې قرباني واجب ده او که نه؟ بينوا توجروا
المستفتي: قاري محمد خان مدرسه حفظ القرآن مانسهره ...... ١٣٩٦ هـ/ ذى القعدة/ ١٥/

**جواب:** واضحه دې وي چې د اوسېدو کور او د کور ضروري شيان په اصلي حاجت کې داخل دي؛ نو ځکه دا سړی شرعا مالداره نه دی، نيمه توله سرو زرو باندې څوك مالداره کېږي نه؛ نو په ياد سړي باندې صدقه فطر او قرباني نه ده واجبه (د شامي «۱» او عالمگيري نه راخيستل شوي) «۲» وهو الموفق.

## د ضرورت نه زياتي شيان چې د نصاب اندازې ته رسېږي قرباني پرې واجبه ده

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د زيد سره څلور پنځه زره روپۍ دي، په دې روپو باندې تجارت کوي او خپل بچيان پرې ساتي، ځمکه او نوره دنيا نه لري، د بکر سره بيا روپۍ نشته يوازې ځمکه ورسره ده، هغه خپله ځمکه کري او خپل بچيان ورباندې ساتي، اوس بکر زيد ته وايي چې په تا باندې صدقه فطر واجب دی، ځکه چې ته نغده سرمايه لرې! زيد ورته په جواب کې وايي: چې وروره ستا سره هم په لاس کې د پنځه زره روپو ځمکه ده، که ته هم خپله ځمکه خرڅه کړې؛ نو يو دم د پنځه زره يا شپږ زره روپو مالك جوړېږې! د اوسېدو د کور نه بغير ستا سره يو باغ هم دی چې د چارمغزو، بادامو، انارو او توتانو ونې پکښې دي او د حاجت اصلي جامو نه

«۱» قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله واليسار الخ) بأن ملك مائتى درهم أو عرضا يساويها غير مسكنه وثياب اللبس أو متاع يحتاجه إلى ان يذبح الأضحية.
(ردالمحتار ٥: ٢١٩ كتاب الأضحية)

«۲» فى الهندية: والموسر فى ظاهر الرواية من له مائتا درهم أو عشرون دينارًا أو شئ يبلغ ذلك سوى مسكنه ومتاع مسكنه ومركوبه.
(فتاوى هندية ٥: ٢٩٢ كتاب الأضحية، الباب الأول)

بغير پتلون او د كور كمبلې هم د صدقه فطر په نصاب كې حسابيږي، د كال پوره كېدل په زكات كې لازم دي، د صدقة الفطر او قرباني لپاره د موجوده مال حسابولو سره په تا باندې صدقه فطر او قرباني دواړه لازم دي؛ نو اوس تاسو مهرباني وكړئ چې په دوى دواړو كې كوم يو په حق باندې دى؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد مكرم صاحب چترالى ..... ۱۹۶۹م / ۱ / ۳۰/

**جواب**: د بكر سره د ضروري شيانو نه بغير زياتي سامان دى. لهذا په هغه باندې صدقه فطر او قرباني دواړه واجب دي. فى الخانية على هامش الهندية ۱: ۳۰۸ و لا يعتبر فيه وصف النماءِ و ما زادَ على الدارِ الواحدة والدستجات الثلثة منَ الثيابِ يعتبر فى الغنى ، وفيها بعد أسطر : وللمزارعِ ما زادَ على الثورينِ و آلة الحراثينِ و يعتبر قيمة الكرم والضيعة عندَ أبي يوسفَ و هلال رحمهما الله تعالى ، وفيها أيضاً : واذا كانَ له دارٌ لا يسكنها و يؤاجرها أوْ لا يؤاجرها يعتبرُ قيمتها فى الغنى و كذا اذا سكنها و فضلَ عنْ سكناهُ شيئٌ يعتبرُ فيهِ قيمةُ الفاضلِ فى النصابِ ويتعلقُ هذا النصابِ أحكامُ وجوب صدقة الفطرِ والأضحيةِ ﴿۱﴾ وهو الموفق .

## د قربانۍ په وجوب كې د ځمكې پيداوار شمار دى او كه قيمت؟

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قرباني واجبېدل د ځمكې په پيداوار دي او كه د ځمكې په قيمت؟ بينوا توجروا

المستفتي: شرف الدين بلوچستانى ..... ۱۹۷۶م / ۲ / ۵/

﴿۱﴾ (فتاوى خانية على هامش الهندية ۱: ۲۲۷ كتاب الصوم، فصل فى صدقة الفطر)

**جواب:** کومه ځمکه چې د استغلال لپاره وي؛ نو د هغې پیداوار معتبر دی او کومه ځمکه چې د پیداوار نه وي، لکه: یو خالي ځمکه چې د اوسېدو ور نه وي او د ضرورت نه زیاتي وي؛ نو بیا به په دیکښې د قیمت اعتبار وي، (د شامي د جزئیاتو نه راخیستل شوې) ﴿۱﴾ و هندیة ﴿۲﴾ وهو الموفق.

## کور نه لرونکي صاحب نصاب باندې د قرباني د وجوب حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د یو سړي سره د ژوند ټولې اسانتیاوې برابرې دي؛ خو یوازې د کور کمی دی، ایا په داسې سړي باندې قرباني واجب ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۳۹۶ هـ/ ذی القعده / ۲۸/

**جواب:** که د اختر په ورځو کې یو سړی د نصاب خاوند شي؛ نو په هغه باندې قرباني واجب ده، لأنّ الشرطَ هوَ كونُه فاضلاً عنِ الحوائجِ الأصليةِ لا عنْ قيمة الحاجة الأصليةِ وهو المختارُ

﴿۱﴾ فی ردالمحتار: (قوله واليسار) بأن ملك مائتى درهم أو عرض يساويها غير مسكنه وثياب اللبس أو متاع يحتاجه الى أن يذبح الأضحية، ولوله عقار يستغله فقيل تلزم لو قيمته نصابًا، وقيل لو يدخل منه قوت سنة تلزم، وقيل قوت شهر فمتى فضل نصاب تلزمه.
(ردالمحتار ۵: ۲۱۹ كتاب الأضحية)

﴿۲﴾ فی الهندية: وإن كان له عقار ومستغلات ملك اختلف المشائخ المتأخرون رحمهم الله تعالى فالزعفرانى والفقيه على الرازى إعتبرا قيمتها وأبوعلى الدقاق وغيره إعتبروا الدخل واختلفوا فيما بينهم، قال أبوعلى الدقاق إن كان يدخل له من ذلك قوت سنة فعليه الأضحية، ومنهم من قال قوت شهر ومتى فضل من ذلك قدر مائتى درهم فصاعدًا فعليه الأضحية.

(فتاوى هندية ۵: ۲۹۳ كتاب الأضحية، الباب الأول)

عندَ صاحبِ البدائعِ﴿١﴾ وغيره منَ المحققينَ خلافاً لابنِ الملكِ﴿٢﴾ فليراجعْ الى زكوة البدائعِ ، دغه راز ددې سړي لپاره سوال کول او زکات اخيستل هم حرام دي. وهوالموفق

## په کرايه کور کې اوسېدونکي صاحب نصاب باندې قرباني واجب ده

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې يو عالم په کرايه کور

﴿١﴾ قال العلامة الكاساني رحمه الله تعالىٰ: وأما الغنا الذى يحرم به أخذ الصدقة وقبولها فهو الذى تجب به صدقة الفطر والأضحية، وهو أن يملك من الأموال التى لاتجب فيها الزكاة ما يفضل عن حاجته وتبلغ قيمة الفاضل مأتى درهم من الثياب والفرش والدور والحوانيت...... فإذا فضل من ذلك ما يبلغ قيمته مائتى درهم وجب عليه صدقة الفطر والأضحية وحرم عليه أخذ الصدقة...... روى عن الحسن البصرى أنه قال: كانوا يعطون الزكاة لمن يملك عشرة آلاف درهم من الفرس والسلاح والخادم والدار، وقوله "كانوا" كناية عن أصحاب رسول الله ﷺ وهذا لأن هذه الأشياء من الحوائج اللازمة التى لابد للإنسان منها فكان وجودها وعدمها سواء.

(بدائع الصنائع ٢:١٥٨، ١٥٩ كتاب الزكاة، دفع الزكاة لمالك النصاب الخ)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن نجيم: وشرط فراغه عن حاجته الأصلية لأن المال المشغول بها كالمعدوم وفسّرها فى شرح المجمع لابن الملك بما يدفع الهلاك عن الإنسان تحقيقًا أو تقديرًا فالثانى كالدين والأول كالنفقة ودور السكنى...... فإن كان له دراهم مستحقة ليصرفها إلى تلك الحوائج صارت كالمعدومة ...... فقد صرح بأن من معه دراهم وأمسكها بنية صرفها إلى حاجته الأصلية لاتجب الزكاة إذا حال الحول وهى عنده ويخالفه ما فى معراج الدراية فى فصل زكوة العروض أن الزكاة تجب فى النقد كيفما أمسكه للنماء والنفقة.

(البحر الرائق ٢:٢٠٦ كتاب الزكاة)

کې اوسیږي، د کتابونو په لوست هم پیسې نه اخلي، د کور شیان یې هم پوره نه وي، د واده وروسته خپله خرچه د خپلې تنخا نه پوره کوي؛ نو که دی د ۷۲ توله سپینو زرو خاوند وي او کال هم ورباندې تېر شوی وي، او سمهال د ۷۱۰ روپو مالك هم وي؛ نو ایا دا سړی په شریعت کې د مالداره خلکو څخه شمارل کیږي او که نه؟ ددې لپاره چې قرباني وکړي، ددې تولو مجموعې نه زکات ورکولای شي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا مغفور الله مدرس مدرسه رستم مردان ..... ۱۳۸۹ هـ / ذی القعده / ۲۷/

**جواب:** دا سړی مالدار دی، زکات او نور واجب صدقات ورباندې واجب دي، ځکه چې دا سړی د چا قرض داره نه دی، قالَ العلامة الشامی ناقلاً عنِ البحرِ ویخالفه ما فی المعراجِ فی فصلِ زکوة العروضِ أنّ الزکوة تجبُ فی النقدِ کیفما أمسکه للنماءِ أوْ للنفقةِ و کذا فی البدائعِ فی بحثِ النماءِ التقدیری (رد المحتار ۲ : ۸) ﴿۱﴾، وفی العینی شرح الهدایة : والحاجة الأصلیةُ فی حقّ الدراهمِ والدنانیرِ أنْ یکونَ الدینُ مشغولاً بها وفی غیرهما احتیاجه الیه فی الاستعمالِ و أمرِ المعاشِ (۱: ۱۲۷۴)﴿۲﴾ وهوالموفق .

## په مقیم صاحب نصاب طالب باندې قرباني واجب ده

**سوال:** رجلٌ طالبُ العلمِ و معه ثمنٌ فاضلٌ منَ الحوائجِ الیومیة منْ ثمنِ المروجة فی هذا الزمانِ مائتی روبیة ، هلْ یجبُ علیه الأضحیةُ أمْ لا؟

وأی شیءٍ اعتبر له الحاجة الأصلیة؟ وهلْ وطنُ الاقامة له وطنٌ أمْ لا؟ وانْ سافر فی أیّامِ العیدِ ما تقولونَ فی حقه ؟ وهلْ تجبُ علیه الزکوة أمْ لا؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد خان ترکستانی ..... ۴ /ذی الحجه

﴿۱﴾ (ردالمحتار ۳:۷ کتاب الزکوة، مطلب زکوة ثمن المبیع وفاء)

﴿۲﴾ (البنایة فی شرح الهدایة ۴ : ۲۱۰ کتاب الزکوة، باب من یجوز دفع الصدقات الخ)

**جواب:** مَنْ كانَ ذا نصابٍ شرعى فاضلٍ عنِ الحاجةِ الأصليةِ بحيثُ لا يكونُ مديوناً يجبُ عليهِ الأضحيةُ و كذا الزكوة ، يدلُّ عليه ما فى البدائعِ والمعراجِ أنَّ الزكوة تجبُ فى النقدِ كيفما أمسكه للنماءِ أوْ للنفقةِ (فليراجعْ الى رد المحتارِ ۲ : ۸)﴿۱﴾ وفى العينى شرح الهداية : والحاجةُ الأصليةُ فى حقِّ الدراهمِ والدنانيرِ أنْ يكونَ الدينُ مشغولاً بها وفى غيرهما احتياجه اليه فى الاستعمالِ و أمرِ المعاشِ ۱ : ۱۲۷۴،﴿۲﴾، نعم! اذا كانَ مسافراً لا تجبُ عليهِ الأضحيةُ بخلافِ الزكوةِ لما فى الدرالمختار فتجبُ الأضحيةُ على حرٍّ مسلمٍ مقيمٍ بمصر أوْ قريةٍ﴿۳﴾وفيه أيضاً : شرط افتراضها (الزكوة) عقلٌ وبلوغٌ واسلامٌ وحريةٌ ﴿۴﴾، فالطالبُ ما دامَ مقيماً تجبُ عليهِ الأضحيةُ بشرطِ النصابِ الشرعى فاذا سافرَ سقطَ عنهُ الأضحيةُ ، قالَ فى الهندية ۵: ۳۲۴: ومنها الاقامة فلا تجبُ على المسافرِ ولا تشترطُ الاقامةُ فى جميعِ الوقتِ حتى لوْ كانَ مسافراً فى أوّلِ الوقتِ ثمّ أقامَ فى آخره تجبُ عليهِ ولوْ كانَ مقيماً فى أوّلِ الوقتِ ثمّ سافرَ ثمّ أقامَ تجبُ عليهِ ، هذا اذا سافرَ قبلَ أنْ يشترى الأضحيةَ فانِ اشترى شاةً للأضحيةِ ثمّ سافرَ ذكرَ فى المنتقى لهُ أنْ يبيعها و لا يضحى بها و كذا روى عنْ محمدٍ رحمه الله أنّه يبيعها ، انتهى ما فى الهندية﴿۵﴾ وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار ۲:۷، كتاب الزكوة، مطلب فى زكوة ثمن المبيع وفاء)

﴿۲﴾ (البناية فى شرح الهداية ۳:۰ ۲۱ كتاب الزكوة، باب من يجوز دفع الصدقات الخ)

﴿۳﴾ (الدرالمختار ۵:۰ ۲۲ ، كتاب الأضحية)

﴿۴﴾ (الدرالمختار ۲:۳ كتاب الزكوة، قبيل مطلب الفرق بين السبب والشرط والعلة)

﴿۵﴾ (فتاوى هندية ۵:۲۹۳ كتاب الأضحية، الباب الأول فى تفسيرها الخ)

## د اصلي حاجت ډپاره ایښودل شوي روپو باندې د قرباني حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زما یو ضروري کار دی او هغه په لس زره روپۍ باندې پوره کیږي، اوس زما سره پنځه زره روپۍ شته او پنځه زره روپۍ نوري پیدا کوم. په داسې وخت کې راباندې لوی اختر راغی، ایا په ما باندې اوس ددې پنځه زره روپو په وجه قرباني واجب ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مجیب الله متعلم دار العلوم حقانیه ..... ۱۴۰۲ هـ/ذی الحجه/۲۸/

**جواب:** کہ دا حاجت قرضه پوره کوي؛ نو په تا باندې قرباني نه ده واجبه، «۱» او که دین متوقع وي؛ نو بیا قرباني درباندې وراندې واجب ده «۲» وهو الموفق.

## په (جي پي) خزانې باندې د زکات او قرباني حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د یوې کورنۍ پنځه ورونه یو ځای اوسیږي، پلار یې وفات شوی، پلار یې زمونو ته

«۱» قال العلامة الكاساني رحمه الله تعالى: ولو كان عليه دين بحيث لو صرف إليه بعض نصابه ينقص نصابه لا تجب لأن الدين يمنع وجوب الزكوة فلأن يمنع وجوب الأضحية أولى لأن الزكاة فرض والأضحية واجبة والفرض فوق الواجب.

(بدائع الصنائع ۴:۱۹۳ كتاب التضحية، شرائط الوجوب)

«۲» قال العلامة الكاساني رحمه الله تعالى: وقال الشافعي رحمه الله: يجوز دفع الزكوة إلى رجل له مال كثير ولا كسب له وهو يخاف الحاجة ويجوز له الأخذ، وهذا فاسد لأن هذا دفع الزكوة إلى الغني ولا سبيل إليه لما بينّا، وخوف حدوث الحاجة في الثاني لا يجعله فقيرًا في الحال ألا ترى أنه لا يعتبر ذلك في سقوط الوجوب حتّى تجب عليه الزكوة فكذا في جواز الأخذ. (بدائع الصنائع ۲:۱۵۹ كتاب الزكوة، دفع الزكوة لمالك نصاب يخاف الحاجة)

د کور نه بغیر نور هیڅ شی په میراث کې نه دي پرې ایښې، دري يې په حکومت کې وظیفې لري، د یوه پکښې اته زره روپۍ، د بل ورور يې شلور زره او د بل ورور يې درې زره روپۍ په جي پي خزانه کې هم دي؛ نو ایا په دې ورونو باندې قرباني واجب ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الرؤف ندیم صوابی ..... ١٤٠٥ هـ/ صفر / ١٥/

**جواب:** په جي پي خزانه باندې زکات نشته، «١» خو قرباني به کوي او بوازې حکومتي کارکوونکي به يې کوي «٢» وهو الموفق.

## بې غاښو يو کلنې ګډه او وزه په اتفاق د عالمانو صحیح ده

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زید د لوی اختر نه ١٥ ورځې وړاندې یو ګډ واخیست، خپله يې د هغې پالنه کول؛ خو تر یو کاله پورې يې دوه غاښونه پوره نه کړه، په داسې حال کې چې اوس يې د یو کال نه زیات وخت واړولو؛ نو ایا په دې باندې قرباني کېږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد نور الحسن سیالکوټ ښار ..... ١٩٧٢ م/ ١٢/ ١٦/

---

«١» في امداد الفتاوی: فقهي روایتونو ته په کتو سره دا معلومېږي چې په دې خزانچي ذخیره باندې د تېرو ورځو زکات واجب نه دی.
(امداد الفتاوی ٢: ٣٨ کتاب الزکاة، فصل در تحقیق وجوب یا عدم وجوب زکواة بر پراویډنټ فنډ)

وقال المفتي رشید أحمد رحمه الله تعالى: دیاد تفصیل نه معلومېږي چې په (پراویډنټ) خزانه کې روپۍ د کاریګر ملکیت دی، مخکې له دې چې وصول شوې نه وي زکات پرې نشته او هغه څه چې پرې اخلې يې ټول حلال دي، د سود تعریف وربانديې نه صادقېږي. (احسن الفتاوی ٧: ٥٠ پراویډنټ فنډ پر زکوة اور سود کا حکم، باب الربا)

«٢» وفي مجمع الانهر: هي واجبة.....وانما تجب على حر مسلم مقيم موسر عن نفسه. (مجمع الانهر ٤: ١٦٦ كتاب الاضحية)

**جواب:** ګډ او وزه چې د يو کال شي په اتفاق د عالمانو او د امت په اجماع سره قرباني وربانډې کيږي. (صرحَ به في جميعِ معتبرات الفقهِ)﴿١﴾وهو الموفق.

## د لنډو چېلیو او د یو کال نه کم عمر والا چېلیو د قربانی حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایې چې د یو کال نه شل ورځې کم یوه چېلۍ ده. ایا په دې بانډې قرباني کیږي او که نه؟ او په لنډو چېلیو د قربانۍ څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: صوبیدار محمد لطیف راولپنډی ...... ١٣٩٧ هـ / ذی القعده / ٢٩/

**جواب:** د یو کال نه کم ګډ یا چېلي بانډې قرباني نه کیږي. اګر که په جسم کې د کال والا چېلۍ نه ډنګه دریږي، د پوره کال والا بانډې قرباني کیږي اګر که په جسم کې لنډه دریږي ﴿٢﴾ وهو الموفق.

---

﴿١﴾ في الهندية: وأماسنه فلا يجوز شيئ ممّا ذكرنا من الإبل والبقر والغنم عن الأضحية إلا الثنى من كل جنس...... والثنى (من الغنم) ابن سنة.

(فتاوىٰ هندية ٥:٢٩٧، كتاب الأضحية، الباب الخامس)

وفي الدرالمختار: وصحّ الثنيّ فصاعدًا من الثلاثة والثنيّ هو ابن خمس من الإبل وحولين من البقر وحول من الشاة والمعز. (الدرالمختار ٥:٢٢٦ كتاب الأضحية)

﴿٢،٣﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وصحّ الجذع ذوستة أشهر كذا في الهداية وفسّره في شرح الملتقى شرعًا بما أتى عليه أكثر الحول عند الأكثر...... (من الضأن) هو ماله إلية منح، قيد به لأنه لا يجوز الجذع من المعز وغيره بلا خلاف كما في المبسوط قهستاني. (ردالمحتار)

وقال العلامة الحصكفي: وصحّ الثنى فصاعدًا من الثلاثة والثنى هو ابن ......حول من الشاة والمعز. (الدرالمختار مع ردالمحتار ٥:٢٢٦ كتاب الأضحية) باتي حاشيه په بل مخ بانډې

## د شپږو میاشتو ګډ (ګډه) باندې د قربانۍ لپاره چاغښت ضروري دی

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د شپږو میاشتو د ګډ قرباني څنګه ده؟ ځینې خلك وایي چې د داسې ګډ قرباني جائز ده؛ خو چې سم لمور وي، ایا د دوی دا خبره صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا عبد القدوس ساهیوال

**جواب:** د شپږو میاشتو ګډ باندې قرباني کیږي، لمور کېدل پکښې احترازي قید نه دی؛ خو دومره ده چې چاق به خامخا وي، یدلُّ علیهِ کتبُ الفقهیة ﴿۱﴾ وفی رد المحتارِ ۲: ۲۵ : والضأنُ ما کانَ منْ ذواتِ الصوفِ والمعزُ منْ ذواتِ الشعرِ قهستانی ﴿۲﴾ قلتُ: فما فی شرحِ الوقایة وغیره هو

(بقیه حاشیه) وفی الاختیار: ویجزئ فیها ما یجزئ فی الهدی وهو الثنی من الکل وهو من الغنم ماله سنة...... ولا یجوز الجذع من الإبل والبقر والمعز.

(الإختیار لتعلیل المختار ۵: ۲۳ کتاب الأضحیة)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم رحمه الله تعالی: (وجاز الثنی من الکل والجذع من الضأن)...... وقال علیه الصلوٰة والسلام نعمت الأضحیة من الضأن...... وقالوا هذا إذا کان الجذع عظیمًا بحیث لو خلط بالثنیات لا یشتبه علی الناظرین والجذع من الضأن ما تمت له ستة أشهر عند الفقهاء. (البحر الرائق ۸: ۱۷۷ کتاب الأضحیة)

وفی الخانیة: ولا یجوز أجذعان إلا الجذع العظیم من الضأن وهو عند الفقهاء الذی أتی علیه أکثر لسنة ستة أشهر وشیئ من الشهر السابع فیجوز إذا کان عظیمًا سمینا بحیث لو رآه إنسان یحسبه ثنیا.

(فتاوی خانیة علی هامش الهندیة ۳: ۳۴۸ کتاب الأضحیة، فصل فی مایجوز من الضحایا وما لایجوز)

﴿۲﴾ (ردالمحتار ۲: ۲۰ باب زکاة البقر)

ماله الية ﴿١﴾ فتعريفٌ بالخاص كما اذا قيلَ المرأة من لها ثديانِ وهوالموفق.

## د اصلي غاښ او شيدو غاښ فرق اعتبار نه لري

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که د قربانۍ د حيوان اصلي غاښ نه وي ښکاره شوی، بلکې د شيدو په غاښ باندې خپله خوراکه کوي، عمر يې تر دوه کالو لږ ورزيات شوی هم دی، خلك وايي: چې دې شيدو والا غاښ نه غاښ نه ويل کيږي او نه هم ددې په کېدو سره حيوان (غوا، مېښه او غويی) بلوغ ته رسيږي، لکه: پرون يو سړي پوښتنه وکړه چې يوه غوا يو نيم کال عمر لري، خو تر اوسه پورې يې پوخ غاښ نه دی ښکاره شوی؛ نو قرباني ورباندې کيږي او که نه؟ نو ما ورته په نفي سره ځواب ورکړ؛ نو د شريعت له مخې عمر ته اعتبار دی او که پوخ غاښ ته؟ په قاضی خان او نورو کتابونو کې يې خو دوان اغتلفت بهافيجوز، الفاظ ليکلي، نو په همدې قانون که يو حيوان د دوه کالو وي او د شيدو غاښ يې وي او په هغه باندې خوراك هم کولای شي، قرباني ورباندې جائز ده. ځکه چې دغه حيوان خو د دوه کالو نه غټ عمر لري او دغه غاښ يې د خوراك برداشت هم کولای شي.

**خلاصه:** دا چې که يو حيوان د دوه کالو وي؛ خو خوراك په شيدو والا غاښ باندې کوي او پوخ غاښ يې نه وي ښکاره شوی، ايا ددې قرباني جائز ده او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: قيس نعماني رسالپور نوښار ...... ١٣٨٨ هـ / ذی القعده / ٣٠/

**جواب:** د اصلي او شيدو والا غاښ تر منځ فرق کول دا د پښتنو مسئله ده، په کتاب کې ددې هيڅ ياد نشته، ځکه چې ټولو فقهاؤ د ثنی تشريح داسې کړې ده: ثنی هو ابنُ خمسٍ ... من الابلِ وحولينِ منَ البقرِ والجاموسِ وحولٍ منَ الشاةِ والمعز ﴿٢﴾ هيڅ چا هم د پوخ غاښ اعتبار نه دی کړی، دغه راز

﴿١﴾ (شرح الوقاية ٤: ٣٠ كتاب الأضحية)

﴿٢﴾ (الدر المختار ٥: ٢٢٦ كتاب الأضحية)...... پاتې حاشيه په بل مخ باندې

که د پوخ غابښ اعتبار وکړل شي؛ نو یوه غوا چې د دوه کالو وي او دوه پاخه غابښونه یې ښکاره شوي وي، پکار ده چې قرباني یې صحیح نه شي، ځکه چې ددې دوه غابښونو په موجودګۍ کې ددې غوا زیاتره غابښونه خو نشته او د اغتلاف لپاره دا پوره نه دي. فافهمْ وتدبرْ.

## د کم عمر والا حیوان قرباني نه صحیح کیږي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د قرباني لپاره په شریعت کې کوم عمرونه ټاکل شوي دي؛ نو ایا که د هغو نه یوه لحظه هم کمه وي؛ نو قرباني پرې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الرحمن صاحب

**جواب** په عمر کې هیڅ کموالی نه منل کیږي، (هندیة ﴿۱﴾ وغیره)﴿۲﴾ وهو الموفق.

---

(بقیه حاشیه) وفي الهندية: وأما سنه فلا يجوز شيئ مما ذكرنا من الإبل والبقر والغنم عن الأضحية إلا الثني من كل جنس...... والثني من الغنم ابن سنة ومن البقر ابن سنتين ومن الإبل ابن خمس.

(فتاوى هندية٥:٢٩٧، كتاب الأضحية، الباب الخامس في بيان محل إقامة الواجب)

﴿١﴾ في الهندية: وأما سنه فلايجوز شيئ مما ذكرنا من الإبل والبقر والغنم عن الأضحية الا الثني من كل جنس...... والثني من الغنم ابن سنة والثني من البقر ابن سنتين ومن الإبل ابن خمس وتقدير هذه الأسنان بما قلنا يمنع النقصان و لا يمنع الزيادة.

(هندية٥:٢٩٧ كتاب الأضحية، الباب الخامس في بيان محل إقامة الواجب)

﴿٢﴾ في الهداية: ويجزئ من ذلك كله الثني فصاعدًا الا الضأن فإن الجذع منه يجزئ لقوله عليه السلام ضحوا بالثنايا إلا أن يعسر على احدكم فليذبح الجذع من الضأن...... والثني منها ومن المعز ابن سنة ومن البقر ابن سنتين ومن الإبل ابن خمس سنين.

(هداية ٣: ٤٤٩، كتاب الأضحية)

## بې وجې د قربانۍ بدلول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که د قربانۍ څناور ښه چاغ، ښايسته او تازه وي، د قربانۍ نه منع کوونکې يو عيب هم پکښې نه وي؛ نو ايا ددې خرڅول او په بدل کې يې بل حيوان اخيستل جائز دي او که ناجائز؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد عبد الرحيم عزيز موضع مولی پور ضلع ملتان ..... ۱۹۶۹م/ ۳/۱۹/

**جواب:** جائز دي خو سره له کراهته. (خانيه)﴿۱﴾ وهو الموفق.

## د نورو په کښت کې څريدونکي حيواناتو قرباني صحيح ده

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د يو بزګر غوا ده، تړي يې نه بلکې هر وخت د نورو په کښت باندې څرېږي، د لوی اختر په ورځ بزګر دغه قرباني کولای شي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد عبد الرحيم عزيز موضع مولی پور ضلع ملتان..... ۱۹۶۹م/ ۳/۱۹/

---

﴿۱﴾ فی الخانية: إذا اشترى شاة ينوی بها الأضحية ...... ففی ظاهر الرواية لا تصير أضحيةً مالم يوجبها بلسانه ،وعن ابی يوسف عن ابی حنيفة رحمهما الله تعالى أنها تصير أضحية بمجرد النية كما لو اوجبها بلسانه و به أخذ أبو يوسف رحمه الله تعالى و بعض المتاخرين ،و عن محمد رحمه الله تعالى فی المنتقى إذا اشترى شاة ليضحی بها و اضمر نية التضحية عند الشراء تصير اضحية كما نوى ...... و لو باعها يجوز بيعها فی قول ابی حنيفة و محمد رحمه الله تعالى إلا أنه يكره.

(فتاوی خانية على هامش الهندية ۳:۳۴۶،۳۴۷ ،كتاب الأضحية)

**جواب**: تر اوسه پورې یې مالك معلوم دی؛ نو په قرباني کولو یې هیڅ اعتراض نشته ﴿١﴾ وهو الموفق.

## د زیات یا نیم اندام د نه موجودېدو په وخت د حیوان د قرباني حکم

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې که د یو حیوان زیات یا نیم غوږ نه وي چې د اورېدو کار ترې نه شي اخیستی؛ نو د داسې حیوان قرباني څه حکم لري؟ **بینوا توجروا**

المستفتي: مولانا مغفور الله مدرس مدرسه رستم مردان ..... ١٣٧٩ هـ/ ذی القعده/ ٢٧/

**جواب**: صحیح او مفتی به قول دا دی چې که د یو حیوان زیات یا نیم اندام نه وي؛ نو د داسې حیوان قرباني نه صحیح کیږي، که اندام یې وي؛ نو بیا صحیح کیږي ﴿٢﴾ وهو الموفق .

---

﴿١﴾ وفی الولوالجیة: لأنه لم یکن تصحیح الأضحیة عنه إلّا بالبات الملک فی الشاة.

(فتاوی الولوالجیة ٣: ٧٣ الفصل الثالث فیما تجوز الأضحیة عنه)

﴿٢﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالیٰ: کما حلّ اکل جدی غذی بلبن خنزیر، لأن لحمه لا یتغیر، وما غذی به یصیر مستهلکا لا یبقیٰ له أثر.

(الدر المختار ٥: ٢٣٠ کتاب الحظر والإباحة)

وقال العلامة المفتی محمود حسن رحمه الله تعالیٰ: ددې سرې دا کار حرام دی چې خپله غوا دبل په کبنت کې بې اجازې څروي، خوددې وجې دده غوا نه حرامیږي بلکې قرباني یې صحیح ده. (فتاوی محمودیه ١٧: ٣٩٢ باب مایکون عیأفي الاضحیة ومالا)

﴿٣﴾ قال العلامة شیخی زاده رحمه الله تعالیٰ: وفی القهستانی: أن کل عیب مانع لها إن کان اکثر من النصف لا یجوز بالإجماع وإن کان أقل منه یجوز بالإجماع.

(مجمع الأنهر ٤: ١٧٢ کتاب الأضحیة)...... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

**حامله (بلارب) حیوان خرڅول او په بدل کې یې کم قیمته حیوان اخیستل**

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زید یو حامله (بلارب) حیوان واخیست، هغه یې بېرته په اوه سوه (۷۰۰) روپۍ خرڅ کړ، په بدل کې یې ورباندې بل حیوان په (۵۰۰) روپۍ واخیست، دوه سوه روپۍ ورته زیاتي پاتي شوې؛ نو ددې قرباني کول څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: حفظ الرحمن کوهاټ..... ۱۳۹۶ هـ / ذی الحجه /۲/

**جواب:** دوه سوه روپۍ دې صدقه کړيْ ﴿۱﴾ وهو الموفق .

**د اختر نه مخکې د ناروغ حیوان د قربانۍ حکم**

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زید غریب او عمر مالدار دی، دواړو ځان - ځان ته قرباني واخیستلې، وروسته دواړه

(بقيه حاشيه) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: واختلف أصحابنا في الفاصل بين القليل والكثير، فعن أبي حنيفة أربع روايات..... والرابعة هي قولهما قال في الهداية: وقالا: إذا بقي الأكثر من النصف أجزاه وهو اختيار الفقيه أبي الليث ..... وفي غاية البيان ووجه الرواية الرابعة وهي قولهما وإليه رجع الإمام أن الكثير من كل شيئ أكثره، وفي النصف تعارض الجانبان آه أي فقال بعدم الجواز احتياطًا بدائع، وبه ظهر أن ما في المتن كالهداية والكنز والملتقى هو الرابعة وعليها الفتوى.

(ردالمحتار ۵: ۲۲۸،۲۲۷ كتاب الأضحية)

﴿۱﴾ في الهندية: رجل اشترى شاةً للأضحية وأوجبها بلسانه ثم اشترى أخرى جاز له بيع الأولى في قول أبي حنيفة ومحمد رحمهما الله تعالى وإن كانت الثانية شرًا من الأولى وذبح الثانية فإنه يتصدق بفضل ما بين القيمتين.

(فتاوىٰ هندية ۵: ۲۹۴ كتاب الأضحية، الباب الثاني)

ناروغه شو، ايا اوس نوى حيوان ځان ته واخلي او كه همدا صحيح دى؟ كه مسئله دا وي چې موږ نوى واخلو؛ نو د اوسنيو حيواناتو سره بيا څه وکړو؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الحميد لدها ډى آى خان / ذى الحجه/

**جواب**: دا حيوانات خو د اختر نه وړاندې اخيستل شوي دي، خرڅول يې اسانه دي، كما هومفهوم التتارخانية ﴿١﴾.

دغه راز دا حيوانات په ظاهره کې د عيب نه خالي دي؛ نو خرڅول يې هم ضروري نه دي، که دواړو نوي حيوانات اخيستلي وي؛ نو که نذر منل شوى وي او يا هم سړى غريب وي بيا به دواړه حيوانات ذبح کوي او که نذر نه وي منل شوى يا غربت نه وي بيا د يو حيوان ذبح کول هم کافي دي ﴿٢﴾ وهو الموفق.

## د حامله (بلارب) حيوان قرباني او د خرڅولو حکم يې

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که يو سړى دلوى اختر دقربانۍ لپاره سره له دې چې په حمل يې پوه شي، غوا، ګډه يا چيلۍ

﴿١﴾ قال العلامة الشامى رحمه الله تعالى: ووقع فى التتار خانية التعبير بقوله شراها لها أيام النحر وظاهره أنه لو شرها لها قبلها لا تجب ولم أره صريحًا.

(ردالمحتار ٥: ٢٢٦ كتاب الأضحية)

﴿٢﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: ولو اشتراها سليمة ثم تعيبت بعيب مانع فعليه إقامة غيرها مقامها إن كان غنيًا، وإن كان فقيرًا أجزأه ذلك...... وكذ لو ماتت فعلى الغنى غيرها لا الفقير، ولو ضلّت أوسرقت فشرى أخرى فظهرت فعلى الغنى إحداهما وعلى الفقير كلاهما.

(الدرالمختار ٥: ٢٢٩ كتاب الأضحية).

واخلي، یا یې د ذبح په وخت حمل معلوم شي، ایا دا قرباني جائز ده او که ناجائز؟ ځینې مولوي صاحبان وایي: ددې په نس (خېټه) کې چې کوم حیوان وي هغه هم په قربانۍ کې شمار دی، ایا د دوی دا خبره څه حقیقت لري او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۹۷۶ هـ / ۹ / ۷/

**جواب**: د حامله (بلارب) حیوان قرباني او اخیستل خرڅول یې دواړه روا دي، لعدم ورود المنع في الروايات الحديثية ولا الفقهية و لا جنس محل اقامة الواجب الغنم والابل والبقر وهو مطلق﴿۱﴾ولأنّ الحملَ ليسَ بعيبٍ.﴿۲﴾وهوالموفق

## د څناور خصي کول او د قربانۍ حکم یې

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې (۱) ، (۲) یو سړي د قربانۍ لپاره ځان ته یو حیوان وساتلو بیا یې هغه خصي کړ او خصیتین (خوټې) یې ترې وویستل، که ددې قرباني جائز نه وي؛ نو دا سړی به بل حیوان اخلي او که له بل چا سره شریك شي؛ نو بیا څه حکم لري؟

(۳) دا دول خصي کول ظلم او گناه ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد زاهد توپی مردان ..... ۱۹۷۹ م / جولائی / ۱۷/

﴿۱﴾ وفى خلاصة الفتاوى: رجل له شاة حامل أراد ذبحها إن تقاربت الولادة يكره الذبح عند أبى حنيفة رحمه الله تعالى.

(خلاصة الفتاوى ۳:۷-۳ كتاب الذبائح، الفصل الأول)

﴿۲﴾ وفى الهندية: اما جنسه فهو أن يكون من الأجناس الثلاثة الغنم أو الإبل أو البقر ويدخل فى كل جنس نوعه والذكر والأنثى منه والخصى والفحل لانطلاق إسم الجنس على ذلك.

(فتاوى هندية۵:۲۹۷ كتاب الأضحية، الباب الخامس فى بيان محل إقامة الواجب)

**جواب**: (۱)، (۲) د خصي حیوان قرباني صحیح ده. (ابوداؤد «۱» وشامی) «۲».

(۳) جائز ده، لمصلحة طیب اللحم «۳» وهو الموفق.

## د خصي حیوان قرباني صحیح کیږي

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې ایا د خصي حیوان قرباني صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: شیرین بادشاه ضلع پشاور ډاکخانه پوره ..... ۱۳۹۶ هـ / ذی الحجه / ۲۸/

**جواب**: خصي هغه حیوان ته ویل کیږي چې خصیتین (خوټي) یې ویستل شوي وي، کما صرّح به محشی أبي

---

«۱» عن جابر بن عبد الله رضی الله تعالیٰ عنه: قال ذبح النبی ﷺ یوم الذبح کبشین أقرنین أملحین موجوئین.

(سنن أبی داؤد ۲: ۳۸۶ کتاب الضحایا، باب ما یستحب من الضحایا)

«۲» قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: مشی ابن وهبان علی أنّ الذکر فی الضأن والمعز أفضل لکنّه مقید بما إذا کان موجوءًا أی مرضوض الأنثیین أی مدقوقهما.

(ردالمحتار ۶: ۲۲۷ کتاب الأضحیة)

«۳» وفی تکملة البحر: (وخصی البهائم) یعنی یجوز لأنّه علیه الصّلوٰة والسّلام ضحّٰی بکبشین أملحین موجوأین والموجوء هو الخصی ولأن لحمه یطیب به.

(تکملة البحر الرائق ۸: ۲۰۴ کتاب الأضحیة)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: (قوله وجاز خصاء البهائم وقیدوه) أی جواز خصاء البهائم بالمنفعة وهی إسرادة سمنها أو منعها عن العض.

(ردالمحتار ۶: ۲۷۵ کتاب الحظر والإباحة، فصل فی البیع)

داؤد﴿۱﴾ویشیرُ الیهِ کلامُ البدائعِ ۵: ۵۰: والموجوئتینِ مدقوق الخصــيتينِ وقیلَ هو الخصی کذا روی عنْ أبي حنیفةَ رحمه اللّٰه تعالٰی أنه سئلَ عنهُ عــنِ التضحیة بالخصی ؟فقالَ ما زادَ فی لحمه أنفعُ مما ذهبَ منْ خصیتیهِ فافهمْ﴿۲﴾ وهوالموفق.

## د بنکر ماتي حیوان د قربانۍ حکم

**سوال:** د دیــن عالمـان او مفتیـان ددې مسئلې پـه اړه څـه وایـي چې مـا د قربانۍ لپاره ځان ته یو چېلۍ واخیست، د ببخ ته لږ پورته یې یو ښکر مات شوی ؤ، اندازتاً درې اینچه ښکر نور هم پاتې دی، نور کوم تاوان یې په چیلي کې نه دی راوستی، یوازې دا چې په ښایست کې یې لږ فرق راغلی دی، ایا ددې حیوان قرباني صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: فعل خان پنډی ..... ۱۹۸۴م / اکست / ۲۱/

**جواب:** ددې چیلي قرباني صحیح ده، ځکه چې ددې ښکر ماتېدل هیڅ نقصاني نه دي؛ خو که ښکر په ببخ کې داسې مات شوی وي چې د مغز هډوکي ته یې تاوان رسولی وي بیا نقصان رسوي.(کما فی أضاحی البدائع )﴿۳﴾وهوالموفق.

﴿۱﴾علی حاشیة أبی داؤد: قوله موجوئین آه قال الخطابی الموجوء منزوع الأنثیین والموجاء الخصاء وفیه جواز الخصی فی الأضحیة وقد کرهه بعض أهل العلم لنقص العضو لکن لیس هذا عیبًا لأن الخصاء یفید اللحم طیبًا وینفی عنه الزهومة وسوء الرائحة.
(هامش سنن أبی داؤد ۲: ۳۸۶، حاشیه:۷ ،باب مایستحب من الضحایا)

﴿۲﴾(بدائع الصنائع ۴: ۲۲۳ باب مایستحب من الأضحیة)

﴿۳﴾فی البدائع :وروی أن رجلا من همدان جاء إلی سیدنا علیّ رضی اللّٰه تعالٰی عنه فقال یا أمیر المؤمنین البقرة عن کم؟ قال عن سبعة، ثم قال مکسورة القرن؟ قال لا ضیر..... فإن بلغ الکسر المشاش لا تجزیه، والمشاش رؤس العظام مثل الرکبتین والمرفقین.
(بدائع الصنائع ۴: ۲۱۶، کتاب التضحیة)

## د هډوکي د روغوالي پروخت د ښکر ماتي حيوان د قرباني حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د يوې چيلۍ ښکر مات دی، نه کوم زخم شته او نه هم د زخم اوبه، بلکې روغ رمټ دی، په داسې حال کې چې د چيلي عمر د يو کال نه زيات دی، ايا د داسې چيلي قرباني جائز ده او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: حافظ محمد يعقوب کوئټه ..... ١٩٧٥ م / مارچ / ١٥/

**جواب:** داسې چيلۍ چې ښکر يې مات وي او د مغز هډوکي ته تاوان نه ورکوي، قرباني يې جائز ده (بدائع کتاب الأضحية) ﴿١﴾ وهو الموفق.

## د قربانۍ د حيوان ښکرونه نه کېدل او يا يې هم زياتره برخه ماتېدل

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې ما د قربانۍ لپاره ځان ته يو ګډ واخيست، کله چې مي کور ته راورسولو؛ نو راته معلومه شوه چې د يو ښکر درې برخي يې نشته، يوازې يوه برخه ښکر يې پاتې دی، ايا اوس په دې باندې قرباني کيږي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: شير اسلم دره بازار کوهاټ ..... ١٣٩٧ هـ / شوال/ ٢٢/

**جواب:** د ښکر نه کېدل قربانۍ ته هيڅ تاوان نه رسوي، په دې شرط چې مغزو ته يې کوم زيان نه وي اړولی، كما في رد المحتار ٥: ٤١٢ : ويضحى بالجماء هي التي لا قرنَ لها خلقةً وكذا لعظماء اللتي ذهبَ بعض قرنها بالكسر أوْغيره فانْ بلغَ الكسرَ الى

---

﴿١﴾ في البدائع: وروى أن رجلًا من همدان جاء إلى سيّدنا عليّ رضى الله تعالى عنه فقال يا امير المؤمنين البقرة عن كم؟ قال عن سبعة، ثم قال مكسورة القرن؟ قال لا ضير..... فإن بلغ الكسر المشاش لا تجزيه، والمشاش رؤس العظام مثل الركبتين والمرفقين.

(بدائع الصنائع ٤:٦٢، ٢ كتاب التضحية)

المخ لم یجزْ قهستانی ، وفی البدائعِ : انْ بلغَ الکسرَ المشاشَ لا یجزی والمشاشُ رؤسُ العظامِ مثل الرکبتینِ والمرفقینِ«۱». انتهی قلتُ : وهو محمل ما ورد منَ النهی«۲»وهوالموفق .

## د گوډ حیوان د قربانۍ مسئله

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یو حیوان داسې گوډ دی چې دشتني ته د ونبو لپاره خپله ځي، ددې قرباني جائز ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: رحیم الله اضاخیل بالا ..... ۱۹۷۵م/ ۱۱/ ۱۰/

**جواب:** ستاسو درانه حضور ته السلام علیکم! مسئله دا ده که په دې حیوان کې بل عیب نه وي، بلکې یوازې د گوډ والي دا لږ عیب وي؛ نو دا قرباني نه منع کوي، یعنې قرباني یې جائز ده، یدل علیه ما فی الدر المختارِ وغیره ، والعرجاء التی لا تمشی الی المنسك انتهی قلتُ : وهذا الحیوانُ المسؤل عنها لیسَ کذلك«۳»وهوالموفق .

---

«۱» (ردالمحتار ۵:۲۲۷ کتاب الأضحیة)

«۲» فی سنن أبی داؤد: نهی رسول الله ﷺ عن المصفرة والمستاصلة..... والمستاصلة التی یستاصل قرنها من أصله.

(سنن أبی داؤد ۲:۳۸۷ باب مایکره من الضحایا)

«۳» (الدرالمختار ۵:۲۲۷ کتاب الأضحیة)

وفی المرقاة: عن البراء بن عازب رضی الله تعالی عنه ان رسول الله ﷺ سئل ما ذا یتقی من الضحایا ؟ فأشار بیده فقال أربعًا العرجاء البین ظلعها بسکون اللام ویفتح ای عرجها وهو ان یمنعها المشی. (مرقاة المفاتیح ۳:۳۱۰،۳۱۱ باب فی الأضحیة)

## د ګډې د کوناټي وروسته وروکې لکۍ د کوناټي جزء دی

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د ګډې د کوناټي وروسته وړه غونډې لکۍ ده، که هغه کاټ شي؛ نو قرباني ورباندې کیږي او که نه؟ د لکۍ حکم خو معلوم دی لیکن مشکل دا دی چې د لکۍ ځان ته اعتبار دی او که د کوناټي سره د لکۍ یو حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا مفتي محمد سردار دار العلوم عربیه تل هنګو ..... ١٩٨٦م/ ٦/ ٨/

**جواب:** دا لکۍ د کوناټي جزء دی، ځکه چې له ده سره متصل دی «١» وهو الموفق.

## کمزوری حیوان خرڅول او قوي ورباندې اخیستل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې که د قربانۍ حیوان یو څه کمزوری وي او هغه خرڅ کړي، په بدل کې یې بل قیمتي حیوان واخیستل شي؛ نو قرباني څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد عبد الرحیم کبیر والا ضلع ملتان ..... ١٩٦٩م/ ٣/ ١٩/

**جواب:** جائز ده خو سره له کراهته (خانیه) «٢» وهو الموفق.

---

«١» قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله ولا التی لا إلیة لها خلقة) الشاة إذا لم یکن لها اذن ولا ذنب قال محمد لایکون هذا ولو کان لایجوز وذکر فی الأصل عن ابی حنیفة انه یجوز خانیة، ثم قال: وإن کان لها إلیة صغیرة مثل الذنب خلقة جاز أما علی قول ابی حنیفة فظاهر لأنّ عنده لو لم یکن لها اذن أصلًا ولا إلیة جاز، وأما علی قول محمّد صغیرة الأذنین جائزة وإن لم یکن لها إلیة ولا اذن خلقة لا یجوز.

(ردالمحتار ٥: ٢٢٨ کتاب الأضحیة)

«٢» فی الخانیة: إذا اشتری شاة ینوی بها الأضحیة..... عن ابی یوسف عن ابی حنیفة رحمهما الله تعالی أنها تصیر اضحیة بمجرد النیة ...... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

## د اوښ په قرباني کې د اوه (۷) کسانو نه زیات کسان شریکېدل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د اوښ په قرباني کې د اوه (۷) نه زیات کسان شریکېدای شي او که نه؟ که زیات کسان شریکېدای شي ؛ نو د کوم کتاب حواله هم راته ولیکئ؛ بینوا توجروا
المستفتي: مولوي غوث الرحمن حید آباد سندھ...... ۱۹۶۹ م / ۲/۱۶/

**جواب:** په اوښ کې د اوه کسانو څخه زیات کسان نه شي شریکېدلای، فی الهندیة ٥: ۳۳۰: لا يجوزُ بعيرٌ واحدٌ ولا بقرةٌ واحدةٌ عنْ أكثرَ منْ سبعةٍ ويجوزُ ذلك عنْ سبعةٍ وّ أقلّ منْ ذلك﴿۱﴾وهوالموفق.

---

(بقيه حاشيه) كما لو اوجبها بلسانه وبه أخذ ابويوسف رحمه الله تعالى وبعض المتأخرين، وعن محمد رحمه الله تعالى في المنتقى إذا اشترى شاةً ليضحي بها واضمر نية التضحية عند الشراء تصير أضحية كما لوى...... ولو باعها يجوز بيعها في قول ابى حنيفة ومحمد رحمهما الله تعالى إلا أنه يكره.

(فتاوى خانية على هامش الهندية ۳: ۳۴۶، ۳۴۷، كتاب الأضحية)

﴿۱﴾ (فتاوى هندية ٥: ۲۹۷ كتاب الأضحية، الباب الخامس)

وقال العلامة طاهر بن عبد الرشيد رحمه الله تعالى: والبعير والبقر تجزئ عن سبعة...... والتقدير بالسبع يمنع الزيادة ولا يمنع النقصان حتّٰى لو كانت الشركاء فى البدنة والبقرة ثمانية لم يجزهم.

(خلاصة الفتاوى ٤: ۳۱٥، كتاب الأضحية، الفصل الرابع فى ما يجوز من الأضحية الخ)

## د پلار او زوی په شریکي کار کې قرباني په چا واجب ده؟

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زید د بچیانو پلار دی، کور ته ګټه زامن او پلار یو ځای په شریکه راوړي، په دې صورت کې په پلار او زامنو یوه قرباني واجب ده او که هر یو به ځان - ځان ته قرباني کوي؟ بینوا توجروا

المستفتي: ګل هاشم

**جواب:** که بچیانو د پلار سره دا فیصله کړې وي چې تجارت او ګټه به شریکي وي؛ نو په دې صورت کې په بالغو هلکانو هم قرباني واجب ده.﴿۱﴾ که نه نو یوازې په پلار به قرباني واجب وي ، یدلُّ علیه ما فی رد المحتار : الأبُ وابنه یکتسبانِ فی صنعةٍ واحدةٍ ولَم یکنْ لهما شیءٌ فالکسبُ کله للأبِ انْ کانَ الابنُ فی عیاله لکونه معیناً له (۳: ۳۸۳)﴿۲﴾ وهوالموفق.

## د ورونو په شریکي ګټه کې قرباني په چا واجبه ده؟

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې مونږ په کور کې څلور کسان یو ، زمونږ ټولو سره چې څومره شریك مال دی هغه اندازاً شپږ زره (۶۰۰۰) روپۍ جوړیږي، پوره کال د کښت ته هم ګټه ترلاسه کوو او د پوره کال خرچې هم له دغو روپو څخه کوو، کله چې کښې د ورونو غم - ښادي راشي هغه هم ترې پوره کوو، مطلبي خبره دا ده چې ددې ورونو په دې شریك کار او شریکي ژوند له امله په لوی اختر کې قرباني واجب ده او که نه؟ که قرباني واجب وي؛ نو ایا هر ورور به مو ځان ته قرباني کوي او که ټول به په

---

﴿۱﴾ فی البدائع: ولوکانت الفضة مشترکة بین اثنین فإن کان یبلغ نصیب کل واحد منهما مقدار النصاب تجب الزکاة وإلّا فلا، ویعتبر فی حال الشرکة مایعتبر فی حال الانفراد.

(بدائع الصنائع ۲: ۱۰۱ کتاب الزکاة، فصل فی الأثمان المطلقة)

﴿۲﴾ (ردالمحتار ۳: ۳۸۳ کتاب الشرکة، فصل فی الشرکة الفاسدة)

شریکه یوه قرباني کوو؟ بینوا توجروا

المستفتي: حبیب الرحمن متعلم دار العلوم تعلیم القرآن راولپنډی ..... ۱۹۷۷م/ ۱۰/ ۱۹/

**جواب:** دا ټول شریك ورونه دي د خپل کور د ضروري شیانو نه بغیر، حیوانات، کور او نور شیان په پیسو کې شمار کړي او بیا دي په څلورو کسانو تقسیم کړي، که هر ورور ته د ۱۵ روپۍ في توله سپین زرو په حساب ۷۸۷،۵۰ = ۱۵ × ۵۲،۵۰ روپۍ ترې جوړې شي؛ نو په هر بالغ باندې قرباني واجب ده، ﴿۱﴾ که دومره اندازه روپۍ هر یوه ته نه رسیږي بیا په یو ورور هم قرباني نه کیږي وهوالموفق.

## د اوه کسانو شراکت په دوه غواګانو کې

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې اوه کسانو د قربانۍ لپاره په شریکه دوه غواګانې واخیستلې، ددې څه حکم دی؟ ځینې عوام خلك وایي چې په دوه حیواناتو کې شریکې قرباني نه کیږي، که کیږي نو د غوښې د تقسیمولو طریقه څه ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: حاجي رحمت الله ..... ۱۹۷۲م/ ۱/ ۲۰/

**جواب:** په یاد صورت کې د هر یو سړي برخه د ۱/۷ ځخه کمه نه ده؛ نو قرباني هم جائز ده، ﴿۲﴾

---

﴿۱﴾ فی الهندیة: ولا یجوز دفع الزکاة إلی من یملك نصابًا أیّ مال کان دنانیر أو دراهم أو سائم أو عروضًا للتجارة أو لغیر التجارة فاضلًا عن حاجته فی جمیع السنة.
(فتاوی هندیة ۱: ۱۸۹ باب المصارف)

وفی البدائع: ویعتبر فی حال الشرکة ما یعتبر فی حال الانفراد.
(بدائع الصنائع ۲: ۱۰۱ کتاب الزکوٰة فصل فی الأثمان المطلقة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: شاة بالرفع بدل من ضمیر تجب أوفاعله (أو سبع بدنة)...... ولو لأحدهم أقل من سبع لم یجز عن أحد وتجزی عما دون سبعة بالأولی. (درمختار)

وقال العلامة الطحطاوی رحمه الله تعالی: (قوله وتجزی عما دون سبعة) أی بشرط أن یکون لکل سبع أو أکثر حلبی. (طحطاوی علی الدر ۴: ۱۶۱ کتاب الأضحیة)

هره غوا به اوه - اوه برخي تقسیم کړي، په داسې صورت کې چې د هر یو اوه برخې به جوړي کړي. وهوالموفق

## د غوا اخیستلو وروسته نور کسان شریکول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یو سړی د قرباني لپاره ځان ته غوا واخلي او د اختر په ورځ له ځانه سره نور کسان هم په همدې غوا باندې د قرباني لپاره شریکان کړي، د غوا قیمت معلوم کړي او د شریکانو نه روپۍ واخلي، ایا دا قرباني جائز ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي محمد یوسف مقام عربي بانډه ضلع مردان پیرآباد .....

۱۹۶۹م / ۲ / ۴/

**جواب:** که دې سړي د غوا د اخیستلو پر مهال دا اراده کړې وي چې زه به مثلا شپږ کسان له ځانه سره شریکوم؛ نو بې شکه قرباني یې جائز ده، که دا اراده یې د اول سره نه وي کړې؛ نو قرباني یې جائز ده؛ خو سره له کراهته. (رد المحتار ۵: ۲۷۶) ﴿۱﴾ وهوالموفق

## په کورني معلوم څناور کې د قرباني لپاره نور کسان شریکول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د یو سړي سره په کور کې د قرباني لپاره څناور وي او هغه له ځانه سره نور کسان شریکان کړي او قرباني وکړي، ایا د دوی قرباني کیږي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي محمد یوسف مقام عربي بانډه ضلع مردان پیرآباد .....

۱۹۶۹م / ۲ / ۴/

**جواب:** لکه څرنګه چې اخیستل شوی څناور د یو چا ملکیت وي؛ نو کورني څناور هم د چا ملکیت دی، لکه څرنګه چې په لومړي حیوان کې شراکت جائز دی

﴿۱﴾ في ردالمحتار: وفي الهداية والأحسن أن يفعل ذلک قبل الشراء ليکون أبعد عن الخلاف وعن صورة الرجوع في القربة وفي الخانية ولو لم ينو عند الشراء ثم أشرکهم فقد کرهه أبوحنيفة رحمه الله تعالى. (ردالمحتار ۵: ۲۲۳ کتاب الأضحية)

د غه راز په دې بل حيوان کې هم شراکت جائز دی، که د شراکت اراده د تعين نه وړاندې وي بيا خو بې کراهته جائز دی، که اول يې د خپلې قربانۍ لپاره متعين کړی وي؛ خو وروسته نور شريکان پيدا کړي بيا د مالداره او غريب دواړو لپاره جائز دي خو سره له کراهته.《۱》وهو الموفق

## په لوی حيوان کې د اوه کسانو نه کم کسان شريکان کېدل

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قربانۍ په لوی حيوان کې د اوو (۷) نه کم شپږ، پنځه يا څلور کسان شريک شي؛ نو ايا قرباني يې کيږي او که نه؟ په جواب کې بې د کتابونو حوالې ولیکئ! بينوا توجروا

المستفتي: مولوي غلام قادر تحصيل مانسهره ...... ۱۹۷۰ م/ ۴/ ۲۲/

**جواب**: که د اومې برخې نه د چا پکښې کمه برخه نه وي؛ نو جائز دي، قالَ فی البدائع: ولا شك فی جواز بدنةٍ أوْ بقرةٍ عنْ أقلَّ منْ سبعةٍ بأنْ اشترك اثنان أوْ ثلاثة أوْ أربعة أو خمسة أو ستة فی بدنة أوْ بقرة لأنه لمّا جازَ السّبْعُ فالزيادةُ أولى و سواءٌ اتفقت الأنصباءُ فی القدرِ أوْ اختلفَ بأنْ يكونَ لأحدهمْ النصفُ و للآخر الثلث وللآخر السدسُ بعدَ انْ لا ينقصَ عنِ السبْعِ (۵: ۷۱)《۲》 و بمعناهُ فی تكملة البحر ۸:۱۷۴ كتابُ الأضحية《۳》وهو الموفق .

《۱》فی الهندية: والبقر والبعير يجزئ عن سبعة ...... و لو اشترى بقرة يريد أن يضحی بها ثم أشرك فيها ستة يكره و يجزيهم ...... إلا أن يريد حين اشتراها أن يشركهم فيهافلا يكره. (فتاوىٰ هندية۵: ۳۰۲ كتاب الأضحية، الباب الثامن)

و فی شرح الوقاية: وصحّ اشتراک ستة فی بقرة مشترية لأضحية استحساناً......

وجه الاستحسان أنه قد يجد بقرة سمينة ولا يجد الشركاء وقت البيع فالحاجة ماسة إلى هذا وذاقبل الشراء أحب، ذا إشارة إلى الاشتراک وعن ابی حنيفة يكره الاشتراک بعد الشراء. (شرح الوقاية ۴: ۳۷ كتاب الأضحية)

《۲》(بدائع الصنائع ۴: ۲۰۷ كتاب التضحية، محل إقامة الواجب)

《۳》وفی تكملة البحر: قوله شاة أو سبع بدنة...... پاتې حاشيه په بل مخ باندې

## په معاون زوی باندې د قربانۍ حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیانددې مسئلې په اړه څه وایي چې زما زوی زما کار او تجارت پرمخ وړي، هغه ته مې د کار ټول اختیارات په لاس کې ورکړي دي، تر دې چې هغه د حج سپېڅلې فریضه هم په خپله خوښه ادا کړې ده، ایا هغه یوازې قرباني کولای شي؟ بینوا توجروا

المستفتي: سید محمد بلوچستان ..... ۱۳۹۷ هـ / ذی الحجه/۷/

**جواب:** که ستا زوی ستا معاون وي او شریك دې نه وي؛ نو په هغه باندې قرباني واجب نه ده.﴿۱﴾، ﴿۲﴾ وهو الموفق.

## اومه برخه د ټولو ورونو له طرفه او د نورو شریکانو د قربانۍ حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زید او د هغه دوه حقیقي ورونه د پلار په پاتې میراث کې سره شریك دي، په دوی کې زید مشر دی او هر کال د قربانۍ په حیوان کې اومه برخه کې شراکت اخلي او دده دا فکر دی چې د ټولو ورونو له طرفه زه قرباني کوم. نور ورونه او خویندې هم

---

(بقیه حاشیه) بیان للقدر الواجب ..... وتجوز عن ستة أو خمسة أو أربعة أو ثلاثة ذكره في الأصل لأنه لما جاز عن سبعة فما دونها أولى ولا يجوز عن ثمانية.

(تكملة البحر الرائق٨: ١٧٣، كتاب الأضحية)

﴿١﴾ في ردالمحتار: الأب وابنه يكتسبان في صنعة واحدة لم يكن لهما شيء فالكسب كله للأب إن كان الابن في عياله لكونه معيناً له.

(ردالمحتار ٣: ٣٨٣ كتاب الشركة، فصل في الشركة الفاسدة)

﴿٢﴾ في الهداية: الأضحية واجبة على كل حرّ مسلم مقيم موسر في يوم الأضحى عن نفسه. (الهداية ٣: ٤٤٣ كتاب الأضحية)

دا فکر کوي چې زموږ ټولو نه دا یوه قرباني صحیح کیږي، ایا د شریعت له مخې ددې ټولو ورونو له طرفه اومه برخه کې قرباني کیږي او که نه؟ یا دا چې د چا په نوم کیږي د هغه له طرفه کیږي او که نه؟ یا دا چې د یوه له طرفه هم نه صحیح کیږي؟ په داسې حال کې چې زموږ دنیا اوس هم شریکې ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: قیس نعماني رسالپور نوشهره..... ۱۳۸۸ هـ / ذی القعده / ۳۰/

**جواب:** که دا اومه برخه د یو ورور وي؛ نو دده او د نورو شریکانو قرباني جائز شوه، که په اومه برخه کې ټول ورونه شریك وي؛ نو بیا د یو کس قرباني هم نه صحیح کیږي، نه د ورونو او نه هم د نورو شریکانو ،فی الدر المختار: لوْ لأحدهمْ أقل منْ سبعٍ لمْ یجزْ عنْ أحدٍ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## په کورني حیوان کې نور کسان شریکول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د زید سره په کور کې یو حیوان دی چې په هغې کې دوی د خپل کور نه شپږ کسان په قربانۍ کې شریکان دي، د مال قیمت یې وټاکلو او له ځانه سره یې اوم کس هم شریك کړ، ایا دا قرباني جائز ده؟ که د جواز بل صورت وي؛ نو مهرباني وکړئ هغه راته ولیکئ؛ ځکه چې زموږ د ځای ځینې عالمان وایي چې جائز ده او ځینې وایي چې ناجائز ده. بینوا توجروا

المستفتي: مولوي عبد المتین هزاره ..... ۱۳۸۹ هـ / ذی الحجة / ۳/

**جواب:** که په کورني حیوان کې د کور شپږ کسان شریك شي؛ نو بې شکه جائز ده،

﴿۱﴾ (الدر المختار ۵: ۲۲۲، کتاب الأضحیة)

وفی البزازیة: اشتری بقرة لها لم اشرک ستًا جاز استحسانًا إن أصاب كلًا سبع تامٌ وإن أصاب أحدهم أقل من سبع لا یصح.

(فتاوی بزازیه ۲: ۲۹۰ کتاب الأضحیة، الرابع فیما یجوز من الأضحیة)

په کتابونو کې یې نظیر هم شته، فقهاؤ لیکلي دي: وصحّ اشتراكُ ستة في بدنةٍ شريتْ للأضحية أي إنْ نوى وقتَ الشراءِ الاشتراكَ «١» لکه څرنګه چې اخیستل شوی حیوان مملوك دی او سره له دې هم نور کسان شریکول جائز دي؛ نو دغه راز کورنی حیوان د چا مملوك وي او په هغه کې هم شراکت په طریقه اولی جائز دی فافهم وتدبر. فقط وهو الموفق

## په شریکي مال کې د قربانۍ حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اړه څه وایي چې موږ څلور ورونه یو مال مو هم شریکي دی، اوس که د څلورو واړو مال یو ځای حساب شي؛ نو د نصاب اندازې ته رسیږي او که یوازې - یوازې حساب شي؛ نو بیا د نصاب د اندازې نه کم دی، په دې صورت کې به موږ مالدار شمېرل کیږو او که غریبان؟ بینوا توجروا

المستفتي: عمر خان بنوي

**جواب:** په دې څلورو واړو کې یو کس هم مالدار نه دی. لعدمِ صدقِ تعریفِ الغنی علی أحدٍ منهم وهو منْ يملكُ النصابَ الخ «٢» ولما في البدائعِ ٢: ٢٩: قالَ أصحابنا أنه يعتبرُ في حالِ الشركة مايعتبرُ في حالِ الانفرادِ هو كمالُ النصابِ في حقِّ كل واحد

---

«١» (الدر المختار ٥: ٢٢٣ كتاب الأضحية)

وفي الهندية: ولو اشترى بقرة يريد أن يضحى بها لم اشرك فيها ستة يكره ويجزيهم لأنه بمنزلة سبع شياه حكمًا إلّا أن يريد حين اشتراها أن يشركهم فيها فلا يكره.

(فتاوى هندية ٥: ٣٠٤ كتاب الأضحية، الباب الثامن فيما يتعلق بالشركة في الضحايا)

«٢» وفي الهندية: والموسر في ظاهر الرواية من له مائتا درهم أو عشرون دينارًا أو شئ يبلغ ذلك سوى مسكنه ومتاع مسكنه ومركوبه وخادمه في حاجته التي لا يستغني عنها.

(فتاوى هندية ٥: ٢٩٢ كتاب الأضحية، الباب الأول)

منهمافانْ كانَ نصيبُ كلّ واحدٍ منهمايلغ نصاباً تجبُ الزكوة والا فلا ﴿١﴾ فافهمْ.

## د پلار په قرباني د مالداره زامنو غاړه نه خلاصيږي

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې موږ شپږ وروڼه یو او ټول بالغ يو، د الله فضل دی مور او پلار مو دواړه ژوندي دي، ځلورو وروڼو پکښې واده کړی دی او دوه جره ګان (بې واده) دي، موږ د خپل مور او پلار سره یو ځای په خوشحالۍ وخت تېروو، کومه ګټه چې ترلاسه کیږي په شریکه يې کور کې خرچه کوو، اوس د قرباني مسئله مخې ته راغلې ده، تر اوسه پورې مو پلار ته یوه قرباني کول؛ خو زموږ د ځای ځينې عالمانو موږ ته وويل چې تاسو ټول وروڼه ماشاء الله خپل کار لرئ؛ نو ستاسو لپاره یوه قرباني نه ده جائز، بلکې تاسو هر ورور به ځان - ځان ته قرباني کوئ! دا راته بيان کړئ چې اوس موږ يوازې - يوازې قرباني وکړو او که هماغه یوه قرباني پوره ده؟ بينوا توجروا

المستفتي: جناب مير حسن صاحب طوطالی د صوابی په لاره

**جواب:** ستا د ليك له مخې ستاسو په هر ورور ځان - ځان ته قرباني واجب ده، ځکه چې مال مو د ټولو وروڼو تر منځ شريکي دی، د فرضي تقسيم وروسته هر ورور مو د نصاب مالك جوړيږي، ټولو فقهاؤ ليکلي دي: چې د نصاب په څښتن قرباني واجب ده،" ﴿٢﴾ د عربي عبارتونو ذکر کولو ته هيڅ ضرورت نشته. بې شکه که دا ټول مال تاسو يا ستاسو پلار ته د تمليك په نيت ورکړل شي: نو بيا يوازې په تا يا ستا په پلار باندې قرباني واجب ده: خو

﴿١﴾ وفى بدائع الصنائع: ولو كانت الفضة مشتركة بين اثنين فان كان يبلغ نصيب كل واحد منهما مقدار النصاب تجب الزكاة وإلّا فلا ويعتبر في حال الشركة ما يعتبر في حال الانفراد. (بدائع الصنائع ٢: ١٠١ كتاب الزكوة، فصل في الأثمان المطلقة)

﴿٢﴾ في الهداية: الأضحية واجبة على كل حرّ مسلم مقيم موسر في يوم الأضحى عن نفسه. (الهداية ٤: ٤٤٣، كتاب الأضحية)

ستاسو معامله داسې نه ده ﴿۱﴾ وهوالموفق.

## په شریکې ورونو کې د یو ورور په قربانۍ سره د نورو ورونو غاړه نه خلاصیږي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې په یو کور کې درې ځلور ورونه ژوند تېروي، مور او پلار یې وفات شوي دي، د دوی سره دومره مال شته چې که ورونه سره جدا شي او مال تقسیم کړي؛ نو په هر ورور باندې یې د غني اطلاق کیږي. اوس که یو ورور قرباني وکړې؛ نو د نورو ورونو غاړه یې خلاصیږي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي نامعلوم ..... ۱۹۸۷م / ۹ / ۹/

**جواب:** په یاد صورت کې ټولو ورونو باندې قرباني واجب ده. ﴿۲﴾ په دوی کې که یو ورور د مور او یا هم پلار له خوا قرباني وکړي؛ نو ده ته هیڅ تاوان نه کوي. ﴿۳﴾ که چیرې په ۷/۱ برخه کې یو ورور حصه واخلي او نور ورونه یې ورسره په دغه یوه برخه کې شریکان وي؛ نو د یوه غاړه هم نه خلاصیږي ﴿۴﴾ وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامة الكاساني: ولو كانت الفضة مشتركة بين اثنين، فإن كان يبلغ نصيب كلّ واحد منهما مقدار النصاب تجب الزكاة وإلّا فلا، ويعتبر في حال الشركة ما يعتبر في حال الانفراد. (بدائع الصنائع ۲: ۱۰۱، كتاب الزكوة، فصل في الأثمان المطلقة)

﴿۲﴾ وفي الهداية: الأضحية واجبة على كل حرّ مسلم مقيم موسر في يوم الأضحى عن نفسه. (الهداية ۴: ۴۴۳ كتاب الأضحية)

﴿۳﴾ في ردالمحتار: (قوله وعن ميت) أي لو ضحى عن ميت وارثه..... وإن تبرع بها عنه له الأكل لأنه يقع على ملك الذابح والثواب للميت. (ردالمحتار ۵: ۲۳۶، كتاب الأضحية)

﴿۴﴾ في الهداية: وكذا إذا كان نصيب أحدهم..... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

## کټه پلار ته ورکولو په صورت کې په زامنو د قربانۍ مسئله

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې مونږ څلور وروڼه یو، د خدای جل جلاله فضل دی مور او پلار مو هم ژوندي دي او د دوی له برکته ټول وروڼه یو ځای د ژوند شپې او ورځې تېروو، مونږ څلورو وروڼو ودونه کړي او خپل کار مو شته، دوه مشران وروڼه مو تنخا لري، درېیم ورور مو دکانداري کوي او کښت کري، او تر ټولو وړوکی ورور مو د حکومت وظیفه ترسره کوي، مونږ ټول وروڼه چې کوم مال ګټو هغه خپل مشر ورور ته ورکوو، مونږ ټول د خپل پلار په خوښه کار کوو، یعنې پوره اختیارمند نه یو؛ خو که کله د خپل مشر ورور یا پلار په بې خبرۍ ځان ته څه واخلو؛ نو هغه راته څه نه وايي، د کال په پوره کېدو سره د خپل مال حساب کتاب شمار کړو، څومره زکات چې په مونږ باندې کېږي هغه ترې وباسو؛ خو دا چې ذخیره مو همېش د پلار سره وي؛ نو قرباني یوه کوو، پروسږ کال راته د کلي ځینو عالمانو وویل: چې ستاسو هر ورور د ځان ته کاروبار او نصاب مالك دی، ستاسو په هر ورور باندې قرباني واجب ده، مونږ ته اوس فکر پیدا شوی داسې نه چې په شرعي کار کې راته تاوان پېښ شي او مونږ به بې خبره پاتې یو، اوس تاسو مهرباني وکړئ او د شرعي مسئلې نه مو خبر کړئ!
بینوا توجروا

المستفتي میر حسن طوطالئ، د صوابی په لاره..... ١٣٨٩ هـ/ محرم الحرام / ٢/

(بقیه حاشیه) أقل من السبع لا یجوز عن الکل لانعدام وصف القربة فی البعض.

(هدایة ٤: ٤٤٥، کتاب الأضحیة)

**جواب**: که تاسو تول وروڼه د تمليک په نيت پلار ته زيورات او روپۍ ورکوئ، ستاسو سره د رعايت په توګه پرتې وي. په دې صورت کې په تاسو باندې قرباني واجب نه ده، که تاسو پلار ته يوازې د ساتلو په نيت روپۍ ورکوئ او يا هم ددې لپاره چې د وخت سره سم په کور باندې مصرف وکړي بيا په تاسو ټولو باندې قرباني واجب ده، ﴿۱﴾او په عرف باندې د نظر کولو وروسته معلوميږي چې دويم قول معتبر دی، لهذا په تاسو ټولو باندې قرباني واجب ده ﴿۲﴾ وهوالموفق.

## د يو کور شريکي قرباني د غوښې بې تقسيمه خوړل

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که د يو کور خلك په شريکه يوه غوا يا بل حيوان واخلي، د دوی قرباني څه حکم لري؟ او د هغې غوښې خوړل څه حکم لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: عيسى خان وزيرستانی متعلم دار العلوم حقانيه کمره ۳۵ ..... ۱۹۸۴ م / اګست /۱۸/

﴿۱﴾ قال العلامة شيخی زاده رحمه الله تعالیٰ:هی واجبة...... وانما تجب علی حرّمسلم مقيم موسر لأن العبادة لاتجب إلا علی القادر وهو الغنی دون الفقير.

(مجمع الأنهر ۱۲۷:۱۴، کتاب الأضحية)

﴿۲﴾ قال العلامة عزيز الرحمٰن: سوال: ديوسړي دوه زامن دي چې په تول کال کې دوه درې سوه روپۍ مزدوري کوي، پلار ته يې ورکوي اودکور اصلي مالك پلار دي، آيا په دې هلکانو زکات، صدقه فطر او قرباني واجب ده او که په پلار باندې د دوی له طرف واجب ده؟ جـواب: پـه دغـو هلکانوزکات، صدقه فطر اوقرباني واجب ده. (فتاوی دارالعلوم ديوبند ۲: ۳۱۰، ۳۱۱ مسائل صدقه فطر)

وقال العلامة الكاسانی: ولو كانت الفضة مشتركة بين اثنين فإن كان يبلغ نصيب كل واحد منهما مقدار النصاب تجب الزكاة وإلا فلا، ويعتبر فی حال الشركة ما يعتبر فی حال الانفراد. (بدائع الصنائع ۲: ۱۰۱ كتاب الزكوٰة، فصل فی الألمان المطلقة)

**جواب:** د برخو تاکلو بغیر شریکي غوښه د اجازت او اباحت وروسته خوړل جائز دي ﴿١﴾ وهو الموفق.

## د قرباني په حیوان کې مالک شریکول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې سږ کال مې د خپل کور د قرباني لپاره یو حیوان واخیست او موږ شپږ کسان پکښې شریکان شو، اوس ما ته څه شك پیدا شوی چې:

(١) زه د خپل حیوان بائع شوم او که مشتري؟

(٢) د ذبح وروسته دا حیوان زما په ملکیت کې دی او که زما له ملکیته وځي؟

(٣) زما د قرباني اخیستل څنګه صحیح کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: ماستر نور رحمن تخت بهائي مردان ..... ١٩٧٢م/ ٣/ ١٤/

**جواب:** (١) ته په دې حیوان کې د ٧/٦ برخې اخیستونکی یې، د شریکي مال اخیستل په اتفاق د عالمانو جائز ده، کما صرحوا به﴿٢﴾ وکذا یقتضیه صحةُ الشفعة عندَ بیعِ المشاع ﴿٣﴾.

﴿١﴾ قال العلامة الشامي رحمه الله تعالى: (قوله ويقسم اللحم) انظر هل هذه القسمة متعينة أو لا، حتى لو اشترى لنفسه ولزوجه وأولاده الكبار بدنة ولم يقسموها تجزيهم أو لا، والظاهر أنها لا تشترط لأن المقصود منها الإراقة وقد حصلت. (ردالمحتار ٥:٢٢٣، كتاب الأضحية)

﴿٢﴾ في شرح المجلة: يصح بيع الحصة المعلومة الشائعة بدون إذن الشريك.
(شرح المجلة للأتاسي ٢:١٠٨، الباب الثاني في بيان المسائل المتعلقة بالمبيع)

﴿٣﴾ في الهندية: سئل علي بن أحمد عمن اشترى نصيبًا معلومًا من أرض مشتركة بين جماعة بعضهم حضور وبعضهم غيب اشترى نصيب الحضور هل للشفيع الجار أن يأخذ من المشتري ما اشترى مع غيبة الشريك؟ فقال نعم له أن يأخذ ذلك.
(فتاوى هندية ٥:٢٠٣، قبيل كتاب القسمة)

(۲) ستا د ملکیت نه ۷/۶ برخه ووته. او ۷/۱ باقي ده.

(۳) ددې بیع په جواز کې هیڅ شك نشته. خو کوم مالدار سړی چې د قربانۍ په نیت حیوان واخلي؛ نو د هغه لپاره ۷/۶ خرڅول (شراکت) قیاساً ناجائز او استحسانا جائز دی. «۱» لکونها قرباة بعد الشراء بخلاف ما هناك فافهم. فقط

**یادونه**: دا چې صریحي جزئیه ونه موندل شوه، د قواعدو په رڼا کې ستاسو مسئله حل شوه. وهوالموفق

## پلار ته د بخشش یا امانت په توګه د ګټې ورکولو په صورت کې بچیانو د قربانۍ مسئله

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د پلار او زامنو ګټه جدا - جدا ده، زامن هم ټولې روپۍ پلار ته ورکوي؛ نو اوس به قرباني پلار ته کیږي او که په هر زوی بې ځان - ځان ته کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: ګل هاشم ...... ۱۹۷۴م / ۷ / ۲۵/

**جواب**: که بچیان د بخشش په توګه پلار ته خپله ګټه ورکوي؛ نو په زامنو بې قرباني واجب ده، که د امانت په توګه یې ورکوي؛ نو که مالداروي په ټولو زامنو یې قرباني واجب ده «۲» وهوالموفق.

---

«۱» فی مجمع الأنهر: ولو شری بدنة للأضحية ثم أشرك فيها ستة جاز استحسانًا وفی القياس لا يجوز وهو قول زفر ورواية عن الإمام لأنه أعدها للقربة فلا يجوز بيعها...... وروی عن الإمام كراهة الاشتراک بعده. (مجمع الأنهر ۲: ۱۶۹ كتاب الأضحية)

«۲» قال العلامة شيخی زاده رحمه الله تعالى: (وإنما تجب على حر مسلم مقيم موسر) لأن العبادة لا تجب إلّا على القادر وهو الغنی دون الفقير ومقدار ما تجب فيه صدقة الفطر. (مجمع الأنهر ۲: ۱۶۶، ۱۶۷، كتاب الأضحية)

وفی السراجية: وإنما تجب على الغنی المسلم المقيم ذكرًا كان او انثى وحد الغنی ما ذكرنا فی باب صدقة الفطر.

(فتاوی سراجية ۳۸۳، كتاب الأضاحی، باب وجوب التضحية)

## د شريکو ورونو کور ته اېښودل شوي خرڅې باندې د قربانۍ حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د يو سړي سره اته زره (۸۰۰۰) روپۍ دي، کال ورباندې تېر شو او د کور خرڅه هم له دغو روپو څخه پوره کوي، په کور کې نور ورونه هم شريکان لري، ايا په ده او ورونو يې قرباني واجب ده او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: حافظ عمر بلال متعلم دار العلوم حقانيه هذا ..... ١٩٨٥م/ ٧ / ١٦/

**جواب:** هغه دراهم چې د کور په مصرف کې لګيږي، قرباني او زکات ورباندې نه واجبيږي، ونظيره ما فى رد المحتار ٢: ٨٨: سئل محمدٌ رحمه الله عمنْ له أرضٌ يزرعها أوْ حانوتٌ يستغلها أوْ غلتها ثلاث آلاف ولا تكفي لنفقته ونفقة عياله سنة؟ يحلُ له أخذ الزكوة وان كانتْ قيمتها تبْلغُ ألوفاً وعليه الفتوى﴿١﴾انتهى ، وقلتُ : وأخذ الزكوة و وجوب الأضحية منْ باب واحدٍ كما صرحوا به﴿٢﴾وهوالموفق .

## بې اجازې د يو شريک لپاره زياته برخه پاکل

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې موږ شپږ کسانو په شريکه قرباني کړې وه او غوښه مو هر يو ته پوره - پوره ورکړې وه؛ خو يو کس پکښې د غوښې اخيستلو نه انکار وکړ، بلکې دويمه ورځ راغلو او غوښه يې ټوله مرداري وبالې ته وغورځوله. ايا ددې شپږو کسانو قرباني جائز شوه او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد آياز راولپنډی ..... ١٩٨٥م/ ١٠ / ٢٢/

---

﴿١﴾ (ردالمحتار ٢: ٤٧، كتاب الزكوة، قبيل مطلب فى جهاز المرأة هل تصيربها غنية)

﴿٢﴾ قال العلامة الكاسانى رحمه الله تعالیٰ: وأما الغنا الذى يحرم به أخذ الصدقة وقبولها فهو الذى تجب به صدقة الفطر والأضحية.

(بدائع الصنائع ٢: ١٥٨، كتاب الزكوة، فصل مصارف الزكاة)

**جواب**: دا قرباني صحيح ده، په دوی کې د یوه برخه ۷/۱ څخه کمه نه ده؛ خو که د یو شریك بې خوښي هغه ته زیاته برخه تاکل شوې وي بیا د یوه قرباني هم نه صحیح کیږي، د ټولو غاړه بنده ده. ﴿۱﴾ والله أعلم

## په اخیستل شوي یا کورني حیوان کې د مالك شراکت منع نه دی

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یو سړي د شپږو کسانو لپاره د قربانۍ حیوان واخیست، او مه برخه مالك د ځان لپاره شمار کړه، ایا ددې مالك شراکت منع دی او که نه؟ دا جائز شراکت دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: متعلم دار العلوم حقانیه ... ۱۹۷۴م / ۴ / ۸ /

**جواب**: واضحه دې وي لکه څرنګه چې اخیستل شوی حیوان د چا ملکیت وي، دغه راز په کور کې ساتل شوی حیوان هم د چا ملکیت ی. په اخیستل شوي حیوان کې شراکت جائز دی دغه راز د کور ساتل شوي حیوان کې هم شراکت جائز دی، لعدمِ المانعِ وهو الاِعداد للقربةِ وصورة الرجوعِ عنِ القربة كما أشارَ اليهِ صاحبُ الهدايةِ ۴: ۴۴۵: فلما جاز الاِشتراك فى المشتراة المعدة للقربة جازَفى المولودة اللتى لم تعدَّ للقربةِ﴿۲﴾ نعم فيه بيعُ المشاعِ أى ستة

---

﴿۱﴾ فى الهداية: تجوز عن خمسة او ستة او ثلاثة ذكره محمّد فى الأصل لأنه لمّا جاز عن سبعة فعمّن دونهم اولى ولا تجوز عن ثمانية أخذا بالقياس فيما لا نصّ فيه وكذا إذا كان نصيب احدهم اقل من السبع لايجوز عن الكل لانعدام وصف القربة فى البعض.
(هداية ۴: ۴۴۴، كتاب الأضحية)

﴿۲﴾ فى الهداية: ولو اشترى بقرة يريد أن يضحّى بها عن نفسه ثم اشرک فيها ستّة معه جاز استحسانًا وفى القياس لا يجوز وهو قول زفر لأنّه اعدّها للقربة فيمنع عن بيعها تموّلًا.
(هداية ۴: ۴۴۵، كتاب الأضحية)

أسهامٍ ولا ضيرَ فيهِ وفاقاً ﴿۱﴾ ولَمْ أجدهُ صريحاً . وهوالموفق

**په کورني حيوان کې د دوه ډلو تر منځ د اختلاف په اړه پوښتنه**

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي (۱) چې يو سړى د غوا مالك دى، دى خپلو نورو شپږو شريكانو ته وايي چې تاسو زما نه دا غوا په ۷/۶ پيسو كې واخلئ؛ په اومه برخه كې به زه خپله شريك شم، په دې اړه اوس عالمان په خپل منځ كې سره مختلف دي: ځينې وايي چې جائز دي قياساً على الشركة بعد الشراءِ الى الذبحِ استحساناً كما فى الهندية او د ځينو نورو په نزد بيا قرباني ناجائز ده، ځكه چې په ديكښې اجتماع البدلين (ثمن او مبيع) دواړه په يو ملك كې جمع كيږي، ولا أصلَ لها فى الشرعِ كما فى شرحِ الياس.

(۲) دويم دا چې په ديكښې جهالت د مبيعې راځي، ځكه چې اومه برخه د بې تقسيمه شي په حالت د ژوند كې مجهوله وي، په يو حالت كې يو سړى هم بائع دى او هم مشتري دى، لهذا په داسې څواب مو ونازوئ چې د كتابونو نه دلائل پكښې راخيستل شوي وي. بينوا توجروا

المستفتي: خطيب فضل ودود فاضل دار العلوم حقانيه صوابى ...... ۱۹۹۲م/۱/۲۹

**جواب:** دا شراكت د قياس او استحسان دواړو له مخې جائز دى، لعدم تضمنه بيع ما تعلق به القربة بخلاف ما اذا اشتراهُ للأضحية ثُمَّ يشترك فيهِ ستاً مثلاً فانه جائزٌ استحساناً دونَ القياس لتعلق القربة به ﴿۲﴾ په هر حال ددې بې علمه دجوماتونو اخوندانو اختلاف دى

﴿۱﴾ فى شرح المجلة: بيع حصة شائعة معلومة كالنصف والثلث والعشر من عقار مملوك قبل الإفراز صحيح...... عقار ليس قيداً احترازياً فإن المنقول كدابة ومتاع مثل العقار فى ذلك الحكم. (شرح المجلة ۲:۱۰۷، المادة: ۲۱۴)

﴿۲﴾ فى الهداية: ولو اشترى بقرة يريد أن يضحّي بها عن نفسه ثم اشرك فيها ستة معه جاز استحساناً وفى القياس لا يجوز وهو قول زفر لأنّه أعدها للقربة فيمنع عن بيعها تموّلاً. (هداية ۲:۴۴۵، كتاب الأضحية)

د احنافو فقهاؤ تر منځ هیڅ اختلاف نشته

**یادونه**: شریکي بیع صحیح ده او د یوې عضو استثناء نه ده صحیح. شرح المجلة م ۴۱۴، ۱۰۳ :﴿۱﴾؛ م: ۲۱۹ ۱۰۶، ﴿۲﴾فلیراجع وهوالموفق.

## د یو شریک د وفات په صورت کې د وارثانو هغه ته د قربانی کولو حکم

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې که د قربانۍ په اوه شریکانو کې یو شریک مړ شي او د هغه زامن پاتې شي، دومره مال ورسره وي چې د ټولو ورونو مجموعه مال د نصاب اندازې ته رسیږي او که د هر یو بېل- بېل حساب وشي بیا د نصاب اندازې ته نه رسیږي، هر زوی یې د خپل مال پوره اختیار مند وي او د پلار د وصیت نه بغیر یې زوی قرباني کولای شي او که نه؟ که ورسره شریکیږي؛ نو د قربانۍ کوونکو تعداد تر اوه کسانو زیاتیږي. یا که نورو ورونو یو ورور ته د قربانۍ لپاره شریکي مال ورکړی وي بیا قرباني کولای شي او که نه؟ دغه راز د شریکي مال څخه هبه جائز ده او که نه؟ ځکه چې ټول ورونه په یو سرې باندې شمار دي او د ورونو نه هر یو فرد واحد هم ګڼل کیږي، دا پېښه د قربانۍ اخیستو نه وړاندې شوې. بینوا توجروا

المستفتي: نذیر احمد معلم دینیات بونیر ...... ۱۹۷۴ م / دسمبر / ۲۵/

---

﴿۱﴾ فی شرح المجلة: بیع حصة شایعة معلومة کالنصف والثلث والعشر من عقار مملوک قبل الإفراز صحیح...... عقار لیس قیدًا احترازیًا فإنّ المنقول کدابّة ومتاع مثل العقار فی ذلک الحکم. (شرح المجلة ۲:۱۰۷، المادة:۲۱۴)

﴿۲﴾ فی شرح المجلة: کلّما جاز بیعه منفردًا جاز استثناؤه من البیع...... ولو استثنی منه مالًا یجوز إفراده بالعقد لا یصح استثناؤه کما لو باع جاریة إلّا حملها أو شاة إلّا عضوًا منها لم یجز. (شرح المجلة ۲:۱۲۳، المادة: ۲۲۰)

**جواب**: په یاد صورت کې که بالغ بچیان د پلار له خوا قرباني کوي او نورو شریکانو ته د ذبح اجازه هم ورکوي: نو په دیکښې به هیڅ ګناه نه وي، د تولو قرباني صحیح کیږي. کما فی الهدایة ۴: ۴۴۹ و اذا اشترى سبعة بقرة ليضحوا بها فمات أحدهمْ قبلَ النحرِ وقالتِ الورثةُ (الكبارُ منهم) اذبحوهـا عنهُ و عنكمْ أجزأهمْ﴿۱﴾و هكذا فى رد المحتارِ﴿۲﴾والهندية﴿۳﴾ وغيرهما. که دا وارثان په خپلو کې یو کس د ۷/۱ مالك کړي؛ نو هیڅ خبره نشته. لأنَّ هبةَ المشاعِ يصحُّ فيما لا يقبلُ القسمة صرَّحَ به فى هبة الهداية﴿۴﴾ والفتح﴿۵﴾ و رد المحتار ﴿۶﴾

---

﴿۱﴾ (هداية ۴: ۴۴۹ كتاب الأضحية)

﴿۲﴾قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: وإذا مات أحد السبعة المشتركين فى البدنة وقال الورثة اذبحوا عنه وعنكم صح عن الكل استحساناً لقصد القربة.

(الدرالمختار ۵: ۲۲۹ كتاب الأضحية)

﴿۳﴾ فى الهندية: وإذا اشترى سبعة بقرة ليضحوا بها فمات أحد السبعة وقالت الورثة وهم كبار اذبحوها عنه وعنكم جاز استحساناً.

(فتاوى هندية۵: ۳۰۵ كتاب الأضحية، الباب الثامن فيما يتعلق بالشركة)

﴿۴﴾ فى الهداية: وهبة المشاع فيما لا يقسم جائز.

(هداية ۳: ۲۸۵ كتاب الهبة)

﴿۵﴾ قال ابن الهمام رحمه الله تعالى: الا ترى أن هبة المشاع الذى لا يحتمل القسمة جائزة بالاتفاق. (فتح القدير ۷: ۴۹۰ كتاب الهبة)

﴿۶﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: (فى) متعلق بِتَمَّ (محوز) مفرّغ (مقسوم ومشاع لا) يبقى منتفعًا به بعد أن (يقسم) كبيت وحمام صغيرين. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله بعد أن يقسم) ويشترط فى صحة هبة المشاع الذى لا يحتملها أن يكون قدرًا معلومًا. (شامى ۴: ۵۷۰ كتاب الهبة)

والهندية﴿۱﴾وهو الموفق.

## په مالدار پلار او زوی دواړو باندې قرباني واجب ده

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې (۱) د یو سړي زوی واده کړی دی، پلار ورته په خپل ژوند کې ځمکه ورکړې ده، ایا دده په قربانۍ کې دوه برخې راځي او که یوه؟

(۲) بل سړی دی چې زوی یې د میاشتې درې سوه (۳۰۰) روپۍ تنخا لري؛ نو ایا ددې کور نه په قربانۍ کې دوه برخې واجب دي او که یوه برخه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي عبد الرزاق لوند خوړ مردان ..... ۱۹۶۹ م / ۱۲ / ۱۳/

**جواب:** که زوی او پلار دواړه مالدار وي؛ نو په دواړو یې قرباني واجب ده، یوه برخه د دواړو لپاره نه پوره کیږي ﴿۲﴾ وهوالموفق.

## د قربانۍ لپاره قرض اخیستل او قرض په حرام مال ادا کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د زید ټول مال حرام دی، هغه د قربانۍ لپاره د چا نه په قرض روپۍ واخیستلې او قرباني یې وکړه، څه ورځې وروسته یې د هغه سړي قرض د خپل مال نه ادا کړ، د شریعت له مخې د زید قرباني جائز ده او که نه؟ او د هغه اخیستل شوی قرض ادا شو او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مبلغ اسلام ډاکټر سید فدا حسین، بهانه ماړي پېښور ..... ۱۹۸۶ م/ ۱۰/ ۱۴/

---

﴿۱﴾ فی الهندية: ولتصح فی محوز مفرغ..... ومشاع لا يقسم ولا يبقى منتفعا به بعد القسمة. (فتاوى هندية ۴:۳۷۶، كتاب الهبة، الباب الثانی فيما يجوز من الهبة)

﴿۲﴾ فی الاختيار: وهي واجبة على كل مسلم حرّ مقيم موسر ويجب على كل واحد شاة. (الاختيار لتعليل المختار ۵:۲۰، كتاب الأضحية)

**جواب** بې شکه په داسې حیله باندې هم قرباني صحیح کیږي او هم بې قرض پوره ادا کیږي. كذا في الهندية في باب الضيافة من كتاب الكراهية﴿١﴾

(رشيد احمد عفي عنه) دغه راز په حرام مال چې کوم رزق واخیستل شي، هغه حلال او پاك دی حرام نه دی. كما في رد المحتار لأنّ التعاملَ على الشراء مطلقاً ثُمَّ الدفع مِنْ تلك الدراهِمِ﴿٢﴾ وهو الموفق.

## په جوارۍ گټل شوي غويي باندې د قربانۍ حکم

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې يو سړي د جوارۍ لوبه کوله چې غوا يې پکښې وګټل، د کلي اوه کسان په غوا کې شريکان شوه او قرباني يې وکړه، هغوی ته دا معلومه وه چې دا غوا په جوارۍ گټل شوې ده، يو مولوي صاحب د جواز فتوی ورکړه؛ خو موږ په شك کې يو ايا په دې باندې قرباني کيږي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: احمد ايبټ آباد هزاره

﴿١﴾ في الهندية: أهدى إليه رجل شيئًا أو أضافه إن كان غالب ماله من الحلال فلا بأس إلّا أن يعلم بأنه حرام فإن كان الغالب هو الحرام ينبغي أن لا يقبل الهدية ولا يأكل الطعام إلّا أن يخبره بأنه حلال ورثته أو استقرضته من رجل كذا في الينابيع.

(فتاوى هندية٥: ٣٤٢، الباب الثاني عشر في الهدايا و الضيافات)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله اكتسب حرامًا) توضيح المسئلة ما في التاتارخانية حيث قال رجل اكتسب مالًا من حرام ثم اشترى فهذا على خمسة أوجه: إما إن دفع تلك الدراهم إلى البائع أولًا ثم اشترى منه بها أو اشترى قبل الدفع بها و دفعها أو اشترى قبل الدفع بها و دفع غيرها أو اشترى مطلقًا و دفع تلك الدراهم أو اشترى بدراهم آخر ودفع تلك الدراهم قال أبو نصر يطيب له ولا يجب عليه أن يتصدق إلّا في الوجه الأول...... وقال الكرخي في الوجه الأول والثاني لا يطيب وفي الثلاث الأخيرة يطيب...... لكن الفتوى الآن على قول الكرخي دفعا للحرج عن الناس.

(ردالمحتار ٤: ٢٤٣ مطلب إذا اكتسب حرامًا ثم اشترى فهو على خمسة أوجه)

**جواب:** په جواری باندې ګټل شوی مال خبیث شی دی، ﴿۱﴾ امانت نه دی، په داسې حیوان باندې قرباني صحیح کېږي، خو په جواری به مجرم ګناهګار وي﴿۲﴾ وهو الموفق.

## د رسول الله صلى الله عليه وسلم له طرفه قرباني شوي حيوان غوښه خوړل جائز دي:

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې که یو سړی د رسول الله صلى الله عليه وسلم له طرفه قرباني وکړي؛ نو د هغې غوښه خپله خوړلای شي او که نه؟ او که بل خپلوان ته یې ورکړي بیا څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: متعلم عیسی خان وزیرستانی کمره نمبر ۳۵ ..... ۱۹۸۴م/ اګست/ ۱۸/

**جواب:** د مړو له طرفه د ذبح شوي قرباني غوښه خوړل جائز دي، کله چې دا قرباني یې له وصیته وي ﴿۳﴾ وهو الموفق.

﴿۱﴾ في مجموعة قواعد الفقه: القمار مصدر قامر هو كل لعب يشترط فيه غالبًا أن يأخذ الغالب شيئًا من المغلوب...... ثم عرّفوه بأنه تعليق الملك على الخطر والمال في الجانبين.

(مجموعة قواعد الفقه ٤٣٤، التعريفات الفقهية)

﴿۲﴾ قال العلامة الكاساني رحمه الله تعالى: والثاني ملك المحل وهو أن يكون المضحّى ملك من عليه الأضحية فإن لم يكن لا تجوز...... وعلى هذا يخرج ما إذا اغتصب شاة إنسان فضحى بها عن نفسه أنه لا تجزيه لعدم الملك...... وإن ضمنه صاحبها قيمتها حية فإنها تجزئ عن الذابح لأنه ملكها بالضمان من وقت الغصب بطريق الظهور والاستناد فصار ذابحًا شاة هي ملكه فتجزيه لكنه يأثم لأن ابتداء فعله وقع محظورًا فتلزمه التوبة والاستغفار.

(بدائع الصنائع ۲۱۷:۴، كتاب التضحية، حكم لو اشترى أضحية وهي صحيحة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: من ضحّى عن الميت يصنع كما يصنع في أضحية نفسه من التصدق والأكل، والأجر للميت والملك للذابح قال الصدر: والمختار أنه إن كان بأمر الميت لا يأكل منها وإلا يأكل. (ردالمحتار ٥:٢٢٩ كتاب الأضحية)

**د رسول الله صلى الله عليه وسلم له طرفه دقرباني په هلاکېدو د تلافي طريقه**

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زه هر کال د رسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره په کور کې يوه قرباني ساتم، خو سږ کال زه حج ته لاړم؛ نو قرباني پاتې شوه، حال دا چې ما له ځانه سره دا ويلي ؤ چې تر کله زه ژوندی يم؛ نو هر کال به رسول الله صلى الله عليه وسلم ته قرباني ورکوم، دا چې سږ کال رانه پاتې شوه ددې قضا څنګه راوګرځوم؟ بينوا توجروا

المستفتي: ميرنواب پوسټ بکس رياض ١١٥٣٠ سعودی عرب ..... ١٤٠٥ هـ / رمضان / ٢٩/

**جواب:** السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته! وروسته له سلامه واضحه دې وي چې په حاجي باندې د دم تمتع اودم قران نه بغيربله واجبه قرباني نشته.﴿١﴾ د نبي کريم صلى الله عليه وسلم لپاره قرباني کول مستحب کار دی؛ ﴿٢﴾ که ته راروان کال د دوه برخو په اندازه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته قرباني ورکړې؛ نو ستا د قضا شوي عمل به کفاره په ادا شي. وهو الموفق

﴿١﴾ فى الهندية: ولا تجب على المسافرين ولا على الحاج إذا كان محرمًا وإن كان من أهل مكة كذا فى شرح الطحاوى. (فتاوى هندية٥ :٢٩٣ كتاب الأضحية، الباب الأول)

وفى إرشاد السارى: ثم اعلم أن الأضحية واجبة على كل مسلم حرّمقيم...... فلا تجب على المسافرين ولا على الحاج إذا كان محرمًا وإن كان من أهل مكة كذا فى الخزانة ولعل وجهه أنه يجب على الحاج دم قران أو متعة ويستحب لهم دم إفراد فيسقط عنهم دم الأضحية تخفيفًا عليهم كما سقط عنهم صلاة العيد اجماعًا.

(إرشاد السارى ٢٢٣ مطلب فى التحقيق هل يجب على أهل منىٰ صلاة العيد)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: وختم ابن السراج عنه ﷺ اكثر من عشرة آلاف ختمة وضحّى عنه مثل ذلك...... قلت وقول...... پاتي حاشيه په بل مخ باندی

## د وفات شوي مور او پلار له طرفه د قرباني حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د یو سړي مور او پلار وفات شوي دي، ایا د هغوی له طرفه قرباني جائز ده او که نه؟ که جائز وي نو د دواړو لپاره یوه قرباني پوره ده او که د هر یو لپاره ځان ځان ته قرباني وکړي؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۹۷۱م / ۲ / ۱۹/

**جواب:** ستاسو درانه حضور ته السلام علیکم ورحمة الله! تاسو (وفات شوي) مور او پلار ته قرباني کولای شئ: (شامي ﴿۱﴾ وغیره) ﴿۲﴾ وهو الموفق.

---

(بقیه حاشیه) علمائنا له أن يجعل ثواب عمله لغيره ويدخل فيه النبي ﷺ فإنه أحق بذلک حيث أنقذنا من الضلالة ففي ذلک نوع شکر وإسداء جميل له.

(ردالمحتار ۲: ۲۲۶، ۲۲۷ باب صلوٰة الجنازة، مطلب في إهداء ثواب القراءة للنبي ﷺ)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالیٰ: وإن مات أحد السبعة المشترکين في البدنة وقال الورثة اذبحوا عنه وعنکم صح عن الکل استحسانًا لقصد القربة عن الکل. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالیٰ: هذا وجه الاستحسان، قال في البدائع لأن الموت لا يمنع التقرب عن الميت بدليل أنه يجوز أن يتصدق عنه ويحج عنه، وقد صح أن رسول الله ﷺ ضحی بکبشين أحدهما عن نفسه والآخر عمن لم يذبح من أمته، وإن کان منهم قد مات قبل أن يذبح.

(ردالمحتار مع الدر المختار ۵: ۲۲۹ کتاب الأضحية)

﴿۲﴾ وفي خلاصة الفتاوی: سئل عن نصير رحمه الله تعالیٰ عن رجل ضحّی عن الميت قال الاجر له والملک لهذا.

(خلاصة الفتاوی ۳: ۳۲۲ کتاب الأضحية، الفصل السابع)

## د ذی الحجې په میاشت کې تر قرباني پورې نوکان او وېښتان نه کاټول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د ذی الحجې په شروع کې د نوکانو او وېښتو کاټول په قرباني کې څه فرق راولي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الله کیکړی فقیر خیل ټانك ..... ۱۹۶۹ م/ ۸/ ۹/

**جواب:** دا یو مندوب (مستحب) کار دی، ﴿۱﴾ که څوك په دې باندې عمل ونه کړي؛ نو قرباني ته يې هیڅ تاوان نه پیښیږي، فقط.

## د قرباني د حیوان قبل القبض هلاکت په صورت کې تاوان په چا دی؟

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زید د خپلو شریکانو سره د عمر نه یو حیوان واخیست، قرباني متعین شوه خو لا تر اوسه يې تر لاسه کړې نه وه چې هغه مړه شوه، اوس به ددې حیوان تاوان په چا باندې لازم وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الجبار ملاکنډ ..... ۱۳۹۶ هـ / ذی الحجه / ۲۶/

**جواب:** که زید او شریکانو يې دا حیوان نه وي قبضه کړی، نو د عمر له طرفه ذمه داري نه ده پوره شوې او د هلاکت په صورت کې به يې تاوان په خرڅوونکي (بائع) وي ﴿۲﴾ وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ عن ام سلمة رضی الله تعالی عنها تقول قال رسول الله ﷺ: من كان له ذبح يذبحه فإذا أهل هلال ذی الحجة فلا يأخذنّ من شعره ولا من أظفاره شيئًا حتّى يضحی.

وفی حاشية أبی داؤد: وظاهر كلام شراح الحديث الحنفية أنه يستحب عند أبی حنيفة رحمه الله تعالى. (سنن أبی داؤد ۲: ۳۸٦ حاشيه: ۱ ، باب الرجل يأخذ من شعره فی العشر الخ)

﴿۲﴾ فی شرح المجلة: المبيع إذا هلك فی يد البائع قبل أن يقبضه المشتری يكون من مال البائع ولا شیئ على المشتری. (شرح المجلة ۲: ۲۲۳، الفصل الخامس فی بيان المواد المترتبة على هلاك المبيع)...... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

## قیمتي حیوان خرڅول او کم قیمته حیوان اخیستل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په تفسیر ابن کثیر کې د قربانۍ په اړه یو روایت دی چې حضرت عمر رضی الله عنه یو اوښ واخیست بیا یې خرڅولو، رسول الله صلی الله علیه وسلم د خرڅولو نه منع کړ، ددې حدیث مطلب څه دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي محمد مسکین ...... ۱۹۷۴م/ ۴ / ۲۳/

**جواب:** دا روایت صحیح دی او معمول به هم دی. ﴿۱﴾لأنَّ الفاضلَ أولى كما صرحوا به﴿۲﴾وهو الموفق.

---

(بقیه حاشیه) وقال العلامة الكاساني رحمه الله تعالى: فإن هلك كله قبل القبض بآفة سماوية انفسخ البيع...... وإذا انفسخ البيع سقط الثمن عن المشترى.

(بدائع الصنائع ۴: ۴۸۹، ۴۹۰، كتاب البيوع، ضمان المبيع)

﴿۱﴾ قال الحافظ عماد الدين إسماعيل بن كثير القرشي رحمه الله تعالى: عن عبد الله ابن عمر قال: أهدى عمر نجيبًا فأعطى بها ثلث مائة دينار فأتى النبي صلى الله عليه وسلم فقال: يا رسول الله إني أهديت نجيبًا فأعطيت بها ثلث مائة دينار أفأبيعها وأشترى بثمنها بدنًا قال لا انحرها إياها.

(تفسير ابن كثير ۳: ۲۹۴، سورة الحج آيت: ۳۳)

﴿۲﴾في الهندية: والشاة أفضل من سبع البقرة إذا استويا في القيمة واللحم لأن لحم الشاة اطيب وإن كان سبع البقرة أكثر لحمًا فسبع البقر أفضل، والحاصل في هذا أنهما إذا استويا في اللحم والقيمة فأطيبها لحمًا أفضل وإذا اختلفا في اللحم والقيمة فالفاضل أولى.

(فتاوى هندية ۵: ۲۹۹، كتاب الأضحية، الباب الخامس في بيان محل إقامة الواجب)

## د عيب يا كمزورى له وجې د قربانى حيوان بدلول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې (١) يو سړي يو حيوان واخيست، اوس يې د كمزورى له وجې خرڅوي، ايا دا جائز دي؟ (٢) كه دا حيوان خرڅ كړي او بل پرې واخلي، د اولني حيوان څه روپۍ زياتي پاتې شي؛ نو د هغو روپو سره څه وكړي؟ بينوا توجروا

المستفتي: ستاسو خدمت ګار نور محمد ..... ١٩٧٤م/ ٢ / ٢٧/

**جواب:** (١، ٢)جاز بيع الأضحية و شراء الأخرى و يتصدقُ بما زادَ عنْ ثمنِ الأولِ صرح به فى قاضى خان كماف هامش الهندية٣: ٣٨٠﴿١﴾وهوالموفق.

## د حيوان په خرڅولو کې د زياتي روپو صدقه كول پكار دي

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قربانۍ غويي په بل غويي بدلول جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي محمد مسكين ..... ١٩٧٦م/ ٦ / ٢٣/

**جواب:** پـه دې ټولـو صـورتونو كـې د لسـاني ايجـاب وروسته چې د اول حيـوان نـه وروسته په دويم كې څومره روپۍ پاتې شي، لكه لومړى يې په پنځه سوه او بل يې په څلور نيم سوه روپۍ واخيست؛ نو ددې پنځوسو روپو صدقه كول واجب دي، فليراجعْ

﴿١﴾قال العلامة فخر الدين حسن بن منصور الفرغانى رحمه الله تعالى: وإن اشترى شاة اخرى بعد ما باع الأولى إن اشترى الثانية بجميع ثمن الأولى جاز ولا شيئ عليه وإن اشترى الأخرى بأقل ممّا باع الأولى يتصدق بما بقى عنده من ثمن الأولى.

(قاضى خان على هامش الهندية ٢: ٣٤٧ كتاب الأضحية)

الی الهندیة ٥: ٣٢٦ ﴿١﴾ وهوالموفق

## د قرباني غوښه درې برخې کول مستحب دي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زموږ د
ځای د رواج سره سم د قرباني غوښه درې ځایه تقسیمیږي، یوه برخه یې د
مالك ده، دویمه برخه یې خپلو همسایه ګانو او خپلوانو ته ورکوي، دریمه
برخه یې په هغو خلکو تقسیموي چا چې قرباني نه وي کړې، برابره ده چې په
هغوی باندې قرباني واجبه وي او که نه وي، د دریمې برخې نه هم مالك ته
څه برخه پاتې کیږي، ایا په شریعت کې دده لپاره په دریمه برخه کې حصه
اخیستل روا دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: حافظ محمد یعقوب کوئته ..... ١٩٧٥ م / مارچ / ١٥/

**جواب:** د قرباني غوښه درې تقسیمه کول چې یو یې صدقه کول، یو یې په
مېلمستیا کې مصرفول او بل یې خپل ځان ته پرېښودل مستحب عمل دی،
دا هم جائز ده چې د قرباني ټوله غوښه خپله وخوري او چا ته یې هم ورنه
کړي، ،د رد المحتار ٥: ٢٨٦ نه اخیستل شوی، ﴿٢﴾ وهوالموفق.

---

﴿١﴾ فی الهندیة: ولو باع الأضحیة جاز خلافا لأبی یوسف رحمه الله تعالی ویشتری بقیمتها اخری ویتصدق بفضل مابین القیمتین.

(فتاوی هندیة ٥: ٣٠٢ کتاب الأضحیة، الباب السادس فی بیان ما یستحب فی الأضحیة)

وفی ردالمحتار: وان ضحی بالثانیة وقیمتها أقل تصدق بالزائد.

(ردالمحتار ٥: ٢٢٩، کتاب الأضحیة)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: قال فی البدائع: والأفضل أن یتصدق بالثلث ویتخذ الثلث ضیافة لأقربائه وأصدقائه ویدخر الثلث، ویستحب أن یأکل منها، ولو حبس الکل لنفسه جاز...... (وندب ترکه) أی ترک التصدق (لذی عیال) غیر موسع الحال (توسعة علیهم). (ردالمحتار ٥: ٢٣٠، کتاب الأضحیة)

## غوښه په اندازه تقسیمول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قربانۍ په غوښه کې ځینې خلك ډېر په احتیاط اندازې جوړوي او بیا د قرعه اندازۍ په واسطه هره برخه تقسیموي، ددې خلکو دا کار څنګه دی؟ که غلط وي؛ نو تقسیم بې څنګه شو؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الحمید ایس وي معلم ډی آی خان ...... ۱۹۷۳م/ ۲ / ۱۴/

**جواب:** ددې تقسیم لپاره وزن ضروري دی، یوازې اندازه پوره نه ده «۱» وهو الموفق

## د غوښې د تقسیم لپاره نوې طریقه

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ په ځای کې داسې رواج دی چې د قربانۍ غوښه دوه ځایه کړي، یوه برخه کچه د خپلو بچیانو لپاره وساتي، بله برخه پخه کړي او د کلي ټول خلك یې جومات ته راوړي، د هغې وروسته یو سړی راولاړ شي او د قربانۍ د حیوان نه یو ورون او بغل امام صاحب ته ورکړي، یو ورون او بغل د کلي ملك صاحب ته ورکړي او یو ورون او بغل د کلي بوډا ته ورکړي، یو ورون او بغل د کلي شپونکي ته ورکړي او کومه غوښه چې پاتې شي هغه په سرونو تقسیموي، دغه راز د استسقاء، وروسته هم خلك مال ذبح کړي او تیار پوخ یې راوړي او یو طرف ته یې جمع کړي، بیا

«۱» قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويقسم اللحم وزنًا لاجزافًا إلّا إذا ضمّ معه من الأكارع أو الجلد صرفًا للجنس لخلاف جنسه.

(الدر المختار ٥: ٢٢٣ كتاب الأضحية)

یې د پورتني تقسیم سره سم په خلکو تقسیموي. اوس ځینو خلکو ددې خاصې طریقې د تقسیم نه انکار کړی او وایي: چې په دې طریقه تقسیم موږ خوښ نه یو. د شریعت له مخې ددې مسئلې تشریح راته وکړئ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي سخي داد تحصیل روږ ژوب بلوچستان ..... ۱۹۸۴ م / اکتوبر / ۲۳/

**جواب:** هغه کارونه چې په شریعت کې نه مقصد وي او نه هم منع وي؛ نو د لزوم د عقیدې له وجې منکرات وګرځي او په التزام ما لا یلزم کې داخل شي، «۱» بخلاف الحلوة المرسومة فإنْ دفعها وإن كانَ اهداء صورة لكنه أجرة ذاتاً «۲» وهو الموفق.

## د غوښو ذخیره کول جائز دي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې نن سبا خلك غوښه وچه کړي او بیا یې ساتي، یا یې په فریج کې ساتي، بیا یې تر میاشتو - میاشتو پورې استعمالوي، ایا داسې استعمال جائز دی؟ که جائز وي نو تر څومره وخته پورې؟ بینوا توجروا

المستفتي: شمس الرحمن عفی عنه ..... ۱۹۷۸ م/ ۸ / ۹/

**جواب:** د غوښې وچول او بیا ذخیره کول بې وخت تاکلو جائز دي، کما یدلُّ

---

«۱» قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: ولأن ذكر الله تعالى إذا قصد به التخصيص بوقت دون وقت أو بشيء دون شيء لم يكن مشروعاً حيث لم يرد الشرع به لأنه خلاف المشروع.

(البحر الرائق ۲: ۱۵۹، باب العيدين)

«۲» قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويجبر على دفع الحلوة المرسومة هي ما يهدى للمعلم على رؤس بعض سور القرآن سميت بها لأن العادة إهداء الحلاوى.

(الدر المختار ۵: ۳۸ كتاب الإجارة، باب إجارة الفاسدة)

عليه حديث اباحة الادخار فوق ثلث ﴿١﴾ وهوالموفق.

## د غائبينو له طرفه بې اجازې قرباني کول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په يو کور کې څلور ورونه شريکان دي، درې ورونه يې مسافر دي، په کور کې مقيم ورور يې د خپلو مسافرو ورونو له طرفه د هغوی بې اجازې قرباني کولای شي او که نه؟ او دويمه خبره دا چې ددې ورونو ضمني اجازه د قربانۍ لپاره پوره ده او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: نصر الله بلوچستان ..... ١٣٩٢ هـ / محرم الحرام / ٧/

**جواب:** په دې عبادت کې نيت معتبر وي، لقوله عليه الصلوة والسلام: انما الأعمال بالنيات،﴿٢﴾ بې اجازې قرباني کولو کې نيت نشته، لهذا د مسافرو له طرفه قرباني

---

﴿١﴾ عن سلمة بن الأكوع رضى الله تعالىٰ عنه قال قال النبى ﷺ من ضحّى منكم فلا يصبحنّ بعد ثالثة وفى بيته منه شيئ فلما كان العام المقبل قالوا: يا رسول الله نفعل كما فعلنا العام الماضى قال كلوا وأطعموا وادّخروا فإن ذلك العام كان بالناس جَهْدًا، فاردت أن تعينوا فيها.

(الصحيح للإمام البخارى ١: ٣٥٢ كتاب الأضاحى، باب مايؤكل من لحوم الأضاحى)

وقال العلامة الحصكفى: ويأكل من لحم الأضحية ويؤكل غنيا ويدخر.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: (قوله ويؤكل غنيا ويدخر) لقوله عليه الصلوٰة والسلام بعد النهى عن الادخار، كلوا وأطعموا وادخروا.

(ردالمحتار ٥: ٢٣٠ كتاب الأضحية)

﴿٢﴾ (الصحيح للإمام البخارى ١: ٢ باب كيف كان بدؤ الوحى الى رسول الله ﷺ

نه صحيح كيږي، فى الدر المختارِ: وشرعاً ذبحُ حيوانٍ مخصوصٍ بنية القربةِ فى وقتٍ مخصوصٍ ﴿۱﴾ دغه راز غالبه دا ده چې دا حيوان ددې مسافرو ملكيت نه گرځي او په غير مملوك شي قرباني نه كيږي، فى الخلاصة عنِ النوازل: لوْ ضحى شدة نفسه عنْ غيره بأمره أوْ بغيرِ أمره لا يجوزُ ٢: ٥٢٩ ﴿۲﴾ قلتُ: ولا دليلَ على الاِذنِ فى صورة الاِشتراك كما لا يخفى. وهوالموفق

## قصاب ته په مزدورۍ كې غوښه وركول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې قصاب ته په مزدورۍ كې غوښه وركول جائز دي او كه ناجائز؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي عبد الرزاق لوند خوړ مردان ..... ١٩٦٩م / ١٢ / ١٣/

**جواب:** ناجائز دى، فى الدرالمختارِ: ولايعطى الجزارُ منها لأنه كبيعٍ انتهى ﴿۳﴾ قلتُ صرحَ الفقهاءُ بأنَّ حكمَ اللّحمِ والجلدِ واحدٌ ﴿۴﴾ وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار ٥: ٢١٩ كتاب الأضحية)

﴿۲﴾ (خلاصة الفتاوى ٣: ٣٢٢ كتاب الأضحية، الفصل السابع فى التضحية عن الغير)

﴿۳﴾ (الدرالمختار ٥: ٢٣١ كتاب الأضحية)

وفى الهندية: ولا يحل بيع شحمها..... ولا أن يعطي أجر الجزار والذابح منها.

(فتاوى هندية ٥: ٣٠١ كتاب الأضحية، الباب السادس)

﴿۴﴾ قال العلامة شيخى زاده: واللحم بمنزلة الجلد..... فإن بدل اللحم أوالجلد به أى بما ينتفع بالاستهلاک جاز ويتصدق به..... وعن أبى يوسف رحمه الله تعالى بيع الأضحية وجلدها ولحمها باطل لأنه بمنزلة الوقف.

(مجمع الأنهر ٢: ١٧٣، ١٧٥ كتاب الأضحية)

## خپلوانو ته په هبه شوې قرباني کې شريکې هبه صحيح ده

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د يو سړي خپل حيوان دی، په هغې کې يې يوه برخه د ځان لپاره ټاکلې ده، دويمه برخه يې د خپلې کور والا لپاره ټاکلې ده، دريمه برخه يې خپل ورور ته ورکړې ده، په داسې حال کې چې ټول ژوندي دي، په دې طريقه د دوی قرباني کيږي او که نه؟ ځکه که دا هبه وي؛ نو خپلوانو خو يې قبضه وربانديې نه ده کړې او مالك هم شريکي هبه کړې ده، که دا صورت د عدم جواز وي؛ نو د جواز به څه صورت وي؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي تاج زرين مدرس دار العلوم شير ګړه ...... ۱۹۸۱م/۸/۳/

**جواب:** هغه څه چې نه تقسيميږي په هغه کې هبة المشاع جائز ده، حيوان د هغه شيانو څخه دی چې نه تقسيميږي، فليراجعْ الى رد المحتار﴿۱﴾وغيره.﴿۲﴾
وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ.

## د قربانۍ د شيدو په استعمالولو کې د فقهاؤ د مختلفو عبارتونو تر منځ تطبيق

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې اوه کسانو شريکانو د قربانۍ لپاره يوه شيدو والا غوا ديو سړي نه واخيسته، شريکانو يې بېرته غوا خپل مالك ته وسپارل چې ته دا له ځانه سره وساته او شيدې يې په

﴿۱﴾قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ: (في) متعلق بتتم (محوّز) مفرّغ (مقسوم ومشاع لا) يبقى منتفعًا به بعد ان (يقسم) كبيت وحمام صغيرين. (الدر المختار)

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: (قوله بعد أن يقسم) ويشترط في صحة هبة المشاع الذى لا يحتملها ان يكون قدرًا معلومًا حتى لو وهب نصيبه من عبد ولم يعلمه به لم يجز. (ردالمحتار ۴: ۵۷۰ كتاب الهبة

﴿۲﴾ في جامع الفصولين: هبة المشاع في مالايحتمل القسمة تجوز.

(جامع الفصولين ۲۲، الفصل الحادى والثلاثون في مسائل الشيوع)

خپل استعمال کې راوله؛ هغه سړي شیدې استعمال کړي، په شریعت کې دده لپاره ددې شیدو استعمال څه حکم لري؟

که څینې شریکانو اجازه نه وي ورکړې بیا به یې څه حکم وي؟ په دې مسئله کې د عالمګیري چې کوم عبارت دی: (۱)ولو اشترى بقرة حلوبة و أوجبها أضحية فاكتسبَ مالاً منْ لبنها يتصدقُ بمثلِ ما اكتسبَ و يتصدقُ بروثها .

(۲) فانْ كانَ يعلفها فما اكتسبَ منْ لبنها أو انتفعَ منْ روثها فهو لـــه ولا يتصدقُ بشيءٍ كذا فى محـيط السرخســي عالمګيريه۴: ۷۲ په دې دواړو عبارتونو کې څه فرق دی؟ په پورته اول او دویم عبارت کې عامو متونو او شامي داسې لیکلي دي: لکه په هدایه ۴: ۳۸۲ کې دي: و يكــرهُ أنْ يجــزَّ صوف أضحيةٍ و ينتفعُ به قبلَ أنْ يذبحها لأنه التزامُ اقامةِ القربةِ بجميعِ أجزاها بخلافِ ما بعدَ الذبحِ لأنه أقيمت القربة بها كما فى الهدى ، و يكرهُ أنْ يحلبَ لبنها فينتفعُ به كما فى الصوفِ ؟ بينوا توجروا

المستفتي: تازه ګل لکي مروت ...... ۱۹۸۵م/ ۱۰/ ۳/

**جواب:** د اولنـي عبـارت او د هدايـه عبـارت محمـل د دويـم عبـارت څخـه معلومیږي، ﴿۱﴾اذا لمْ يعلفها فافهمْ وتدبرْ﴿۲﴾والله أعلمُ

## د حیوان په حمل د قرباني نذر منل صحیح نه دي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایې چې د زید په کور کې زیاتي چېلۍ ده، هغه نذر ومنلو چې که ددې چېلي بچی پیدا شو هغه به زه قرباني کوم، کله چې د چېلۍ بچی وزېږېد؛ نو نر نه بلکې ماده

﴿۱﴾ (فتاوی هندیة ۵: ۳۰۱ كتاب الأضحية، الباب السادس)

﴿۲﴾ (فتاوی هندیة ۴: ۳۵۰ كتاب الأضحية)

(بنځه) یې پیدا شوه، بیا دا ماده حیوان بلارب شو، اوس ددې معین نذر والا حیوان قرباني کولو ته څومره وخت انتظار وکړو؟

که د قربانۍ د ورځو مخکې یا وروسته یا په دغه ورځ بچی پیدا شي بیا ددې د قربانۍ څه حکم دی؟ او ددې د بچیانو به څه حکم وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: حافظ بشیر احمد ګوجرانواله ..... ١٣٩٤ هـ / ذی قعده / ٢٤/

**جواب**: پورته یاد الفاظ د وعدې دي نذر نه دی، لعدمِ لفظِ النذرِ و لعدمِ ما یفیدُ الالتزامَ منْ کلمةِ علی و ما یرادفها﴿١﴾ لهذا په دې سړي (زید) باندې هیڅ ذبح نه ده واجبه، دغه راز تر دې وخته پورې هغه نه ؤ پیدا شوی، د فقهاؤ قاعده ده: چې د معدوم (نشت شي) نذر نه صحیح کیږي، لأنه لیسَ بمضافٍ الی سببِ الملك﴿٢﴾ولوْ سلمَ فالوجهُ الأولُ خالٍ عنِ الخدشةِ وكافٍ فی الحکمِ . وهوالموفق

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: إن برئت من مرضي هذا ذبحت شاة فبرئ لا يلزمه شيئ إلا أن يقول فلله علىّ أن أذبح شاة...... فأفاد أن عدم الصحة لكون الصيغة المذكورة لا تدل على النذر أي لأن قوله ذبحت شاة وعد لا نذر.

(ردالمحتار ٣:٧٢، كتاب الإيمان، مطلب النذر غير المعلق لا يختص الخ)

وقال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالى: وركنه عند الحنفية هو الصيغة الدالة عليه مثل قول الشخص: لله علىّ كذا أو علىّ كذا أو علىّ نذر.

(الفقه الإسلامي وأدلته٣: ٢٥٥٢، الفصل الثاني النذور)

﴿٢﴾قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: إذا قال إن فعلت كذا فألف درهم مالي صدقة ففعل وهو لا يملك إلا مائة لا يلزمه إلا المائة لأنه فيما لم يملك لم يوجد في الملك ولا مضافًا إلى سببه فلم يصح. (البحر الرائق ٣:٢٩٦ قبيل باب اليمين في الدخول والخروج والسكنى الخ)...... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

## د ابراهیم علیه السلام ذبحه شوي گډ غوښه چا وخوړل؟

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې کله حضرت ابراهیم علیه السلام د خپل زوی اسمعیل علیه السلام ذبح کول وغوښتل؛ نو هغه ته د امتحان په کامیابی بوه گډه راولیږل شوه او هغه حلاله کړه؛ نو د هغې گډې غوښې چا وخوړلې؟ ایا حلاله شوې گډ بیرته جنت ته ولیږل شوه؟ بینوا توجروا

المستفتي: گلاب شاعر نسته چارسده ..... ۱۴۰۳ هـ / شعبان / ۱/

**جواب:** هغه وخت دغه گډ هیچ چا نه وه خوړلې بلکې تر یو کاله ژوندی وه، لما فی المدارك ۴: ۳۰ و روی أنه هرب عن ابراهیم علیه السلام عند الجمرة فرماه بسبع حصیات حتی أخذه فبقیت سنة فی الرمی ﴿۱﴾ د ځینو روایتونو څخه معلومیږي چې دا د خوراك گډه نه وه بلکې دا تکویني وه، كذا فی البحر المحیط ۷: ۳۱۷ وقال أبوبكر الوراق لأنه لم يكن عن نسل بل عن التكوين ﴿۲﴾ وهو الموفق.

## د قرباني غوښه د مالدار او غریب دواړو لپاره خوړل جائز دي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یو غریب سړي باندې چې قرباني واجب نه وي، هغه د قرباني په نیت چېلی یا گډ واخیستل. فقهاء کرام خو لیکي چې دا په ده باندې نذر شو او د نذر حکم دا وي چې نذر منونکی یې خپله نه شي خوړلای او پاتې شو پورتنی نذر؛ نو په دیکښې خو نذر منونکي د نذر الفاظ نه دي ویلي. ایا د دې چېلي غوښه

(بقیه حاشیه) وقال الدكتور وهبة الزحیلی رحمه الله تعالی: رابعًا أن یكون المال المنذور به مملوكًا للناذر وقت النذر أو یكون النذر مضافًا إلی الملك أو إلی سبب الملك. (الفقه الإسلامی وأدلته ۳: ۲۵۵۸، الفصل الثانی، النذور)

﴿۱﴾ (مدارك التنزیل ۲: ۴۲۰ سورة الصافات، پاره: ۲۳)

﴿۲﴾ (البحر المیحط ۹: ۱۱۸ سورة الصافات، مکتبه دار الفکر)

ددې سرې لپاره خوړل حلال دي او که نه؟ که د نذر الفاظ موجود وای بیا خو د حرمت دلیل ښکاره دی، زه هغه صورت یادوم چې د نذر الفاظ پکښې ښکاره نه وي هغه څه حکم لري؟ که د مالدار نه مال ورک شي، د قربانۍ لپاره ځان ته بل حیوان واخلي؛ نو په هغه باندې دا دویم حیوان ولې نه نذر کیږي؟ مهرباني وکړئ او مسئله راته روښانه کړئ! بینوا توجروا

المستفتي: میان محمد الرحمن. فاضل خطیب پاړه چنار ..... ۱۹۶۹م/۵/۴/

**جواب** غریب چې کله د قربانۍ اراده وکړي؛ نو د قربانۍ د غوښې په خوړلو کې دده لپاره دوه روایتونه دي، یو د جواز او دویم د عدم جواز. قالَ العلامة الشامي ف رد المحتار ٥: ۲۸۶ و فی التتارخانیة سئلَ القاضی بدیع الدین عنِ الفقیرِ اذا اشتری شاةً لها هلْ یحلُّ لهُ الأکلُ ؟ قالَ نعمْ ! وقالَ القاضی برهانُ الدین لا یحلُّ ثُمَّ قالَ العلامة بعدَ أسطرٍ : والحاصلُ أنَّ التی لا یؤکلُ منها هی المنذورةُ ابتداءً والواجبةُ علی الفقیرِ بالشراء علی أحد القــولینِ المــارین الی آخر ما قالَ﴿۱﴾ نه خوړل یې غوره دي، خوړل یې هم روا دي، په مالداره باندې بوازې د حیوان په اخیستلو سره قرباني نه واجبیږي. ځکه د هغه قرباني د نذر په خبر نه ده. (فوضح الفرقُ) وهوالموفق

## غوا قرباني کول او غوښه یې نه خوړل

**سوال:** ددین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې یو سړي د غوا، میښې او اوښ

﴿۱﴾(ردالمحتار٥:٢٣٠ کتاب الأضحیة)

وفی خلاصة الفتاوی: الفقیر إذا اشتری أضحیة فسرقت فاشتری مکانها أخری ثم وجد الأولی فعلیه أن یضحی بهما وفی الغنی لا یجب إلا واحدة، والفرق أن الوجوب علی الفقیر بالشراء والشراء قد تعدد فیتعدد الوجوب والواجب علی الغنی بإیجاب الشرع والشرع لم یوجب إلا أضحیة واحدة. (خلاصة الفتاوی ۳:۸ ۳۱ کتاب الأضحیة، جنس آخر فی النذر)

غوښه نه خوري خو قرباني کوي یې او د خوراك لپاره یوازې چرګان ځان ته راغواړي، یا د کوم قربانۍ والا کورنه د چیلي غوښه راوغواړي او بیا یې خوري، دا کار په شریعت کې څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد عبد الرحیم کبیروالا ضلع ملتان ..... ۱۹۶۹م/ ۳/ ۱۹/

**جواب:** که د علاج او دوایي په نیت یې نه خوري: نو خیر دی او که د دیني نیت له امله یې نه خوري بیا حرام دی﴿۱﴾ فقط وهوالموفق.

## د غوښې د تقسیم لپاره وزن ضروري دی

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اړه څه وایي چې د قربانۍ په غوښه کې ځیني خلك

---

﴿۱﴾ قال الله تبارك وتعالى: يايها الذين آمنوا ادخلوا فى السلم كافة، وفى الآية وعيد شديد على الابتداع والإحداث فى الدين ولو عملًا من غير اعتقاد فإن هؤلاء مؤمنى أهل الكتاب زعموا أن يوم السبت كان معظما عند اليهود وليس بواجب تحقيره فى الإسلام، ولحمان الإبل كانت محرمة فى التوراة ولايجب أكلها فى الإسلام فما ذا علينا لو عظمنا السبت كما كنا نعظمه، ونجتنب عن لحمان الإبل مع اعتقاد حلها فإن فى ذلك عملًا بالشريعتين وزيادة طاعة لله عزّوجلّ، فرد الله زعمهم ونبّههم على خطإهم فيه بأن الواجب عليكم الدخول فى الإسلام كملًا ظاهرًا وباطنًا، ولا يتم ذلك إلا بترك مراعاة مالم يراعه الله ورسوله فى هذا الدين.

(أحكام القرآن للتهانوى رحمه الله تعالى ١/ ١: ٣٤٣)

وقال العلامة عبد الحى اللكنوى رحمه الله تعالى: الجواب: دغوا حلالول واجب نه دي، پرېښودونکی یې ګناهګار نه دی، هغه څوك چې حلالول یې مباح ګڼي، خو خوراك ترې نه کوي دهغه په اسلام کې څه توپیر نه راځي، څوك چې غوا ویه ګڼي او یا یې حلالول خوند نه ورکوي بلکې بد یې ګڼي دهغه اسلام خامخا ناقص دی. (مجموعة الفتاوى ١: ٢٩ كتاب العقائد)

ډېر په احتياط وزن کوي او بيا د قرعه اندازۍ په واسطه يې تقسيموي، ددې

خلکو دا کار څنګه دی؟ که غلط وي؛ نو تقسيم يې څنګه شو؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الحميد ډی آی خان ..... ١٩٧٣ م/ ٢ / ١٤/

**جواب**: ددې تقسيم لپاره وزن ضروري دی، يوازې اندازه پوره نه ده (الــدر المختار) ﴿١﴾ که اباحت (اجازه) وي؛ نو ديو بل تصرف حرام نه دی. ﴿٢﴾ وهو الموفق

---

﴿١﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويقسم اللحم وزنًا لا جزافًا إلا إذا ضمّ معه من الأكارع أو الجلد.

(الدر المختار ٥: ٢٢٣، كتاب الأضحية)

﴿٢﴾ في شرح المجلة: لايجوز لاحد أن يتصرف في مال الغير إلّا بإذنه..... فتصرف الغير في مال الغير ممنوع إلّا أن تكون وصايةً أو ولايةً أو تدعوا ضرورةً فيجوز.

(شرح المجلة ١: ٢٦٢، المادة: ٩٦)

قال النبی

صلی اللّٰه علیه وسلّم

من باع جلد أضحيته

فلا أضحية له.

(الحاکم)

# باب جلد الأضحية

قالَ النبيُّ صلى الله عليهِ وسلّم: منْ باعَ جلدَ أضحيتِه فلا أضحيةَ لَهُ(الحاكم)

## د قربانۍ د څرمنې مصرف

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د قربانۍ د څرمنې مصرف کوم ځای او څه دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: دلبر باچه ، کمبت مردان ..... ۱۳۹۷ هـ / محرم الحرام / ۱/

**جواب:** د قربانۍ څرمن دې مسکینانو ته ورکول شي، (شامي)﴿۱﴾ د خرڅولو په صورت کې بې روپۍ خپله استعمالول ناروا دي، ﴿۲﴾ د اکثرو اکابرو عالمانو په نزد مسجد کې بې هم نه شي مصرفولای، لعدمِ التمليك ﴿۳﴾ خو دبعض په نزد بیا جائز دي، د تصدق نه مراد ثواب او د خیر کارونه دي،﴿۴﴾ والأولُ أحوطُ والثاني أوسعُ . وهوالموفق

---

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ويتصدق بجلدها) وكذا بجلالها وقلائدها. (ردالمحتار ٥: ٢٣١ كتاب الأضحية)

﴿۲﴾في الاختيار لتعليل المختار: ولا يبيعه لقوله عليه الصلوٰة والسلام: من باع جلد أضحيته فلا أضحية له، فإن باعه بشيئ من النقود يتصدق به.
(الاختيار لتعليل المختار ٥: ٢٥، كتاب الأضحية)

﴿۳﴾قال العلامة أشرف على التهانوى رحمه الله تعالى: على هذا په څه کې چې تمليك او قبض نه وي لکه جوماتونو وغیره کې مصرفول دا هم جایز نه دي (امدادالفتاوى ٣: ٥٣٤)

﴿۴﴾ويدلّ عليه مافى تبيين الحقائق: ولو باعها بالدراهم ليتصدق بها جاز لأنه قربة كالتصدق بالجلد واللحم. (تبيين الحقائق ٦: ٩ كتاب الأضحية)

## د قرباني د څرمنې حکم د څرمنې په څېر دی

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قرباني د څرمنې او غوښې یو حکم دی، که داسې وي؛ نو دا چې په بخاري شریف کې د حضرت علي رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم راته وفرمایل: څرمن او غوښه یې صدقه کړه! ددې څه مطلب دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد عتیق الرحمن سیالکوټ

**جواب:** د رد المحتار ۵: ۲۸۷ نه معلومېږي چې د څرمنې او غوښې یو حکم دی، یعنې دواړه په خپل استعمال کې راوستل او صدقه کول جائز دي،《۱》 چا ته په مزدوری کې ورکول ناجائز دي، لکه څرنګه چې د مسلم شریف《۲》 او بخاري شریف《۳》 په حدیث کې راغلي دي، وأنْ لا أعطی الجزارَ منها ، د حدیث شریف مطلب او ترجمه داسې ده: غوښه او څرمن صدقه کړئ قصاب ته په مزدوری کې غوښه او څرمن مه ورکوئ! په دې حدیث کې د دواړو په اجرت کې د ورکولو نه منع او د صدقه کولو جواز راغلی دی، پاتې شوه دا چې د دې نه خوراک کول؛ نو دا هم د بخاري شریف《۴》 او

《۱》قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: فإن بيع اللحم أو الجلد به أی بمستهلک أو بدراهم تصدق بثمنه. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: والصحيح كما في الهداية وشروحها أنهما سواء في جواز بيعهما بما ينتفع بعينه دون مايستهلک. (ردالمحتار ۶: ۲۳۱ كتاب الأضحية)

《۲》عن علی رضی الله تعالی عنه قال أمرنی رسول الله ﷺ أن أقوم علی بدنه وأن أتصدق بلحمها وجلودها وأجلتها وأن لا أعطی الجزار منها.

(صحيح المسلم ۱: ۴۲۳ كتاب الحج، باب الصدقة بلحوم الهدايا الخ)

《۳》(صحيح البخاری ۱: ۲۳۲ كتاب الحج ،باب لايعطی الجزار من الهدی شيئا)

《۴》عن جابر بن عبد الله قال كنا لا نأكل من لحوم...... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

مسلم شریف ﴿۱﴾ له روایت نه معلومیږي. فقال : کلوا وتزودوا فأكلنا و تزودنا، په قرآنکریم کې هم راغلي دي ﴿ فَكُلُوا مِنْهَا ﴾ ﴿۲﴾ د څرمن استعمال د قرآن او حدیث د دلالت نه معلومیږي، د حضرت علي او حضرت عایشه رضی الله عنهما څخه صراحتاً روایت هم شوی دی، فليراجعْ الى البدائع ٥: ٨١ ﴿۳﴾ وهو الموفق.

## د قرباني څرمن خپله استعمالول

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د قرباني څرمن څه حکم لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: میا طفیل احمد (آف: چلی شیخ) ...... ۱۹۷۶م / ۳ / ۲۹/

(بقیه حاشیه) بُلِّغنا فوق ثلث منى فرخص لنا النبى ﷺ فقال: كلوا وتزوّدوا فأكلنا وتزوّدنا. (صحيح البخارى ۱: ۲۳۲ كتاب الحج، باب إِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ مَكَانَ الْبَيْتِ الخ)

﴿۱﴾ (صحيح المسلم ۲: ۱٥٨ كتاب الأضاحى، باب بيان ما كان من النهى عن اكل لحوم الأضاحى بعد ثلاث الخ)

﴿۲﴾ (سورة الحج آيت: ٣٦)

﴿۳﴾ قال العلامة الكاسانى رحمه الله تعالى: ويستحب له أن يأكل من أضحيته لقوله تعالى وعزّ شانه: فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ، وروى عن النبى ﷺ أنه قال: إذا ضحّى أحدكم فليأكل من أضحيته ويطعم منه غيره، وروى عن سيّدنا علىّ رضى الله تعالى أنه قال لغلامه قنبر حين ضحّى بالكبشين: يا قنبر خذلى من كل واحد منهما بضعه وتصدق بهما بجلودهما وبرؤوسهما وباكارعهما ...... وقول النبى ﷺ: كنت نهيتكم عن لحوم الأضاحى فكلوا منها وادّخروا، فثبت بمجموع الكتاب العزيز والسنة أن المستحب ماقلنا ...... وله أن ينتفع بجلد أضحيته فى بيته بان يجعله سقاءً أو فروًا أو غير ذلك لما روى عن سيّدتنا عائشة رضى الله تعالى عنها انها اتخذت من جلد أضحيتها سقاءً، ولأنه يجوز الانتفاع بلحمها فكذا بجلدها. (بدائع الصنائع ٣: ٢٢٣ كتاب التضحية، ما يستحب فى الأضحية)

**جواب**: د قربانۍ څرمن خپله استعمالول جائز دي: خو غوره داده چې صدقه کړای شي، که خرڅه یې کړي؛ نو د اکثرو عالمانو په نزد روپۍ غریبانانو ته ورکول پکار دي، ﴿۱﴾ د بعض عالمانو په نزد هر خیر کار کې یې مصرفول جائز دي. ﴿۲﴾ والأولُ هو الأحوطُ . وهوالموفق

## د قربانۍ په څرمن کې صدقه غوره ده اګر که په مالدارو وي

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د قربانۍ د څرمنې اصلي مصرف څه دی؟ ایا په جومات کې مصرفول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مهربان پبی ..... ۱۹۷۵ م / ۱۱/۲۶/

**جواب**: د قربانۍ په څرمنو کې غوره دا ده چې صدقه شي اګر که په مالداره خلکو وي، دا هم روا دي چې خپله ترې د اوبو مشکیزه جوړه کړي، ﴿۳﴾ د خرڅولو په صورت کې زیاتره اکابر په دې رایه دي چې تصدق علی المساکین غوره دی، ﴿۴﴾ او ځیني اکابر وایي چې په هر خیر کار کې یې مصرفول

﴿۱﴾ فی الخانیة: لا بأس بأن ینتفع بإهاب الأضحیة أو یشتری بها الغربال أو المنخل ولا بأس بأن یتخذ من جلد الأضحیة فروًا او بساطًا او متکئًا یجلس علیه.
(فتاوی خانیة علیٰ هامش الهندیة ۳: ۳۵۴ کتاب الأضحیة)

﴿۲﴾ یدل علیه ما قال العلامة ابن نجیم رحمه الله تعالیٰ: ولو باعها بالدراهم لیتصدق بها جاز لأنه قربة كالتصدق بالجلد واللحم. (البحر الرائق ۸: ۱۷۸ کتاب الأضحیة)

﴿۳﴾ فی مجمع الأنهر: ویتصدق بجلدها أو یعمله آلة کجراب اوخف او فرو او یشتری به ما ینتفع به مع بقائه کغربال ونحوه لا مایستهلک کخل وشبهه فإن بدل اللحم والجلد به یتصدق به. (مجمع الأنهر ۴: ۱۷۴ کتاب الأضحیة)

﴿۴﴾ قال العلامة محمود حسن رحمه الله تعالیٰ: الجواب: دقربانۍ څرمن، دقربانۍ غوښه اودعقیقې دغوښې تولو یو حکم دي؛ عالم، امي، شتمن، غریب ټولو ته اخیستل. حاشیه په بل مخ باندي

جائز دي، ﴿۱﴾ فالأولُ هو الأحوطُ والثاني هو الأوسعُ ولَمْ أجِدهُ صريحاً مع تتبع بليغ. وهو الموفق

## څرمن د نورو مسكينانو په نسبت د دين طالبانو ته وركول زيات غوره دي

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ په كلي كې د لوى اختر په ورځ د قرباني څرمنې يو ځاى جمع كيږي، ددې څرمنو روپۍ بيا د كلي په مسافرو ديني طالبانو باندې مصرفيږي، زيد وايي چې دا كار بنه نه دى، بلكې غوره دا ده چې د قرباني څرمن مؤذن ته وركول شي، عمر وايي چې طالبان غوره دي، ځكه چې دوى د ديني علومو زده كړه كوي او مؤذن خو د خپل كار په اندازه تنخا لري، پلاربې هم په دې كلي كې دى هغه هم دوه سوه روپۍ تنخا لري، اوس زيد په حقه دى او كه عمر؟ بينوا توجروا

المستفتي: سيد ثناء الله كوئټه بلوچستان ..... ۱۹۷۲م / ۶ /۵/

**جواب:** فقهاء كرامو ليكلي دي: چې دا روپۍ دي صدقه كړي او مسكينانو ته دي وركړي، ﴿۲﴾ په نسبت سره نورو مسكينانو ته بيا په ديني طالبانو او

---

باقي حاشيه او وركول صحيح دي، هيڅ څوك پكې خاص نشته، څوكه د قرباني څرمن خرڅه شي بيا بې قيمت كوم غريب او مسكين ته وركول واجب دي (فتاوی محموديه ۱۷: ۴۷۰)

﴿۱﴾ في تبيين الحقائق: ولو باعها بالدراهم ليتصدق بها جاز لأنه قربة كالتصدق بالجلد واللحم. (تبيين الحقائق ۶: ۹ كتاب الأضحية)

﴿۲﴾ في الهندية: ويتصدق بجلدها أو يعمل منه نحو غربال وجراب.
(فتاوی هندية ۵: ۳۰۱ كتاب الأضحية، الباب السادس في بيان مايستحب في الأضحية)

وفي الولوالجية: فإن باع الجلد يتصدق بثمنه لأنه عجز عن التصدق بعينه فيجب التصدق بثمنه. (الفتاوى الولوالجية ۳: ۷۷ كتاب الصيد والذبائح والأضحية)

مجاهدینو باندې مصرفول زیات ثواب لري، د حدیث د تشریح مطابق اوه سوه درجې زیات ثواب لري «۱» وهوالموفق.

## د قرباني د څرمنې په قیمت کې تقرب ضروري دی، تصدق نه

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که کوم سړی د قرباني څرمن خرڅه کړي؛ نو د هغې قیمت صدقه (غریب ېې مالک جوړول) ضروري دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: قطب الدین کینال کالوني بهاولنګر ..... ۱۹۸۷م / ۹ / ۱۶/

**جواب:** د امام زیلعي رحمه الله د کلام نه معلومیږي چې د هغې په قیمت کې تقرب ضروري دی تصدق نه، «۲» وهوالموفق.

## ایا د قرباني په څرمنه کې قبض او تملیک ضروري دی؟

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که د قرباني والا ښه مالدار وي؛ نو د قرباني څرمن په څه شي کې استعمال کړي؟ د کلي یو جومات جوړیږي او څوک ورسره هیڅ مالي مرسته نه کوي، که د جومات په تعمیر او ابادۍ باندې د قرباني د څرمنو قیمت مصرف شي؛ نو څه حکم لري؟

---

«۱» قال النبي ﷺ: من أرسل بنفقة في سبيل الله وأقام في بيته فله بكل درهم سبع مائة درهم ومن غزا بنفسه في سبيل الله وأنفق في وجه ذلك فله بكل درهم سبع مائة الف درهم.
(سنن ابن ماجة ۲۰۳ باب فضل النفقة في سبيل الله تعالى)

«۲» قال العلامة الزيلعي رحمه الله تعالى: ولو باعها بالدراهم ليتصدق بها جاز لأنه قربة كالتصدق بالجلد واللحم.
(تبيين الحقائق ۶ : ۹ كتاب الأضحية)

د قاضي خان په ٣٣٣:٤ کې ذکر دي: لا بأسَ بأنْ ينتفعَ باهاب الأضحية أوْ يشترى بها الغربال أو المنخل و لا بأسَ بأنْ يتخذ منْ جلد الأضحية فرواً أوْ بساطاً أوْ متكئاً يجلس عليه أو يبيعَ جلد الأضحية بشيءٍ منْ متاعِ البيت والثوبِ لنفسه يلبسه أوْ كساء أوْ خفاً أوْ نحو ذلك ، ولو اشترى بجلد الأضحية جراباً جازَ ، دغه راز د خلاصة الفتاوى ٢: ٥٢٨: كتاب الأضحية او فتاوى سراجيه على هامش قاضي خان ٢: ١١٥ عبارتونو نه معلوميږي چې د قرباني څرمن په خپلو کټو کې استعمالول جائز دي. که د سخت ضرورت په وخت کې د جوماتت په ضرورياتو کې استعمال شي؛ نو کوم جواز لري او که نه؟ کله چې يې په غربال او ثياب کې استعمال جائز دی او مالدار ته يې هم ورکول جائز دي؛ نو غريب جوماتت ته يې خو يې بايد په طريقه اولی سره ورکړي؟ بينوا توجروا

المستفتي: حکيم سيد غلام جان مرهتي، رسالپور ..... ١٩٦٩م/ ٣/ ١٣/

**جواب**: د پوره تفتيش وروسته هم راته دا جزئيه چيرته پيدا نه شوه چې د قرباني د څرمنې لپاره قبض او تمليک ضروري دی او که نه؟ خو د زياتره اکابرو عالمانو ميلان په دې دی چې قبض او تمليک شرط دی. ﴿١﴾ ځکه چې فقهاء کرامو د څرمن او د څرمنې د قيمت په اړه د (يتصدقُ) الفاظ استعمال کړي دي. ﴿٢﴾ په صدقه کې تمليک او قبض شرط دی. لأنَّ الصدقة كالهبة صرَّحَ به الفقهاءُ فليراجعْ الى الهداية ٣: ١٤٥ ﴿٣﴾ وغيرها ﴿٤﴾

﴿١﴾ فى إمداد الفتاوى: على هذ په څه کې چې ملکيت او قبضه نه راځي لکه جوماتونه او داسې نور. په ديکښې يې خرچه کول جائز نه دي. (امداد الفتاوى ٣ ٥٣٤)

﴿٢﴾ فى الكنز: ويتصدق بجلدها. (كنز الدقائق على هامش البحر الرائق ٨: ١٧٨ كتاب الأضحية)

﴿٣﴾ فى الهداية: والصدقة كالهبة لاتصح إلا بالقبض لأنه تبرع كالهبة.

الهداية ٣: ٢٩٢ كتاب الهبة، قبيل كتاب الإجارات)

﴿٤﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: والصدقة كالهبة بجامع التبرع وحينئذ لا تصح غير مقبوضة. (الدرالمختار ٤: ٥٨١ كتاب الهبة، فصل فى مسائل متفرقة)

ځيني اکابر عالمان بيا وايي چې په ديکښې تمليك او قبض ضروري نه دی، د تصدق نه مراد په خيريه کار کې استعمالول دي. يدلُ عليه تعليل الهندية ۵: ۳۳۴: ولو باعها بالدراهمِ ليتصدقَ بها جازَ لأنه قربةٌ كالتصدق، انتهى﴿۱﴾قلتُ: وجه الدلالة أنه يدلُّ على أنّ المدارَ على القربة لا على التصدق بخصوصه، دغه راز علامه شامي او نور عالمان ليکي چې د غوښې او څرمني يو حکم دی، (۵: ۲۸۷) ﴿۲﴾ په غوښه کې اباحت صحيح دی او تمليك شرط نه دی، يدلُّ عليه روايةُ أبي داؤدَ: قالَ عليه السلامُ: من شاءَ اقتطعَ﴿۳﴾انتهى وجه الدلالة أنه اباحةٌ لا تمليكٌ لأنَّ تمليكَ المجهول غير صحيحٍ فعلمَ أنّ التمليكَ لا يشترطُ في اللحمِ فكذا في الجلدِ، وأيضاً لما جازَ صرفها لنفسه﴿۴﴾فجازَ صرفها على المسجدِ بأولى ددې اختلاف په بنا احتياط دا دی چې په جومات باندې مصرف نه شي، که مصرف يې کړي؛ نو اميد دی چې کومه ګناه به نه وي. فقط وهو الموفق.

﴿۱﴾(فتاوى هندية ۵: ۳۰۱ كتاب الأضحية، الباب السادس في بيان ما يستحب في الأضحية)

﴿۲﴾في ردالمحتار: (فإن بيع اللحم أو الجلد به الخ)، أفاد أنه ليس له بيعهما بمستهلك وأن له بيع الجلد بما تبقى عينه وسكت عن بيع اللحم به للخلاف فيه...... والصحيح كما في الهداية وشروحها أنهما سواء في جواز بيعهما بما ينتفع بعينه دون ما يستهلك.

(ردالمحتار ۵: ۲۳۱ كتاب الأضحية)

وفي الفتاوى الولواجية: وأما اللحم فالجواب فيه كالجواب في الجلد.

(الفتاوى الولواجية ۳: ۷۷ كتاب الصيد والذبائح والأضحية، الفصل الرابع)

﴿۳﴾عن عبد الله بن قرط عن النبي ﷺ قال: فلما وجبت جنوبها قال فتكلم بكلمة خفية لم أفهمها فقلت ما قال قال: من شاء اقتطع.

(سنن أبي داؤد ۱: ۲۴۵ كتاب المناسك، باب الهدى إذا عطب قبل أن يبلغ)

﴿۴﴾في الدر المختار: ويتصدق بجلدها أو يعمل منه نحو غربال أو جراب وقربة وسفرة ودلو أو يبدله بما ينتفع به باقيا. (الدرالمختار ۵: ۲۳۱ كتاب الأضحية)

## د قربانۍ څرمن د مړي په کفن خرچه کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قربانۍ څرمن خرڅول او د مړي لپاره پرې کفن اخیستل یا په جوماتو کې مصرفول څه حکم لري؟ دغه راز څه تملیك پکښې ضروري دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۳۹۲م / محرم الحرام / ۱۵/

**جواب:** لم أجدهُ صريحاً واختلفَ فيه أكابرُ العلماءِ قالَ البعضُ بعدمِ الاجزاء لأنَّ حكمَ هذه الدراهم التصدق صرح به فى الهندية﴿۱﴾و رد المحتار﴿۲﴾وغيره ، والصدقةُ كالهبةِ لا تتم الا بالقبضِ﴿۳﴾والمسجدُ لايتأتى منهُ القبضُ،وقالَ البعضُ المرادُ من التصدقِ التقربُ سواءٌ كانَ تمليكاً أوْ غيرَ تمليك كما يشيرُ اليه تعليل الهندية ۵:۳۳۴:حيثُ قالوا ولو باعها بالدراهمِ ليتصدقَ بها جازَ لأنه قربة﴿۴﴾

---

﴿۱﴾ فى الهندية: ويتصدق بجلدها أو يعمل منه نحو غربال وجراب.

(فتاوى هندية ۵: ۳۰۱ كتاب الأضحية، الباب السادس)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: ويتصدق بجلدها أو يعمل منه نحو غربال وجراب وقربة.

(الدرالمختار ۵: ۲۳۱ كتاب الأضحية)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: والصدقة كالهبة بجامع التبرع وحينئذ لا تصح غير مقبوضة.

(الدرالمختار ۴: ۵۸۱ كتاب الهبة، فصل فى مسائل متفرقة)

﴿۴﴾ (فتاوى هندية ۵: ۳۰۱ كتاب الأضحية، الباب السادس)

فافهمْ وتدبرْ ، قلتُ ويؤيده ما روى أنَّ النبى صلى الله عليهِ وسلمَ قالَ بعدَ الذبحِ: منْ شاءَ اقتطعَ﴿١﴾وهى اباحةٌ وليسَ بتمليك لأنَّ تمليك المجهــولِ لا يصحُ﴿٢﴾وحكمُ اللحمِ والجلدِ واحدٌ﴿٣﴾وقلتُ أيضاً الهدايا كالضحايا﴿٤﴾ والتعاملُ فيها بالاباحةِ دونَ التمليك ولوكانَ التصدقُ مقتضياً للتمليك فيلزمُ الحرجَ على الحجاجِ فقط ـ وهوالموفق

## د قربانئ په څرمنو قوم ته ديګونه اخيستل

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که يو غريب يا مالدار سړی راشي او خپل قوم ته ووايي چې تاسو د خپلو قربانيو څرمنې ماته راکړئ زه به تاسو ته وربانديږ ديګونه واخلم او په هر غم او ښادی کې به ترې ټول قوم په شريکه کټه اخلو، ټول قوم ورته په اتفاق د قربانيو څرمنې ورکړي،

﴿١﴾ عن عبد الله بن قرط عن النبى ﷺ قال: ...... فلما وجبت جنوبها قال فتكلم بكلمة خفية لم أفهمها فقلت ماقال قال: من شاء اقتطع.

(سنن أبى داؤد ٢٣٥ كتاب المناسک، باب الهدى إذا عطب قبل أن يبلغ)

﴿٢﴾فى درر الحكام شرح مجلة الأحكام: يلزم أن يكون المال الموهوب الذى هو عين معلومًا ومعينًا...... لأن تمليک المجهول ليس صحيحا.

(درر الحكام شرح مجلة الأحكام ٧: ٣٨٧ كتاب الهبة، المادة: ٨٥٨)

﴿٣﴾فى مجمع الأنهر: واللحم بمنزلة الجلد فى الصحيح حتى لا يبيعه بما لا ينتفع به إلا بعد الاستهلاک. (مجمع الأنهر ٤: ١٧٤ كتاب الأضحية)

﴿٤﴾فى الهداية: ولايجوز فى الهدايا إلا ماجاز فى الضحايا لأنه قربة تعلقت بإراقة الدم كالأضحية فيختصان بمحل واحد.

(الهداية ١: ٣٠٠، كتاب الحج، باب الهدى)

اوس یو دیني عالم راغلی او هغه وایي چې ستاسو دا کار په شریعت کې ناجائز دی، ایا دده دا قول صحیح دی او که نه؟ که صحیح وي نو ددې څرمنو سره به څه کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا الحاج فضل الرحمن علاقه مهمند دویزی

**جواب:** که دې سرې په څرمنو باندې د دیګونو اخیستلو اراده کړې وي یا یې اخیستي وي جائز دي، لما فی الدر المختار : أوْ یبدله بما ینتفعُ به باقیـاً«۱» که چیرې دې سرې څرمني خرڅې کړي وي؛ نو حکم یې د زیاتره اکابرو عالمانو په نزد دا دی چې په غریبانانو دي تقسیم کړي، لما فی الدر المختار : فانْ بیـع اللحم أو الجلد به أی بمستهلك أوْ بدراهمَ تصدقَ بثمنه«۲»و فی موضعٍ آخرَ : الصدقةُ کالهبة لا تصحُّ غیر مقبوضةٍ انتـهی،«۳» په دې یاد صورت کې تصدق علی الفقراء نه راځي، ددې وجې دا معامله شرعاً ناجائز ده، او ځینو عالمانو د څرمنې په اړه د فقهاء کرامو دا عبارت لیکلی دی: ویتصدقُ بجلدها أوْ یعمل منه نحو غربال وجراب أوْ یبدله بما ینتفعُ به لا بمستهلك فـانِ بیـعَ اللحم أوِالجلد به أوْبدراهمَ تصدق بثمنه«۴»د تصدق نه مراد صرف قرابت دی نه تصدق علی الفقراء، یدلُّ علیه تعلیل الهندیة : ولو باعها بالدراهمِ لیتصدقَ بها جازَ لأنه قربة کالتصدقِ،انتهی«۵»و وجه الدلالة ظاهرٌ لأنه أدارَ الحکمَ علی القربة، که د تصدق لفظ د قبض او تملیك تقاضا وکړي؛ نو د حاجیانو دا عمل

«۱،۲» (الدرالمختار ۵: ۲۳۱ کتاب الأضحیة)

«۳» (الدر المختار ۴: ۵۸۱ کتاب الهبة، فصل فی مسائل متفرقة)

«۴» (الدرالمختار ۵: ۲۳۱ کتاب الأضحیة)

«۵» (فتاوی هندیة ۵: ۳۰۱ کتاب الأضحیة، الباب السادس)

چې د قرباني حيوانات په خپل ځای باندې پربږدي جائز نه دي، لأنهم لم يتصدقوا ولم يعملوا منها نحو غربالٍ ولم يبدلوها بما ينتفعُ به ، كه په څرمنو کې قبض او تمليک ضروري وګڼل شي؛ نو فقهاء کرامو تصريح کړې چې د غوښې او څرمني يو حکم دی، ﴿۱﴾ حال دا چې په غوښه کې تمليک ضروري نه دی، بلکې اباحت هم پوره دی، لحديثٍ رواهُ أبوداؤدَ:منْ شاءَ اقتطعَ﴿۲﴾ و تمليك المجهول لا يصحُ﴿۳﴾ دغه راز د يتصدقُ کوم لفظ چې په روپو کې استعمال شوی دی، د تمليک تقاضا به ونه کړي، نو احتياط د اکابرو عالمانو په قول عمل کول دي. د ځينو عالمانو د تحقيق په وجه د سخت مخالفت نه انکار بېه نه دی. فقط ، واللهُ أعلمُ بالصواب

## په څرمنه د کور شيان اخيستل روا دي

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که څوک د قرباني په څرمنې د کور ځينې ضروري شيان واخلي؛ نو څه حکم لري؟بينوا توجروا

المستفتي قطب الدين کېنال کالونی بهاولنګر ..... ۱۹۷۸ م/ ٦/ ۱۹/

﴿۱﴾ فی الهندية: واللحم بمنزلة الجلد فی الصحيح حتٰی لا يبيعه بما لاينتفع به إلا بعد الاستهلاک.(فتاوی هندية ٥: ۳۰۱ کتاب الأضحية ، الباب السادس)

﴿۲﴾ عن عبد الله بن قرط عن النبی ﷺ قال:...... فلمّا وجبت جنوبها قال فتكلّم بكلمة خفية لم ألهمها فقلت ما قال قال: من شاء اقتطع.
(سنن أبی داؤد ۱ :۲٤٥ کتاب المناسک، باب الهدی إذا عطب قبل أن يبلغ)

﴿۳﴾ فی درر الحكام: يلزم أن يكون المال الموهوب الذی هو عين معلومًا ومعينًا...... لأن تمليک المجهول ليس صحيحا.
(درر الحكام ٧ :۲۸٧ کتاب الهبة، المادة:٨٥٨)

**جواب**: په څرمنه ددې شیانو اخیستل روا دي، نه د څرمنې په قیمت. «۱» وهو الموفق.

## امام ته په اجرت کښې د قربانۍ څرمن ورکول

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې امام ته په اجرت کښې قرباني ورکول جائز دي او که ناجائز؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**جواب**: د امامتی په بدل کښې یې ورکول ناجائز دي. «۲» کله چې امام ته په واضحه الفاظو کښې صدقه او اجرت نفی شو؛ نو د کراهت او عدم جواز به څه وجه نه وي. معَ أنَّ المعتبرَ قولُ الدافعِ کمافی التکملة ۱: ۳۵۹ «۳» وهو الموفق.

---

«۱» فی الهدایة: ولا بأس بأن یشتری به ما ینتفع به فی البیت بعینه مع بقائه استحساناً. (الهدایة ۴: ۴۵۰ کتاب الأضحیة)

وقال العلامة الشامی رحمه الله تعالیٰ: (قوله أو یبدله بما ینتفع به باقیًا) لقیامه مقام المبدل فکأن الجلد قائم معنی بخلاف المستهلک. (ردالمحتار ۵: ۲۳۱ کتاب الأضحیة)

«۲» قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالیٰ: ولا یعطی أجر الجزار منها لأنه کبیع.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: لأنه کلا منهما معاوضة...... لقوله علیه الصلوٰة والسلام لعلیّ رضی الله تعالیٰ عنه: تصدق بجلالها وخطامها ولا تعط أجر الجزار منها شیئاً. (ردالمحتار مع الدر المختار ۵: ۲۳۱ کتاب الأضحیة)

وفی حاشیة الشلبی: ولا یعط أجرة الجزار الخ أما لو أعطاه لفقره أو علی وجه الهدیة فلا بأس به. (حاشیة الشلبی علی تبیین الحقائق ۶: ۹ کتاب الأضحیة)

«۳» (تکملة ردالمحتار ۱: ۳۹۱ مطلب واقعة الفتوی)

وقال العلامة ابن البزاز الکردری رحمه الله تعالیٰ: والعبرة لنیة الدافع لا لعلم المدفوع إلیه. (فتاوی بزازیة علی هامش الهندیة ۴: ۸۶ باب المصرف)

## مالدار امام ته د قربانی څرمن ورکول

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې صاحب نصاب (مالدار) امام ته د قربانی څرمن ورکول څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: ماسټر عبد الرحیم پیې نونبار ...... ۱۹۸۸ م / ۷ / ۱۳/

**جواب**: د قربانی غوښه او څرمن یو حکم لري. ﴿۱﴾ په غریب او مالداره دواړو باندې یې مصرفول جائز دي، ﴿۲﴾ خو دومره ده چې هغه ته یې په مزدوری کې ورکول ناجائز دي. ﴿۳﴾ د نېکی په وجه یې ورکول جائز دي ﴿۴﴾ وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ فی الهندیة: واللحم بمنزلة الجلد فی الصحیح حتی لا یبیعه بما لا ینتفع به إلا بعد الاستهلاک. (فتاوی هندیة ۵: ۳۰۱ کتاب الأضحیة، الباب السادس)

﴿۲﴾ فی الهدایة: ویأکل من لحم الأضحیة ویطعم الأغنیاء والفقراء ویدخر لقوله علیه السلام کنت نهیتکم عن أکل لحوم الأضاحی فکلوا منها وادخروا ومتی جاز أکله وهو غنی جاز أن یوکل غنیا.

(هدایة ۴: ۴۵۰ کتاب الأضحیة)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: ولا یعطی أجر الجزار منها لأنه کبیع،

وقال العلامة الشامی رحمه الله تعالی: قوله لأنه کبیع لأن کلا منهما معاوضة.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۵: ۳۲۱ کتاب الأضحیة)

﴿۴﴾ عن انس رضی الله تعالی عنه أن رجلا من کلاب سأل النبی ﷺ عن عسب الفحل فنهاه فقال یا رسول الله إنا نطرق الفحل فنکرم، فرخص له فی الکرامة.

(سنن الترمذی ۱: ۲۴۲ باب ماجاء فی کراهیة عسب الفحل)

## امام ته د مېلمستیا یا نېکۍ په خاطر د قربانۍ څرمن ورکول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ په کلي کې يو امام صاحب د جنازې پرمهال تقریر کې وویل اې کلیوالو! تاسو د قربانۍ ټولې څرمنې خپل امام ته ورکړئ؛ ځکه چې دا د هغه حق دی. بل مولوي صاحب ورته وویل: چې دا د غریبانانو حق دی. په دې اړه موږ ته مسئله روښانه کړئ! بینوا توجروا

المستفتي: محمد یونس ..... ۱۹۸۵م / ۹ / ۲۹ /

**جواب:** امام ته په تنخا کې د قربانۍ څرمن ورکول ناروا دي،《۱》 لیکن د امام سره د نېکۍ (هَلْ جَزَاءُ الْإِحْسَانِ إِلَّا الْإِحْسَانُ)《۲》 یا د عزت له خاطره ورکول جائز دي،《۳》 برابره خبره ده چې مالدار وي او که غریب، د غوښې او څرمنې یو حکم دی، د شامي څخه راخیستل شوی《۴》 وهو الموفق.

《۱》 قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: ولا يعطى أجر الجزار منها شيئاً، والنهى عنه نهى عن البيع لأنه فى معنى البيع لأنه يأخذه بمقابلة عمله فصار معاوضة كالبيع.

(البحر الرائق۸:۱۷۸ كتاب الأضحية)

《۲》 (سورة رحمن آيت: ۶۰ پاره:۲۷)

《۳》 عن أنس رضى الله تعالى عنه أن رجلاً من كلاب سئل النبى ﷺ عن عسب الفحل فنهاه فقال يا رسول الله! إنا نطرق الفحل فنكرم، فرخص له فى الكرامة.

(سنن الترمذى ۱: ۵۳ باب ماجاء فى كراهية عسب الفحل)

وفى حاشية الشلبى: ولا يعط أجرة الجزار الخ أما لو أعطاه لفقره أو على وجه الهدية فلا بأس به.

(حاشية الشلبى على تبين الحقائق ۲: ۹ كتاب الأضحية)

《۴》 قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: فإن بيع ..... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

## د قرباني څرمن امام ته په صدقه کې ورکول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ امام صاحب ته دې الله تعالى هدايت وکړي د څو کالو راهيسې د قرباني څرمنې اخلي، که څوك يې ورنه کړي؛ نو بيا خفه کيږي. ايا امام ته د قرباني څرمن ورکول جائز دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم..... ١٩٧١م / ٢ / ١٩/

**جواب:** د قرباني څرمن د نيکۍ او صدقې په نيت امام ته ورکول جائز دي، د اجرت او مزدورۍ په نيت يې ورکول ناجائز دي، ،د رد المحتار نه اخيستل شوی، ﴿١﴾ وهو الموفق.

---

(بقيه حاشيه) اللحم أو الجلد به أي بمستهلک أو بدراهم تصدق بثمنه..... ولا يعطى أجر الجزار منها لأنه کبيع. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله فإن بيع اللحم أو الجلد به الخ) أفاد أنه ليس له بيعهما بمستهلک وأن له بيع الجلد بما تبقى عينه وسکت عن بيع اللحم للخلاف فيه..... والصحيح کما في الهداية وشروحها أنهما سواء في جواز بيعهما بما ينتفع بعينه دون ما يستهلک.

(ردالمحتار ٥: ٢٣١ کتاب الأضحية)

﴿١﴾ قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالى: ويتصدق بجلدها..... ولا يعطى أجر الجزار منها لأنه کبيع. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله لأنه کبيع) لأن کلا منهما معارضة لأنه إنما يعطى الجزار بمقابلة جزره والبيع مکروه. (ردالمحتار ٥: ٢٣١ کتاب الأضحية)

وفي حاشية الشلبي: ولا يعط اجرة الجزار الخ اما لو اعطاه لفقره أو على وجه الهدية فلا بأس به. (حاشية الشلبي على تبيين الحقائق ٦: ٩ کتاب الأضحية)

## استاذ ته په تنخا کې د قرباني څرمن ورکول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې قرباني د مسافرو طالبانو نه بغير د هغوی استاذ ته په تنخا کې ورکول جائز دي او که خامخا په طالبانو باندې يې مصرف کړو؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد اکرم تحصيل بزمان ضلع بهاميرا ..... ١٩٦٩م/٢/٨/

**جواب:** د قرباني څرمن او قيمت به يې خامخا صدقه کوي. ﴿١﴾ چا ته يې په مزدوری کې ورکول ناجائز دي. ويدلّ عليه ما روی أنْ لا أعطی الجزارَ منها (متفقٌ عليه) ﴿٢﴾ وهوالموفق.

## د قرباني د څرمنې، واجب صدقې او زکات بهترين مصرف

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قرباني لپاره ښه او بهترين مصرف جوماتونه دي او که نه؟ د صدقو او زکات لپاره ښه مصرف کوم ځای دی؟

**يادونه:** د جومات امام صاحب وويل: چې جومات د مسلمانانو عبادت ګاه ده؛ نو ځکه دا ددې شيانو بهترين مصرف دی. بينوا توجروا

المستفتي: فقير خان مصری بانډه نوښار

**جواب:** په شرط ددې چې رښتيا وي، دپورته يادشوو صدقو، دقرباني د څرمنې او زکات بهترين مصرف هغه دی چې خدای او رسول صلی الله عليه و سلم

﴿١﴾ فی مجمع الأنهر: ويتصدق بجلدها او يعمله آلة كجراب أوخف أو فرو أو يشتری به ما ينتفع به مع بقائه كغربال ونحوه لا ما يستهلك كخل وشبهه فإن بدل اللحم والجلد به يتصدق به.(مجمع الأنهر،٣: ١٧٣ كتاب الأضحية)

﴿٢﴾عن علی رضی الله تعالی عنه قال: أمرنی رسول الله ﷺ ان اقوم علی بُدنه وان أتصدق بلحمها وجلودها واجلتها وأن لا أعطی الجزار منها قال نحن نعطيه من عندنا ، متفق عليه. (مشكوة المصابيح ٢٣٢ باب الهدی)

بیان کړي وي، د الله جل جلاله فرمان دی: ﴿ إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ﴾ یعني د زکات، صدقې او د قرباني څرمنې بهترین مصرف غریبانان او مسکینان دي، جومات نه دی، بیا په غریبانو کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم خپلوانو ته زیاته ترجیح ورکړه، یعنې که ورور او خور غریبانان وي؛ نو د زکات، صدقې او د قرباني څرمنه لومړی باید دوی ته ورکړل شي. جومات ته ورنه کول شي.

د صحیح مسلم شریف روایت دی. قالَ أنسٌ رضى الله عنه فلما نزلت هذه الآيةُ : ﴿ لَن تَنَالُواْ الْبِرَّ حَتَّى تُنفِقُواْ مِمَّا تُحِبُّونَ ﴾ ، قامَ أبو طلحةَ رضى الله عنهُ الى رسول الله صلى الله عليه وسلم، فقالَ انّ الله عزوجلّ يقولُ فى كتابه ﴿ لَن تَنَالُواْ الْبِرَّ حَتَّى تُنفِقُواْ مِمَّا تُحِبُّونَ ﴾ وانّ أحبَّ أموالى الى بيرحاء و انها صدقةٌ لله أرجوا برها و ذخرها عند الله فضعها يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! حيثُ شئتَ! قالَ رسول الله صلى الله عليه وسلم: بخ! ذلك مالٌ رابحٌ ، ذلك مالٌ رابحٌ، قد سمعتُ ما قلتَ فيها ، وانى أرى أنْ تجعلها فى الأقربينَ فقسمها أبو طلحة فى أقاربه وبنى عمه . په فتح الملهم کې مولانا شبیر احمد عثمانی رحمه الله فرمایي قوله أنْ تجعلها فى الأقربين الخ فيه أنَّ الصدقةَ على الأقارب أفضلُ منَ الأجانب اذا كانو محتاجينَ، د فتح الملهم د دې تشریح نه معلومیږي چې که خپلوان (ورور او خور یا نور ...) غریبانان وي، د جومات ملا او جومات اګر که د بر غریبانان وي بیا هم دا د دې صدقو او زکاتو نه مصرف دي، د قرباني د څرمنو په اړه بخاري شریف کې د حضرت علي رضی الله عنه نه یو روایت نقل دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ما ته حکم وکړ: د قرباني څرمن په مسکینانو باندې تقسیم کړه؛ دا قصاب ته په مزدوری کې مه ورکوئ، دغه روایت مسلم او ابوداؤد هم روایت کړی دی.

**یادونه**: د دې روایت له مخې بهترین مصرف غریبانان دي جومات نه دی. په جومات باندې د قرباني څرمنې مصرفېدای هم نشي، لکه څنګه چې د جومات امام ویلي، په جوماتونو کې زیاتره وخت کم علمه خلک امامان وي چې د قرآن او حدیث

له علومو بې خبره وي، داسي خلکو ته پکار دي چې سوال کوونکي ته غلط ځواب ورنه کړي، یا دي دارالعلوم حقانیه ته راولېږي او یا دي د دارالعلوم جامعه اسلامیه نه ځان پوه کړي. والله أعلمُ

**المجیبُ:** مولانا عزیز الحق سابق مفتی بادشاهي مسجد لاهور حال مقیم مصري بانډه

**جواب:** (**الف**) محتاجه امامان په جومات وړاندې دي. ﴿۱﴾ د کلي په خلکو لازم دي چې امام ته معلومه تنخا ورکړي، زکاتو او خیراتونه په خپلو غریبانانو مصرف کړي.

(**ب**) زیاتره اکابر عالمان وايي چې د قرباني په څرمنه کې تملیك ضروري دی. لهذا په جومات کې یې مصرفول نه دي صحیح. ﴿۲﴾ ځکه چې فقهاؤ لیکلي دي و یتصدقُ بجلدها﴿۳﴾وفی رد المحتار قبیلَ باب الرجوعِ فی الهبة : والصدقة کالهبةِ﴿۴﴾ په هبه کې تملیك ضروري دی، ﴿۵﴾ ددې له امله په صدقه کې هم تملیك ضروري دی، د ځینو اکابرو قول بیا دا دی چې په هر خیر کار کې یې مصرفول جائز دي . یدلُّ علیه تعلیلُ الهندیة : ولوْ باعها بالدراهمِ لیتصدقَ

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی وقید بالولاد لجوازه لبقیة الأقارب کالإخوة والأعمام والأخوال الفقراء بل هم أولی لأنه صلة وصدقة وفی الظهیریة: ویبدأ فی الصدقات بالأقارب ثم الموالی ثم الجیران. (ردالمحتار ۱ :۲۹ باب المصرف)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: ویشترط أن یکون الصرف تملیکًا لا إباحةً کما مرّ لا یصرف إلی بناء نحو مسجد. (الدرالمختار ۲:۲۸ باب المصرف)

﴿۳﴾(فتاوی هندیة ۵: ۳۰۱ کتاب الأضحیة، الباب السادس)

﴿۴﴾ (ردالمحتار ۳: ۵۸۱ کتاب الهبة، فصل مسائل متفرقة)

﴿۵﴾ قال العلامة خالد الأتاسی رحمه الله تعالی: القبض فی الهبة کالقبول فی البیع بناء علیه تتم الهبة إذا قبض الموهوب له فی مجلس الهبة المال الموهوب.

(شرح المجلة ۳:۳۵۳، المادة: ۸۴۱ کتاب الهبة)

بها جازَ لأنّه قربةٌ كالتصدقِ ٥: ٣٣٤: ﴿١﴾ دغه راز که تمليك ضروري وي؛ نو حاجيان به د خپلو هدايااوو سره څه کوي؟ فقط وهو الموفق.

## د قرباني څرمن په جومات باندې مصرفول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قرباني څرمن په جومات باندې مصرفول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي عبد الرزاق لوند خوړ مردان ..... ۱۹۶۹ م/ ۲/ ۱۳/

**جواب:** د زياتره فقهاؤ په نزد د تصدق نه مراد دا دی چې غريب او مسکين ته دي ورکړل شي، لهذا په جومات باندې يې مصرفول بـه نه دي، في الهندية : لو باعها بالدراهمِ ليتصدقَ بها جازَ لأنّه قربةٌ ٥: ٣٣١،﴿٢﴾قلتُ : صرحوا أيضاً بكـونِ الصدقةِ كالهبةِ في اقتضاء التمليك﴿٣﴾ دځينوعالمانو رايه بيا دا ده چې پـه هرځای کې د تصدق نه مراد تمليك نه وي او دا اطلاق په قرآن ﴿۴﴾ او حديث ﴿۵﴾ کې راغلی دی، ځکه چې په هر خير کار باندې د تصدق اطلاق کيږي، ددې عبارتونو

﴿١﴾ (فتاوى هندية ٥: ٣٠١ كتاب الأضحية، الباب السادس)

﴿٢﴾ (الفتاوى هندية ٥: ٣٠١ كتاب الأضحية، الباب السادس في بيان ما يستحب في الأضحية)

﴿٣﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: والصدقة كالهبة بجامع التبرع وحينئذ لا تصح غير مقبوضة. (الدر المختار على هامش الطحطاوى ٤: ٤٠٩ كتاب الهبة، فصل في مسائل متفرقة)

﴿۴﴾ د قصاص په اړه الله ﷻ ارشاد دی :وَأَنْ تَصَدَّقُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ۔
ژباړه ستاسو صدقه کول (دا چې له قاتل څخه قصاص وانخلی) ستاسو لپاره غوره عمل دی (سورة البقرة آيت: ۲۸۰

﴿۵﴾ عن ابى سعيد الخدرى رضى الله تعالى عنه ان رسول الله ﷺ ابصر رجلا يصلى وحده فقال: الا رجل يتصدق على هذا فيصلي معه.

(سنن ابى داؤد ١: ٨٥ كتاب الصلوة، باب في الجمع في المسجد مرتين)

اخري معنی مراد ده. د فتاوی هندیه تعلیل هم دې طرف ته اشاره کړې ده، لأنه قالَ جازَ لأنه قربةٌ و لَمْ یقلْ لأنه تصدق . وهوالموفق

## د قربانی څرمن په جومات نه خرچه کول زیات احتیاط دی

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې ځینې خلك وایي: د قربانی څرمن په جومات باندې خرچه کولای شي او ځینې وایي چې نه یې شي خرچه کولای، مورِ ته ددې مسئلې حقیقت څرګند کړئ! بینوا توجروا

المستفتي: محمد صفدر پېښوری متعلم دار العلوم حقانیه ....١٣٩٧ هـ/ ذی القعده/ ٢٥/

**جواب:** واضحه دې وي چې د قربانی د څرمنې په اړه فقهي عبارت (و یتصدقُ) لفظ راغلی دی، ﴿١﴾ د (علی الفقراء ) لفظ نه دی روایت شوی دی، ددې وجې د امت عالمان او اکابر په خپل منځ کې سره اختلاف لري، د زیاتره عالمانو رایه دا ده چې په دیکښې تملیك ضروري دی، په جومات باندې یې مصرفول ناجائز دي، ﴿٢﴾ وعللوهُ بأن صرفها منَ الواجباتِ و مصارفُ الواجباتِ هی مصارفُ الزکوة ، او ځینې اکابر وایي چې په جومات یې هم مصرفولای شي، و عللــوهُ بأن حکمها التقرب کما یدلُ علیه تعلیلُ الهندیة حیثُ قالوا:ولو باعها بالدراهمِ لیتصدقَ بها جازَلأنه قربةٌ کالتصدقِ کذا فی التبیینِ﴿٣﴾ انتهی،قلتُ:وجه الدلالـة أنه لَمْ یقلْ لأنه تصدق أیضاً معَ کونه أخصرَ و یمکنُ أنْ یجابَ عنْ تعلیلِ

﴿١﴾ فی البحر: ویتصدق بجلدها أویعمل منه نحو غربال أوجراب لأنه جزء منها وکان له التصدق والانتفاع. (البحر الرائق ٨:١٧٨ کتاب الأضحیة)

﴿٢﴾ فی إمداد الفتاوی: علی هذا په څه کې چې ملکیت اوقبضه نه راځي لکه جوماتونه او داسې نور.. په دیکښې یې خرچه کول جائز نه دي (امداد الفتاوی:٣:٥٣٤ کتاب الذبائح

﴿٣﴾ (فتاوی هندیة٥: ٣٠١ کتاب الأضحیة ، الباب السادس)

المانعين بأنَّ المرادَ من الواجباتِ واجباتُ الاسلامِ وهي سبعةٌ وقلتُ : أيضاً لما جازَصرفها الى نفسه«۱»فكيفَ لا يصحُ صرفها على المسجد ؟ فالأولُ أحوطُ والثاني أسعُ . وهوالموفق

## د څرمنې روپۍ د جومات په کوهي، رسۍ، رڼا او ابادۍ کې مصرفول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قرباني د څرمنې روپۍ د جومات په کوهي، رسۍ، رڼا او ابادۍ کې مصرفول جائز دي او که نه؟ د تصدق په باره کې هم لږ وضاحت وکړئ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي محمد يوسف صاحب ضلع مردان

**جواب:** دزکات په باره کې فقهاء کرامو تصريح کړې چې په ديکښې تمليك او قبض ضروري دی ؛ نو زکات په جومات باندې نه مصرفيږي. «۲» خود قرباني د څرمنو کومه صريحې جزئيه نه موندل کيږي، ددې وجې علماء په ديکښې مختلف دي، د ديوبند اکابر عالمان وايي چې څرمن يا د هغې قيمت په جومات نه مصرفيږي، «۳»

---

«۱» قال العلامة ابن نجيم: ويتصدق بجلدها أو يعمل منه نحو غربال أوجراب لأنه جزء منها وكان له التصدق والانتفاع به.

(البحر الرائق ۸:۱۷۸ كتاب الأضحية)

«۲» في الهندية: أما تفسيرها فهي تمليك المال من فقير مسلم غير هاشمي ولا مولاه بشرط قطع المنفعة عن المملّك من كل وجه لله تعالى.

(فتاوى هندية ۱ : ۱۷۰ كتاب الزكاة، الباب الأول في تفسيرها وصفتها)

«۳» قال العلامة اشرفعلي تهانوي رحمه الله په څه کې چې ملکيت اوقبضه نه راځي لکه جوماتونه او داسې نور ... په ديکښې بې خرچه کول جائز نه دي (امداد الفتاوى ۳:۵۳۴ كتاب الذبائح)

ځکه چې فقهاء کرامو د (یتصدق) لفظ استعمال کړی دی.﴿۱﴾والصدقةُ کالهبة فیشترطُ فیها التملیك والقبضُ﴿۲﴾ځینې نور عالمان بیا وایي چې د تصدق نه مراد قربت او د خیر کار دی، د تصدق نه یوازې تصدق علی المساکین مراد نه دی، یدلُّ علیه تعلیل الهندیة : لو باعها بالدراهم لیتصدقَ بها جازَ لأنه قربةٌ کالتصدقِ ،انتهی﴿۳﴾قلتُ:وجه الدلالة انّ هذا التعلیلَ یدلُّ علی أنّ المدارَ علی القربةِ لاعلی التصدقِ ویدلُّ علیه مافی حدیث أبي داوٗد: من شاءاقتطعَ﴿۴﴾وجه الدلالةِ أنّ حکمَ اللحمِ والجلدِ واحدٌ﴿۵﴾وتملیك المجهولِ لایصحُّ﴿۶﴾فکماصحَّ فی اللحمِ عدمُ التملیك فکذافی الجلد ویدلُّ علیه ماتعاملَ

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه تعالٰی: ویتصدق بجلدها أو یعمل منه نحو غربال وجراب وقربة وسفرة ودلو. (الدرالمختار ۵: ۲۳۱ کتاب الأضحیة)

﴿۲﴾قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه تعالٰی: والصدقة کالهبةبجامع التبرع وحینئذ لا تصح غیر مقبوضة. (الدرالمختار ۳: ۵۸۱ کتاب الهبة، فصل فی مسائل متفرقة)

﴿۳﴾ (فتاوٰی هندیة ۵: ۳۰۱ کتاب الأضحیة، الباب السادس فی بیان ما یستحب فی الأضحیة)

﴿۴﴾ عن عبد اللّٰه بن قرط عن النبی ﷺ قال..... فلما وجبت جنوبها قال فتکلم بکلمة خفیة لم أفهمها فقلت ماقال: قال من شاء اقتطع.
(سنن أبی داؤد ۲۴۵ کتاب المناسک، باب الهدی إذا عطب قبل أن یبلغ)

﴿۵﴾ فی الفتاوی الولوالجیة: وأما اللحم فالجواب فیه کالجواب فی الجلد.
(الفتاوی الولوالجیة ۳: ۷۷ کتاب الصید والذبائح والأضحیة، الفصل الرابع)

﴿۶﴾ فی درر الحکام شرح مجلة الأحکام: یلزم أن یکون المال الموهوب الذی هو عین معلومًا ومعینًا...... لأن تملیک المجهول لیس صحیحًا.
(درر الحکام شرح مجلة الأحکام ۲: ۳۸۷ کتاب الهبة، المادة:۸۵۸)

عليه الحجاجَ من ترك الأضاحى فى مكانها ولو دلّ لفظ التصدقِ على التمليك فلزمَ عدم فراغ ذمم الحجاج لأنهمْ لَمْ يستعملوها و لَمْ يملكوها و الاحتياطُ فى أخذِ قولِ الأكابر ولا يناسب الانكار على المخالف ، فقط وهوالموفق.

## د قرباني څرمنه په جومات مصرفولو باندې د اكابرو عالمانو اختلاف

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قربانۍ څرمن په جومات کې مصرفول جائز دي او که نه؟ که يو غريب سړی يې قبول کړي او بيا يې جومات ته ورکړي؛ نو بيا جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولانا شاه سيد پشاور ..... ١٣٩٥ هـ / محرم الحرام / ٢٥/

**جواب:** د قربانۍ د څرمنې يا د هغې قيمت په جومات باندې مصرفولو لپاره کومه صريحي جزئيه نشته. ددې وجې خو اکابر عالمان هم په خپل منځ کې سره اختلاف لري ، اکثريې منع کوي، ﴿١﴾ لأنّ التصدقَ من الصدقة وهى كالهبة تقتضى التمليك ﴿٢﴾ او بعض اکابر اجازه ورکوي ، لانّ المرادَ منَ التصدقِ القربةُ سواءٌ كانتْ اهلاكاً أوْ اِباحةً أوْ تمليكاً ، كما يشيرُ اليه تعليلُ الامامِ الزيلعى حيثُ قالَ : ولو باعها بالدراهمِ ليتصدقَ بها جازَ لأنّه قربةٌ كالتصدقِ كذا فى التبيينِ ، هندية ٥: ٣٣٤:﴿٣﴾ والاشارةُ أنه لَمْ يقلْ لانه تصدقَ أيضاً معَ كونه أخصرَ ، زيات احتياط په د يکښې دی

﴿١﴾ فى إمداد الفتاوى: على هذا په څه کې چې ملکيت اوقبضه نه راځي لکه جوماتونه او داسې نور.. په ديکښې يې خرچه کول جائز نه دي (امداد الفتاوى ٣:٥٣٤ كتاب الذبائح)

﴿٢﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: والصدقة كالهبة بجامع التبرع وحينئذ لا تصح غير مقبوضة. (الدرالمختار ٢: ٥٨١ كتاب الهبة، فصل فى مسائل متفرقة)

﴿٣﴾ (فتاوى هندية ٥: ٣٠١ كتاب الأضحية، الباب السادس)

چې په جومات باندې مصرف نه شي، که مصرف هم شي انشاء الله چې خاره
به يې خلاصه شي، هذا ما عندی ولعلّ عند غیری أحسنَ منه.وهوالموفق

**د قربانی څرمن په جومات کې مصرفول او د جومات په روپو مناره جوړول**

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قربانۍ څرمن په جومات کې مصرفول جائز دي او که نه؟ دغه راز په دې باندې د جومات ډول اوښايست يا مناره ورباندې جوړول څه حکم لري؟بينواتوجروا

المستفتي: حجاب شاه آف ميان خان ضلع مردان ..... ۱۹۷۲ م / ۲ / ۶

**جواب:** د اکثرو اکابرو عالمانو رايه دا ده چې په جومات به يې نه مصرفوي،《۱》 لأنَّ حكمها التصدقُ والصدقةُ كالهبة لا تتمُّ الا بالقبضِ《۲》او بعض اکابر فرمايي چې دتصدق نه مراد تقرب دی.برابره خبره ده چې د تمليك په صورت کې وي، که داباحت په صورت کې وي او که د اهلاك صورت وي. كمايشيرُ اليه تعليلُ الهندية: ۳۳۴:۵:ولوباعهابالدراهمِ ليتصدقَ بهاجازَلأنّه قربةٌكالتصدق كذا في التبيينِ،《۳》 انتهى ، قلتُ ويؤيده حديث من شاء اقتطعَ《۴》لأنّ

《۱》في الولوالجية: فإن باع الجلد يتصدق بثمنه لأنه عجز عن التصدق بعينه فيجب التصدق بثمنه.

(الفتاوى الولوالجية ۳:۷۷ كتاب الصيد والذبائح والأضحية، قبيل الفصل الربع)

《۲》قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: والصدقة كالهبة بجامع التبرع وحينئذ لا تصح أى لاتتم غير مقبوضة.

(الدرالمختار على هامش الطحطاوى ۳:۴۰۹ كتاب الأضحية)

《۳》(فتاوى هندية ۵:۳۰۱ كتاب الأضحية، الباب السادس فى بيان مايستحب فى الأضحية)

《۴》عن عبد الله بن قرط رضى الله تعالى عنه قال قرب... پاتې حاشيه په بل مخ باندې

حکمَ اللحمِ والجلدِ واحدٌ«۱» فیکفی فی الجلدِ الاباحةُ أیضــاً ؛ د فتوی له مخې جواز راجح معلومیږي او په دیکښې د حاجیانو لپاره هم اساني ده.

(۲) جائز ده چې کله د څو چنده ورکوونکو اجازه معلومه وي «۲» وهوالموفق

## د قرباني څرمن په جوماتـ کې مصرفول او د مولانا غورغشتوي رحمه الله رایه

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زید د قرباني څرمن جومات ته خیراتي ورکړه، بیا د جومات ساتونکي هغه خرڅه کړه او د جومات په ځینو ضروریاتو یې مصرف کړه. ایا شرعا دا کار صحیح دی؟ او زید خپله دا وایي چې مولانا غور غشتوي صاحب په جومات باندې د قرباني د څرمنې مصرفول جائز کړي دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوی عبد الله توروهیر ..... ۱۹۸۶م / ۹ / ۱۱/

**جواب:** دا اختلافي مسئله ده، مولانا غورغشتوي رحمه الله یې د جواز قائل ؤ. ویل به یې د تصدق نه مراد مطلق تقرب دی نه یوازې تملیك بلا عوض. یدلُّ علیه تعلیلُ الزیلعي کمافی

(بقیه حاشیه) لرسول الله ﷺ بدنات خمس أوست فطفقن یزدلفن إلیه بأیتهن یبدأ فلما وجبت جنوبها قال فتکلم بکلمة خفیة لم افهمها فقلت ماقال: قال من شاء اقتطع.

(سنن أبی داؤد ۱ :۲۴۵ کتاب المناسک، باب الهدی إذا عطب قبل أن یبلغ)

﴿۱﴾ فی مجمع الأنهر: واللحم بمنزلة الجلد فی الصحیح.

(مجمع الأنهر ۴: ۱۷۳ کتاب الأضحیة)

﴿۲﴾ فی معارف السنن: قال الشیخ (انورشاه) رحمه الله تعالی: لما راج هذا التزیین والنقش فی هذا العصر والواقفون انفسهم یفعلون ذلک ولاینهون من یفعل فیجوز علی ذلک من مال الواقف أیضًا من غیر ان یضمن المتولی والله اعلم، قال ابن المنیر لما شید الناس بیوتهم وزخرفوها فالندب ان یصنع ذلک بالمساجد صونًا لهم عن الاستهانة.

(معارف السنن ۳: ۳۰۲ باب ماجاء فی بنیان المساجد)

الهندية ۵:۳۳۴: ﴿۱﴾ ولو باعها بالدراهم ليتصدق بها جاز لأنه قربة كالتصدق، انتهى، وجهُ الدلالةِ أنه لم يقلْ لانه تصدق ايضاً مع كونه أخصرَ، والله أعلم.

## د څرمنې په روپو باندې جومات ته تيل او د جنازې کټ اخيستل

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که د قربانۍ څرمن خرڅه شي او جومات ته ورباندې تېل واخيستل شي، ايا دا جواز لري او که نه؟ او په دې باندې د جنازې کټ اخيستل روا دي او که نه؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: مولانا مغفور الله مدرس مدرسه رستم مردان

**جواب:** د ديوبند د اکابرو په نزد دا کار پوره نه دی، ځکه چې فقهاؤ د قربانۍ د څرمنې په اړه د **تصدق** لفظ استعمال کړی دی، فی الدر المختار: فانْ بيعَ اللحمِ أوِ الجلدِ به أی بمستهلك تصدق بثمنه ﴿۲﴾ انتهى، په صدقه کې قبض او تمليک دواړه ضروري دي، لما فی الدر المختار: الصدقةُ كالهبة بجامعِ التبرعِ و حينئذٍ لا تصحُ غير مقبوضة ﴿۳﴾ انتهى، بعض مشائخ فرمايي چې دلته د تصدق نه مراد په خيربه کارکې مصرفول دي. يدلُ عليه استدلالُ الهندية الهندية ۵:۳۳۴: ﴿۴﴾ ولو باعها بالدراهمِ ليتصدقَ بها جازَ لأنه قربةٌ كالتصدق، انتهى، ﴿۵﴾ قلتُ: وجهُ الدلالة ظاهرٌ لأنه يدلُ على أنّ المدارَ على القربةِ ويؤيده ما تعاملَ عليه الحجاجُ سلفاً وخلفاً من تركِ الأضاحی فی مكانها من غيرِ تمليك مع ورودِ لفظِ التصدق فی اللحومِ والجلودِ، فافهمْ! وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ (فتاوی هندية ۵:۳۰۱ كتاب الأضحية، الباب السادس فی بيان مايستحب من الضحايا)

﴿۲﴾ (الدر المختار ۵:۲۳۱ كتاب الأضحية)

﴿۳﴾ (الدر المختار ۳:۵۸۱ كتاب الهبة، فصل فی مسائل متفرقة)

﴿۴﴾ (فتاوی هندية ۵:۳۰۱ كتاب الأضحية، الباب السادس)

## د څرمنې نه د جومات کوهي ته رسۍ جوړول

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د قربانۍ په څرمنه د جومات کوهي ته رسۍ جوړول جائز دي او که نا جائز؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي عبد الرزاق لوند خوړ مردان ..... ۱۹۶۹م/ ۲/ ۱۳/

**جواب**: دقربانۍ دڅرمنې نه دجومات اوکورکوهي ته رسۍ جوړول جائزده. (في الهندية: ۵: ۳۳۱)《۱》ويتصدقُ بجلدها أويعملُ منهُ نحوغربالٍ وجرابٍ وهوالموفق.

## د قربانۍ څرمنه د غريبو کليوالو په جومات مصرفول

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قربانۍ څرمن په جومات باندې مصرفول څنګه دي؟ په داسې حال کې چې د جومات خلك هم غريبانان وي او د جومات کوم امدن هم نه وي؟ بينوا توجروا

المستفتي: سميع الرحمن ګړهي کپوره مردان ..... ۱۹۷۲م/ ۲/ ۸/

**جواب**: مسئله اختلافي ده، 《۲》الصرفُ هوالراجحُ《۳》وعدمه الأحوطُ وهوالموفق.

《۱》 (فتاوی هندية ۵: ۳۰۱ كتاب الأضحية، الباب السادس في بيان مايستحب في الأضحية) (ومثله في الدرالمختار ۵: ۲۳۱ كتاب الأضحية)

《۲》قال العلامة محمود حسن الجنجوهي رحمه الله تعالى: سوال، دقربانۍ څرمن په جوماتونو او مدرسو مصرفول جائزدي او کنه؟

الجواب حامداومصلياً: دقربانۍ دڅرمنې هغه حکم دی کوم چې دزکات دی هغه داسې چې څوك به بې خامخا مالك ګرځوي اوملكيت پكې فرض دی فان بدل اللحم والجلد يتصدق به اي بالبدل لان القربة انتقلت الى بدله فيجبر على التصدق به الخ سكب الانهر فقط. (فتاوی محمودية ۱۷: ۶۲ باب في مصرف جلد الاضحية)

《۳》 يدل عليه مافي التبيين الحقائق: ولو باعها بالدراهم ليتصدق جاز لأنه قربة كالتصدق بالجلد واللحم. (التبيين الحقائق ۶: ۹ كتاب الأضحية)

## د جوماتو لپاره د قرباني په څرمنې شاميانې اخيستل

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې د قرباني، څرمن په جومات كې وركول صحيح دي او كه نه؟ زموږ په خاى كې خلك جومات ته څرمنې وركوي، ايا په دې باندې جومات ته شاميانې اخيستل جائز دي او كه نه؟ تاسو مهرباني وكړئ او موږ ته د څرمنې اصلي مصرف وښيئ! ځكه چې زموږ په كلي كې دا يوه اختلافي مسئله جوړه شوې ده. بينوا توجروا

المستفتي: فريد احمد لاهور ضلع صوابى ..... ۱۴۱۵ هـ / محرم الحرام / ۱/

**جواب:** دا مسئله په فقهي كتابونو كې صراحتاً نشته، ځكه خو د عالمانو ترمنځ اختلافي ده، اكثر اكابر وايي چې څرمن يا د څرمنې قيمت دې په جومات مصرف نه شي، ﴿۱﴾ د بعض اكابرو په نزد څرمن او د څرمنې قيمت په جومات باندې مصرفول جائز دي، ﴿۲﴾ په هر حال په څرمنو باندې د جومات شاميانې اخيستل بې اختلافه جائز دي، د شاميانو اخيستونكى (بائع) دې څرمنې په پيسو واخلي او كه خوښه يې شي بيا دې څرمنې هم خرڅې كړي ﴿۳﴾ وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامة رشيد أحمد الجنجوهي رحمه الله تعالى: الجواب: دقرباني څرمن مؤذن ته په مزدورۍ كې وركول ناجائز دي او نه هم دهغې قيمت وركول صحيح دي، دقرباني د څرمنې روپۍ فقير ته وركول واجب دي، پرته له دې په نورو ځايونو كې يې مصرفول جائز نه دي

(تاليفات رشيديه مع فتاوىٰ رشيديه: ۴۵۳ قربانی کی کھال کے دام مسجد میں صرف کرنا الخ)

﴿۲﴾ يدل عليه ما في الهندية: ولو باعها بالدراهم ليتصدق بها جاز لأنه قربة كالتصدق.

(فتاوى هندية ۵: ۳۰۱ كتاب الأضحية، الباب السادس)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويتصدق بجلدها أو يعمل منه نحو غربال وجراب أو يبدله بما ينتفع به باقيًا لا بمستهلك كخل ولحم.

(الدرالمختار ۵: ۲۳۱ كتاب الأضحية)

## په څرمنو حوض، لار، یا بل د خير كار كول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اره څه وايي چې ځيني خلك وايي: موږ د خپلو قرباني څرمنې په خير كار كې مصرفوو، لكه: حوض جوړوو، دغه راز په يو بل خيريه كار كې مصرفول شرعا جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد غفور شاه مقام بابوزئي مردان

**جواب:** د اكثرو اكابرو په نزد دې څرمنو او قيمت كې يې قبض او تمليك ضروري دى،﴿١﴾ د دوى په نزد په دې شيانو كې استعمالول صحيح نه دي،﴿٢﴾ او د بعض اكابرو په نزد يې هر خير كار كې مصرفول جائز دي ﴿٣﴾ فقط.هو الموفق

---

﴿١﴾ قال المفتي محمود حسن رحمه الله تعالى: الجواب، د قرباني د څرمنې هغه حكم دى كوم چې د زكات دى، څكه چې په دې كښې هم تمليك فرض دى

(فتاوى محموديه ١٧: ٣٦٣، باب في مصرف جلد الأضحية، چرم قرباني مسجد ومدرسه ميں صرف كرنا)

وقال العلامة أشرف على التهانوي رحمه الله تعالى: على هذا په څه كې چې تمليك او قبض نه وي لكه جوماتونه او داسې نور.. په دې كښې مصرفول جائز نه دي

(إمداد الفتاوى ٣: ٥٣٣، كتاب الذبائح والأضحية)

﴿٢﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويتصدق بجلدها..... فإن بيع اللحم أو الجلد به أى بمستهلك أو بدراهم تصدق بثمنه.

(الدر المختار ٥: ٢٣١ كتاب الأضحية)

﴿٣﴾ ويدل عليه مافي تبيين الحقائق: ولو باعها بالدراهم ليتصدق بها جاز لأنه قربة كالتصدق. (تبيين الحقائق ٦: ٩ كتاب الأضحية)

## د قرباني څرمنې خرڅول او د قرباني قرضه ادا کول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې خالد د لوی اختر د قرباني لپاره چېلی اخيستی وه، د قرباني ورو سته يې څرمن خرڅه کړه، هغه روپۍ چې خالد د څرمنې نه ترلاسه کړې، هغه يې د چېلي په قرضه کې ادا کړې. او س خلك وايي چې خالد ډېر بد کار وکړ، معلومه نه ده چې خالد به اخر څه کوي؟ ايا هغه به د اختر لپاره بيا قرباني کوي او که هغه يوه قرباني يې هم هسې ضايع شوه. ايا په دې کار سره هغه فاسق او فاجر جوړيږي؟ دا کار حرام دی که مکروه او که هسې ګناه ده او د معاف کېدو وړ ده او که نه؟ مسئله روښانه کړئ او د دواړو جهانونو ثوابونه ترلاسه کړئ. بينوا توجروا

المستفتي لعل شاه قريشی جنوبی وزيرستان ايجنسی ..... ۱۹۷۳م/۲/۲۲/

**جواب:** ددې سړي قرباني پوره شوه. لأنَّ الأضحيةَ في الشرعِ :ذبحُ حيوانٍ مخصوصٍ بنيةِ القربةِ في وقتٍ مخصوصٍ،(الدر المختار)﴿۱﴾ وقدْ تحقّقَ وما وردَ في الحديثِ : منْ باعَ جلدَ أضحيةٍ فلا أضحيةَ له ، المرادُ نفي الكمالِ﴿۲﴾ خو ددې سړي لپاره ضروري دي چې د څرمنې قيمت په غريبانانو تقسيم کړي، في الهندية ۵: ۳۳۴: فانْ باعَ شيئاً من ذلك بما ذكرنا (الدراهم وغيرها) نفذ عندَ أبي حنيفةَ و محمدٍ رحمهما الله تعالى،وعندَ أبي يوسفَ رحمه الله تعالى لا ينفذُ و يتصدقُ بثمنه كذا في البدائعِ﴿۳﴾ وهو الموفق .

﴿۱﴾(الدر المختار ۵: ۲۱۹ کتاب الأضحية)

﴿۲﴾قال العلامة العينی رحمه الله تعالی: (قوله عليه الصلوٰة والسلام: من باع جلد أضحية فلا أضحية له) هذا الحديث رواه الحاكم في المستدرك..... ورواه البيهقي في سننه الكبرى قوله فلا أضحية له محمول على نفي الكمال. (البناية في شرح الهداية ۱۴: ۳۹۸،۳۹۹ کتاب الأضحية)

﴿۳﴾(فتاوی هندية ۵: ۳۰۱ کتاب الأضحية، الباب السادس في بيان ما يستحب من الأضحية)

## د قرباني د څرمنې په روپو عيدګاه جوړول

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قرباني د څرمنې په روپو عيدګاه ابادول د نبي کريم صلی الله د شريعت له مخې څه حکم لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي حضرت محمد صاحب ...... ۱۹۷۴م/ ۷ / ۳/

**جواب**: د اکثرو اکابرو په نزد دا جائزه نه ده چې د قرباني د څرمنې په روپو کوم ځای اباد شي، ﴿۱﴾ لأنَّ حکمه التصدقُ﴿۲﴾ والتصدقُ کالهبة يقتضي التمليك﴿۳﴾ او د بعض اکابرو په نزد څه ګناه پکښې نشته، لأنَّ حکمه التقرب والتعمير تقربٌ کما يشيرُ اليه تعليل الهندية ۵: ۳۳۴: و لو باعها بالدراهمِ ليتصدقَ بها جازَ لأنه قربةٌ کالتصدقِ کذا فی التبيينِ﴿۴﴾ قلتُ: وجهُ الاشارةِ أنَّهمْ لم يقولوا لأنه تصدقٌ أيضاً مع أنه مختصرٌ فافهمْ وهوالأقوى والأولُ الأحوطُ ، وهوالموفق .

---

﴿۱﴾ قال العلامة اشرف على التهانوى رحمه الله تعالى: على هذا په څه کې چې تمليك اوقبض نه وي لکه جوماتونه او داسې نور. په دېکښې مصرفول جائز نه دي

(إمداد الفتاوی ۳: ۵۳۳ کتاب الذبائح والأضحية)

﴿۲﴾ فى الهندية: ويتصدق بجلدها أويعمل منه نحو غربال و جراب.

(فتاوی هندية ۵ : ۳۰۱ کتاب الأضحية، الباب السادس فى بيان ما يستحب فى الأضحية)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: والصدقة كالهبة بجامع التبرع وحينئذ لا تصح غير مقبوضة.

(الدرالمختار ۴: ۵۸۱ كتاب الهبة، فصل فى مسائل متفرقة)

﴿۴﴾ (فتاوی هندية ۵: ۳۰۱ كتاب الأضحية، الباب السادس)

## د قرباني څرمن د کلي مدرسې یا د هغې په برق بل کې ورکول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زموږ په کلي کې یوه وړه مدرسه ده او ځایي طالبان پکښې لوست (درس) زده کوي، څلور پنځه ښوونکي (استاذان) لري، د هغوی په تنخا یا د مدرسې د برق په بل کې د قرباني څرمن ورکول څه حکم لري؟ دغه راز که لومړي یو غریب ته ورکول شي، هغه یې قبض کړي بیا یې مدرسې ته ورکړي؛ نو بیا څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: خلیل الرحمن متعلم دار العلوم حقانیه ..... ۱۹۷۴م / ۲ / ۲۸/

**جواب:** په بې قاعدې حیله باندې څرمني یوې ادارې ته ورکول ناجائز دي، لأنّ حكمها التصدقُ كماصرحَ به فى ردالمحتار﴿۱﴾والهندية﴿۲﴾وغيره﴿۳﴾ خو په برق بل کې یې ورکول جائز دي، لأنه قربةٌ وهو المرادُ منَ التصدقِ كما يدلُّ عليه تعليلُ الهندية ۵: ۳۳۴: و لو باعها بالدراهمِ ليتصدقَ بها جازَ لأنه قربةٌ كالتصدقِ كذا فى التبيينِ﴿۴﴾قلتُ : وجه الدلالةِ أنه لم يقلْ لأنــه تصدق أيضاً معَ أنه مختصرٌ. وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويتصدق بجلدها...... فإن بيع اللحم أوالجلد به أى بمستهلك (أوبدراهم تصدق بثمنه...... ولا يعطى أجر الجزار منها لأنه كبيع. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله لأنه كبيع) لأن كلا منهما معاوضة لأنه إنما يعطى الجزّار بمقابلة جزره. (ردالمحتار ۵: ۲۳۱ كتاب الأضحية)

﴿۲﴾ في الهندية: ويتصدق بجلدها...... ولو باعها بالدراهم ليتصدق بها جاز لأنه قربة كالتصدق. (فتاوى هندية ۵: ۳۰۱ كتاب الأضحية، الباب السادس فى بيان ما يستحب فى الأضحية)

﴿۳﴾ فى الولوالجية: فإن باع الجلد يتصدق بثمنه لأنه عجز عن التصدق بعينه فيجب التصدق بثمنه. (الفتاوى الولوالجية ۳: ۷۷ كتاب الأضحية)

﴿۴﴾ (فتاوى هندية ۵: ۳۰۱ كتاب الأضحية، الباب السادس فى بيان ما يستحب فى الأضحية)

## د څرمنو روپۍ په جومات، کوڅه، کوهي يا د مړي په کفن باندې مصرفول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قربانۍ څرمن صدقه کول نفل دي او که واجب؟ ايا د قربانۍ څرمن په جومات، کوڅه، کوهي يا د مړي په کفن لګول جائز دي او که نه؟بينوا توجروا

المستفتي: عبد الحليم

**جواب:** واضحه دي وي چې د قربانۍ څرمنه صدقه کول واجب نه دي، ځکه چې ټولو فقهاؤ د قربانۍ څرمنه په خپل ذاتي استعمال کې راوستل جائز ګڼلي دي، حيثُ قالوا: أويعمل منهُ نحو غربال وجرابٍ﴿۱﴾الخ، خو دومره ده چې د خرڅولو وروسته يې قيمت صدقه کول واجب دي، لانهمْ قالوا : تصدق ثمنه بلا تخيير،﴿۲﴾د تصدق نه اکثره اکابرو تمليك مراد کړی دی، لأنَّ الصدقةَ كالهبـة﴿۳﴾اوبعض اکابرو تقرب اود ثواب په کارکې استعمال جائز ګڼلی دی. ويُشيرُاليه تعليل الهندية ۵: ۳۳۴: ولوباعها بالدراهمِ ليتصدقَ بها جازَ لأنه قربةٌ كالتصدقِ﴿۴﴾ وجه

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار ۵: ۲۳۱ كتاب الأضحية)

وفى الولوالجية: واجمعوا أنه لو انتفع بعينه بأن جعله جرابًا أوغربالًا لا بأس به.

(الفتاوى الولوالجية ۳: ۷۷ كتاب الصيد والذبائح والأضحية، قبيل الفصل الرابع)

﴿۲﴾فى الخلاصة: ولا بأس ببيعه بالدراهم ليتصدقها وليس له أن يبيعه بالدراهم لينفقه على نفسه ولو فعل ذلك يتصدق بثمنه.

(خلاصة الفتاوى ۴: ۳۲۲ كتاب الأضحية، الفصل السادس فى الانتفاع بالأضحية)

﴿۳﴾ فى الهندية: الصدقة بمنزلة الهبة فى المشاع وغير المشاع وحاجتها إلى القبض.

(الفتاوى الهندية ۴: ۴۰۶ كتاب الهبة، الباب الثانى عشر فى الصدقة)

﴿۴﴾ (الفتاوى الهندية ۵: ۳۰۱ كتاب الأضحية، الباب السادس فى بيان مايستحب فى الأضحية)

وقال العلامة الزيلعى رحمه الله تعالى: ولو باعهما...... پاتې په بل مخ باندې

الاشارة أنه لم يقلْ لأنه تصدق أيضاً معَ كونه أخصـر، د وروستي قول لـه مخې په هر خير كار كې يې بې تمليكه استعمالول جائز دي. وهو الموفق

## د حيلې نه بغير د قرباني څرمن په مزدورۍ كې وركول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د څرمنو روپۍ په مدرسو كې معلمينو ته په تنخا كې وركول جائز دي او كه نه؟ په ياد دي وي داسې مدرسې مي مراد دي چې يوازې د كلي ماشومان پكښې لوست (قاعده، ناظره او حفظ) زده كوي، بيا په خپلو كورونو كې خوراكونه كوي. بينوا توجروا

المستفتي ........ محمد عتيق الرحمن سيالكوټ

**جواب:** براه راست يې وركول ناجائز دي، ځكه چې په مزدورۍ كې د څرمنو وركولو نه منع راغلې ده. ﴿۱﴾ البته د حيلې او تدبير وروسته وركول جائز دي. ﴿۲﴾ د حيلې شرطونه په ذهن كې يادساتل پكار دي، ددې رواجي حيلو نه ځان ساتنه ضروري ده، ددې لپاره چې خپلې صدقې څوك بې ځايه مصرف نه كړي ﴿۳﴾ وهو الموفق.

---

(بقيه حاشيه) أى الجلد واللحم بالدراهم ليتصدق بها جاز لأنه قربة كالتصدق. (تبيين الحقائق ۶: ۹ كتاب الأضحية)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: ولا يعطى الجزار منها شيئاً ......لأنه يأخذه بمقابلة عمله فصار معاوضة كالبيع. (البحر الرائق ۸: ۱۷۸ كتاب الأضحية)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وقدمنا أن الحيلة أن يتصدق على الفقير ثم يأمره بفعل هذه الأشياء. (الدر المختار ۲: ۶۹ كتاب الزكاة، با ب المصرف)

﴿۳﴾ فى المنهاج: نعم لها شرائط: منها الدفع إلى مسكين، ومنها الاجتناب عن التمليك هزلاً، ومنها أن لايكون فى الورثة يتيم ولا غائب إذا لم يوص كما فى رسائل ابن عابدين، والحيلة المروّجة فى ديارنا فقدت فيها هذه الشرائط كلّا أو بعضًا كمالايخفى فهذه الحيلة لا تفيد فراغة ذمة الميت. (منهاج السنن شرح جامع السنن ۳: ۲۵ كتاب الصوم، باب ماجاء فى الكفارة)

## د قربانۍ څرمنه په جومات کرايه او ابادۍ باندې مصرفول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قربانۍ د څرمنې روپۍ د جومات په خرچه لګه کړايه. د جومات ابادي او نورو شيانو کې ورکول څه حکم لري؟ ايا ددې کار کوونکی د سنت طريقې قربانۍ پوره کوونکی شو او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي عبد الغفور، تاربابو محله صوابی ..... ۱۹۷۴م / ۳ / ۲۴ /

**جواب:** واضحه دې چې د قربانۍ څرمن يا د هغې قيمت په جومات مصرفول جائز دي، لأنَّ المرادَ منَ التصدقِ هو التقرب دونَ التمليك بخصوصه كما يشيرُ اليهِ عبارةُ الهندية: و لو باعها بالدراهمِ ليتصدقَ بها جازَ لأنه قربةٌ كالتصدقِ كذا فى التبيينِ ﴿۱﴾ انتهى، قلتُ: وجه الاشارةِ أنه لم يقلْ لأنه تصدق أيضاً فافهمْ وتدبرْ وبدليلِ الاكتفاءِ بالاباحةِ فى اللحمِ بدونِ التمليك كما حديث من شاءَ اقتطعَ ﴿۲﴾ وحكم اللحمِ والجلدِ سواءٌ ﴿۳﴾ وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ (فتاوىٰ هندية ۵: ۱ ۳۰ كتاب الأضحية، الباب السادس فى بيان مايستحب فى الأضحية)

﴿۲﴾ عن عبد الله بن قرط رضى الله تعالىٰ عنه قال قرب لرسول الله ﷺ بدنات خمس أوست فطفقن يزدلفن بأيتهن يبدأ فلما وجبت جنوبها قال فتكلم بكلمة خفية لم أفهمها فقلت ماقال قال: من شاء اقتطع.

(سنن أبى داؤد ۱: ۲۴۵ كتاب المناسك، باب الهدى إذا عطب قبل أن يبلغ)

﴿۳﴾ فى الولوالجية: وأما اللحم فالجواب فيه كالجواب فى الجلد.

(الفتاوىٰ الولوالجية ۱: ۷۷ كتاب الأضحية، قبيل الفصل الرابع)

## د قرباني د څرمنې په روپو د جومات لپاره فرش، کوزه اخیستل یا یې په ابادۍ کې مصرفول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د قرباني د څرمنې په روپو جومات ته فرش، کوزه اخیستل یا د جومات په ابادۍ باندې مصرفول څه حکم لري؟ که ددې نه بغیر کوم بل ځای مصرف شي بیا څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: حسین احمد متعلم دار العلوم حقانیه ..... ۱۹۷۷م / دسمبر / ۱۷/

**جواب:** د قرباني د څرمنو په اړه چې ایا ددې استعمال په جوماتونو کې وشي؛ نو جائز دی او که ناجائز؟ ددې خاصه جزئیه زموږ تر نظر نه ده تېره شوې، اکابر په دې منځ کې سره اختلاف لري. د اکثرو په نزد دا مصرف ناجائز دی، ﴿۱﴾ لأنّ حکمها التصدقُ﴿۲﴾ والتصدقُ کالهبة تقتضی التملیك﴿۳﴾ او د بعض اکابرو په نزد په جومات باندې مصرفول هیڅ خبره نه ده. لأنّ حکمها التقرب و هی لا تقتضی التملیك کما یشیرُ الیه تعلیل الهندیة ۵: ۳۳۴: و لو باعها بالدراهمِ لیتصدقَ بها جازَ لأنه قربةٌ کالتصدقِ کذا فی التبیینِ﴿۴﴾

﴿۱﴾ قال العلامة رشید احمد الکنکوهی : سوال: دقرباني د څرمنې په روپیو باندې جومات ته اوبه راوړل، او به ګرمول یا رسۍ اخیستل روا دي او که ناروا؟ د غه راز د قرباني د څرمنې قیمت مؤذن یا بل غریب انسان ته ورکول روا دي او که ناروا؟ **جواب:** دقرباني څرمن مؤذن ته په مزدورۍ کې ورکول ناجائز دي او نه هم د هغې قیمت ورکول صحیح دي، دقرباني د څرمنې روپۍ فقیر ته ورکول واجب دي، پرته له دې په نورو ځایونو کې یې مصرفول جائز نه دي (فتاوی رشیدیه: ۴۵۳)

﴿۲﴾ فی مجمع الأنهر: ویتصدق بجلدها..... فإن بدل اللحم أو الجلد به بما ینتفع بالاستهلاک جاز ویتصدق به لانتقال القربة إلی البدل. (مجمع الأنهر ۳: ۱۷۳ کتاب الأضحیة)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: والصدقة کالهبة بجامع التبرع وحینئذ لا تصح ای لاتتم غیر مقبوضة. (الدرالمختار علی هامش الطحطاوی ۳: ۴۰۹ کتاب الأضحیة)

﴿۴﴾ (فتاوی هندیة ۵: ۳۰۱ کتاب الأضحیة، الباب السادس فی بیان مایستحب فی الأضحیة)

قلتُ : وجه الاشارةِ أنه لم يقل لأنه تصدق أيضاً معَ كونه اخصر فـافهمْ ، احتياط په دیکښې دی چې مصرف نه شي او که مصرف شي: نو انکار ترې کول نامناسب دي، هذا ما عندی و لعل عند غيری أحسنَ منهُ . وهوالموفق

## د اکثرو اکابرو په نزد څرمن کې تملیک شرط دی

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اړه څه وایي چې د قربانۍ د څرمنې مصرف څه دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: سید آغا حسین اسلامیه کالج پشاور

**جواب:** د اکثرو اکابرو په نزد د قربانۍ په څرمنو کې تملیک شرط دی، لأنَّ لفظَ التصدقِ يقتضی التمليكَ﴿١﴾ او د بعض اکابرو په نزد تقرب او هر خیر کار کې مصرفول جائز دي، کما يشيرُ اليه تعليل الزيلعی حيثُ قالَ : و لـو باعها بالدراهمِ ليتصدقَ بها جازَ لأنه قربةٌ كالتصدق كذا فی التبيينِ (الهندية ٥: ٣٣٤)﴿٢﴾وجه الاشارةِ أنه لم يقل لأنه تصدقٌ أيضاً معَ كونه اخصـر قلتُ :و يؤيده حديثُ من شاءَ اقتطعَ﴿٣﴾وهذه اباحةٌ لأنَّ تمليكَ المجهولِ لا يصحُ فالأولُ هو الأحوطُ والثانی هو الأيسرُ . وهوالموفق

## د قربانۍ د څرمنو په روپو باندې لنګر چلول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اړه څه وایي چې زموږ د ځای زیاتره خلک دا رواج لري چې د قربانۍ څرمنې مالداره خلکو ته ورکوي

﴿١﴾ قال العلامة اشرفعلي تهانوی رحمه الله: په څه کې چې ملکیت او قبضه نه راځي لکه جوماتونه او داسې نور... په دیکښې بې خرچه کول جائز نه دي (امداد الفتاوی ٣:٥٣٤ کتاب الذبائح)

﴿٢﴾ (فتاوی هندية ٥: ٣٠١ كتاب الأضحية، الباب السادس)

﴿٣﴾ عن عبد الله بن قرط عن النبی صلى الله عليه وسلم قال...... فلما وجبت جنوبها قال فتكلم بكلمة خفية لم أفهمها فقلت ما قال قال: من شاء اقتطع.

(سنن أبی داؤد ٢٤٥ كتاب المناسک، باب الهدی إذا عطب قبل أن يبلغ)

هغوی بیا لنګر وربانديږ چلوي. مسافرو او د کلي خلکو ته ډوډۍ ورکوي، اوس لنګر دومره پرمخ تللی که خلك څرمني ورنه کړي بیا هم د لنګر بندېدو وېره نشته، اوس که خلك دا څرمني اسلامي مدرسو ته ورکړي؛ نو دوی به ګناهکار وي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: صوفي اسماعیل ...... ۱۴۰۱هـ/ ۶/ ۱۴/

**جواب:** لنګر ته څرمني ورکول کوم شرعي کار نه دی، ﴿۱﴾ د وعده کوونکو لپاره جائز دي چې د خپلې وعدې مخالفت وکړي. ﴿۲﴾ نو د پسماندګانو لپاره خو په طریق اولی د خپل کار نه اوښتل جائز دي، د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مېلمنو مصرف کول د مالداره سړي په مېلمنو د مصرف کولو نه اوه خله زیات ثواب لري، لحدیثٍ وردَ بذلك ﴿۳﴾ والله أعلم

## سیاسي ګوند (پارټۍ) ته د قرباني د څرمنو ورکولو حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اړه څه وایي چې د قرباني څرمني کوم سیاسي ګوند. لکه جمیعت علماء اسلام، جماعت اسلامي، نیشنل پارټي، پیپل پارټي

﴿۱﴾ في الهداية: ويأكل من لحم الأضحية ويطعم الأغنياء والفقراء ويدّخر.

(هداية ۴: ۴۵۰ كتاب الأضحية)

﴿۲﴾ قال العلامة الشامي رحمه الله تعالى: (سئل) فيما إذا وعد زيد عمرًا أن يعطيه غلال أرضه الفلانية فاستعملها وامتنع من أن يعطيه من الغلة شيئًا فهل يلزم زيدا شيء لمجرد الوعد المزبور؟ (الجواب) لايلزمه الوفاء بوعده شرعًا وإن وفى فبها ونعمت والله سبحانه الموفق.

(فتاوى تنقيح الحامدية ۲: ۳۵۲ مسائل وفوائد شتّى من الحظر والإباحة)

﴿۳﴾ قال النبي ﷺ من أرسل بنفقة في سبيل الله وأقام في بيته فله بكل درهم سبع مائة درهم ومن غزى بنفسه في سبيل الله وأنفق في وجه ذلك فله بكل درهم سبع مائة ألف درهم.

(سنن ابن ماجة ۲۰۳ باب فضل النفقة في سبيل الله تعالى)

یا مسلم لیگ ته ورکولای شي؟ کله چې خلك ترې خپله سیاسي گټه ترلاسه کوي؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد عتیق الرحمن سیالکوټ

**جواب:** په اصل کې څرمنې خپله دوی ته څوك نه ورکوي چې دا دي د دوی ذاتي ملکیت شي بلکې ددې لپاره یې ورکوي چې دوی یې اصلي مصرف ته ورسوي او دوی یې وکیلان دي، که چیرې دې گوندونو خپل اصلي مصرف ته ورسولې؛ نو جائز دي او که نه نو ناجائز کار یې وکړ. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د قرباني څرمنې غریبانانو، یتیمانو او گونډو ته ورکول غوره دي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې ایا د قربانۍ په څرمنو د کلي د بې وزله غریبانو، یتیمانو، گونډو او بورو مرسته کول غوره نه دي؟ په سورة الحج کې د ﴿وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ﴾ نه غریب او مالداره مراد دي او که دواړه د غریب قسمونه دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد عتیق الرحمن سیالکوټ

**جواب:** دې خلکو سره د قربانۍ په څرمنو کې مرسته او کومك کول تر ټولو غوره او بهترعمل دی. ﴿۲﴾ په دې ایت کې دا دواړه دغریبانانو قسمونه دي، ﴿۳﴾ وهو واضحٌ ، فقط هوالموفق .

---

﴿۱﴾ فی الهندیة: والواجب علی الأئمة أن یوصلوا الحقوق إلی أربابها ولا یحبسونها عنهم ولا یحل للإمام وأعوانه من هذه الأموال إلا ما یکفیهم وعائلتهم ولا یجعلونها کنوزًا...... فإن قصر الأئمة فی ذلک فوباله علیهم.

(فتاوی هندیة ۱: ۱۹۱، فصل مایوضع فی بیت المال أربعة أنواع)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: فی الظهیریة ویبدأ فی الصدقات بالأقارب ثم الموالی ثم الجیران. (ردالمحتار ۱: ۶۹، باب المصرف)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن کثیر رحمه الله تعالی: واختلفوا ...... پاتې په بل مخ باندې

(بقیه حاشیه) واختلفوا فی المراد بالقانع والمعترّ فقال العوفی عن ابن عباس: القانع المستغنی بما اعطیته وهو فی بیته، والمعترّ الذی یتعرض لک ویلم بک ان تعطیه من اللحم ولا یسال..... وقال علی بن ابی طلحة عن ابن عباس: القانع المتعفف، والمعترّ السائل.

(تفسیر ابن کثیر ۱۷:۲۹۷ سورة الحج آیت:۳۶)

# باب العقيقة

عن سلمان بن عامر الضبى رضى الله تعالىٰ عنه

قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلّم

يقول مع الغلام عقيقة فأهريقوا عنه

دمًا و أميطوا عنه الأذى.

(صحيح البخارى)

# باب العقيقة

عنْ سلمانَ بنِ عامرالضبي رضي اللهُ عنهُ قالَ سمعتُ رسولَ الله صلى الله عليه وسلّم:
«يقولُ معَ الغُلامِ عقيقةٌ فأهريقوهُ عنهُ دماًواميطوا عنهُ الأذى»(صحيح البخاری)

## عقيقه سنت ده

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د ماشوم عقيقه په شريعت کې څه حکم لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: غلام محمد تله گنگ کيمل پور ..... ۱۹۶۹م/۲/۲۰/

**جواب:** عقيقه سنت ده، «۱» نبي کريم صلى الله ددې تشريع کړې ده، «۲» فقهاء کرامو ورباندې تصريح کړې ده «۳» فقط .وهوالموفق.

---

«۱» قال العلامة ظفر أحمد العثماني رحمه الله تعالىٰ: وإنما أخذ أصحابنا الحنفية في ذلک بقول الجمهور وقالوا باستحباب العقيقة لما قال ابن المنذر وغيره.

(إعلاء السنن ۱۷: ۱۱۳، کتاب الذبائح، وجه أخذ الحنفية بقول الجمهور في هذا الباب)

«۲» حدثنا سلمان بن عامر الضبي رضي الله تعالىٰ عنه قال سمعت رسول الله ﷺ مع الغلام عقيقة فاهر يقوا عنه دمًا واميطوا عنه الأذى.

(صحيح البخاری ۲: ۸۲۲ کتاب العقيقة، باب إماطة الأذى عن الصبي في العقيقة)

عن الحسن بن سمرة رضي الله تعالىٰ قال قال رسول الله ﷺ: الغلام مرتهن بعقيقته تذبح عنه يوم السابع ويسمّى ويحلق رأسه...... وعن عليّ بن أبي طالب رضي الله تعالىٰ عنه قال عق رسول الله ﷺ عن الحسن بشاة. (مشكوٰة المصابيح ۳۶۲ باب العقيقة، الفصل الثاني)

«۳» قال العلّامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: يستحب لمن ولد له ولد أن يسميه يوم اسبوعه...... ثم يعق عند الحلق عقيقة إباحة على ما في الجامع المحبوبي أوتطوعًا على ما في شرح الطحاوي. (ردالمحتار ۵: ۲۳۶ کتاب الأضحية، قبيل کتاب الحظر والإباحة)

## د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد عقيقه بدعت نه ده

**سوال** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په کال ١٩٨١/ ١٩ / نومبر کې د پاکستان ټائم په نوم مي يو اخبار تر نظر تېر شو، په هغې کې د پروفيسر رفيع الله شهاب صاحب د عقيقې په اړه يو مضمون ليکلى ؤ، د څه حوالو وروسته يې ليکلي وچي عقيقه د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد بدعت وه، تاسو مهرباني وکړئ او د عقيقې په اصلي حقيقت باندې مو پوه کړئ ددې لپاره چې زموږ د زړونو نه شک ورک شي. بينوا توجروا

المستفتي: ميجر رياض احمد کهاريان کينټ ..... ١٤٠٢ هـ/ ربيع الثانى / ٢٥ /

**جواب** عقيقه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سنت دى، په قول د رسول الله صلى الله عليه وسلم ﴿١﴾ اوفعل د رسول الله صلى الله عليه وسلم ﴿٢﴾ دواړو سره ثابته ده، دغه مذهب د امام ابو حنيفه رحمه الله تعالى هم دى او په کتابونو کې دا مسئله صراحتا ذکر ده ﴿٣﴾، والله أعلم

---

﴿٢،١﴾ فى المشكوة: عن الحسن عن سمرة قال قال رسول اللهﷺ: الغلام مرتهن بعقيقته تذبح عنه يوم السابع ويسمّى ويحلق رأسه.

عن علىّ ابن ابى طالب قال عق رسول اللهﷺ عن الحسن بشاة وقال: يا فاطمة احلقى رأسه وتصدقى بزنة شعره فضة. (مشكوة المصابيح ٣٦٢ باب العقيقة، الفصل الثانى)

﴿٣﴾ قال العلامة الشامى رحمه الله تعالى: يستحب لمن ولد له ولد أن يسمّيه يوم أسبوعه..... ثم يعق عند الحلق عقيقة إباحةً على مافى الجامع المحبوبى أوتطوعًا على مافى شرح الطحاوى. (ردالمحتار ٥:٢٣٦ كتاب الأضحية، قبيل كتاب الحظر والإباحة)

وفى المنهاج: اعلم أن الإمام أباحنيفة قال إنها ليست بسنة ولم يقل إنها بدعة وقال إنها منسوخة..... وقال محمّد والجمهور باستحبابة وهو مذهب منصور ومعمول به.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ٣:١٢٦، كتاب الأضحية، باب ماجاء فى العقيقة)

## په یوه مېښه کې د اوه یا کمو ماشومانو د عقیقې حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې (۱) اوه یا دې نه کم سړي دي چې د هر یو بچی پیدا شوی دی، هغوی غواړي چې په شریکه یوه عقیقه وکړي او یوه غوا، مېښه یا غويی واخلي او د عقیقې په نیت یې حلاله کړي، ایا د هر سړي عقیقه ځان - ځان نه کیږي، لکه څنګه چې د هر یو قرباني کیږي؟

(۲) د یو پلار سره اوه یا د اوه نه کم ماشومان دي. پلار د نوي زیږېدلي ماشومانو لپاره د نورو شریکانو نه بغیر یوه غوا یا مېښه عقیقه کړه، ایا د هر یو بچي په عقیقه د پلار غاړه خلاصه شوه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا محمد شمروز صاحب تهانو ډهیری صوابی ضلع مردان

.....۱۳۸۹ هـ/ ۲۳

**جواب:** دا دواړه صورتونه جائز دي، ځکه چې ددې حیواناتو عقیقه او په دیکښې شراکت صحیح دی. يدلّ عليه ما في المعجم الصغير للطبراني: ۴۵: عنْ أنسِ بنِ مالكٍ رضي الله عنهمْ منْ ولدَ له غلام فليعق عنهُ مِنَ الابلِ والبقرِ والغنمِ ، انتهى«۱»وفي رد المحتارِ ۵: ۲۸۵: وكذا لو أرادَ بعضهم العقيقةَ عنْ ولدٍ قدْ ولدَ له من قبل ، انتهى«۲»قلتُ فدلَّ هذا القولُ على أنَّ العقيقةَ يصحُّ ببعضِ البقرِ والبدنة فيدلُّ على صحة الشركةِ«۳»لأنَّ الشركةَ يؤلُ الى العقِّ ببعضِ الحيوانِ ، فافهمْ وهوالموفق.

«۱»(المعجم الصغير للطبراني بحواله إعلاء السنن ۱۷: ۱۱۵ كتاب الذبائح، باب أفضلية ذبح الشاة في العقيقة)

«۲» (ردالمحتار ۵: ۲۲۹، كتاب الأضحية)

«۳» قال العلامة ظفر أحمد العثماني رحمه الله تعالى: وفي قوله: من ولد له غلام فليعق عنه من الإبل البقر أو الغنم، دليل على جواز العقيقة ببقرة كاملة اوببدنة كذلك وذكر الرافعي بحثًا أنها تتادى بالسبع كما في الأضحية وبالجملة فهي كالأضحية في أكثر الأحكام.

(إعلاء السنن ۱۷: ۱۱۷ كتاب الذبائح، باب أفضلية ذبح شاة في العقيقة)

## د عقيقې کولو مسنون تاريخ

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د عقيقې مسنون تاريخ کوم يو دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: اکرام الحق راولپنډی ..... ۱۹۷۶م / ۳ / ۲۴ /

**جواب**: د عقيقې مسنون تاريخونه ۷، ۱۴ او ۲۱ دي، لحديثٍ رواهُ الطبرانى فى الصغيرِ ۱۴۹ ﴿۱﴾ که پاتې شي عقيقه د بلوغ وروسته کېدای شي، تنقيح الفتاوى ۲: ۲۳۳ ﴿۲﴾ وهوالموفق.

## د عقيقې په حيوان کې د جنتي کالي او امداد الفتاوى عبارتونو تطبيق

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په جنتي کالي ۳: ۴۲ مسئله نمبر ۵: د کوم حيوان قرباني چې ناجائز ده د هغه عقيقه هم نه صحيح کيږي، په امداد الفتاوى ۳: ۶۱۹ سوال: ۶۸۴ په جواب کې ليکلي: (شرائطُ وجوبه فى الأضحية په عقيقه کې هم مستحب دي) په دې دواړو عبارتونو کې ټکر معلوميږي، ددې حل څه دی؟ بينوا توجروا

المستفتي عبد الرحمن

﴿۱﴾ عن بريدة أن النبى صلى الله عليه وسلم قال العقيقة لسبع أو أربع عشرة أو إحدى وعشرين. (المعجم الصغير للطبرانى بحواله إعلاء السنن ۱۷: ۱۸۸، كتاب الذبائح، باب أفضلية ذبح الشاة فى العقيقة)

﴿۲﴾ قال العلامة الشامى رحمه الله تعالى: ولو قدم يوم الذبح قبل يوم السابع أو أخره عنه جاز إلّا أن يوم السابع أفضل...... ووقتها بعد تمام الولادة إلى البلوغ فلا يجزى قبلها وذبحها فى اليوم السابع يسن. (الفتاوى تنقيح الحامدية ۲: ۲۳۳ كتاب الذبائح)

وقال العلامة ظفر احمد العثمانى: فلو ذبحها بعد السابع أوقبله وبعد الولادة أجزاه. (إعلاء السنن ۱۷: ۱۷۷، كتاب الذبائح، باب أفضلية ذبح الشاة فى العقيقة)

**جواب** لعله أراد أنّ هذه الشرائطَ شرائطُ الكمال دونَ الاجزاء فاجتمعتا《۱》 وهوالموفق.

**د ماشوم لپاره يو حيوان ذبح کول يا په مختلفو ځايونو کې دوه حيوانان ذبحه کول**

**سوال** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې (١) يو سړی د خپل بچي لپاره عقيقه کول غواړي؛ خو دا چې نيم کور يې يو ځای (رسالپور) او بل کور يې په بل ځای (لاهور) کې دی؛ نو دوه حيوانان په داسې مختلفو ځايونو او مختلفو وختونو کې عقيقه کول جائز دي؟

(٢) په يوه چيلۍ باندې د بچي عقيقه کيږي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: نواب دين رسالپور کينټ نوشهره ..... ١٤٠٥ هـ / صفر / ٢٥/

**جواب** دا دواړه صورتونه جائز دي، په دواړو سره سنت ادا کيږي.《۲》 وهوالموفق.

---

《۱》 قال الإمام الترمذی رحمه الله تعالىٰ: والعمل على هذا عند أهل العلم يستحبون أن يذبح عن الغلام العقيقة..... وقالوا ولا يجزئ في العقيقة من الشاء إلّا ما يجزئ في الأضحية. (سنن ترمذی)

وقال العلامة أنور شاه الكشميری رحمه الله تعالىٰ: (قوله لا يجزئ في العقيقة الخ) أی الإجزاء المستحب ولم يقل أحد بوجوبها.

(العرف الشذی علی جامع الترمذی ۱: ۳۱۱، ابواب الأضاحی)

《۲》 قال العلامة الشامی رحمه الله تعالىٰ: العقيقة تطوع..... ثم إذا أراد أن يعق عن الولد فإنه يذبح عن الغلام شاتين وعن الجارية شاة..... ولو ذبح عن الغلام شاة وعن الجارية شاة جاز لأن النبی صلى الله عليه وسلم عق عن الحسن والحسين كبشًا كبشًا. (الفتاوی تنقيح الحامدية ۲: ۲۳۲ كتاب الذبائح)

وفی المرقاة: فيمكن أنه ذبح عنه فی يوم الولادة كبشًا وفی السابع كبشًا وبه يحصل الجمع بين الروايات. (مرقاة المفاتيح ۸: ۵۸ | كتاب الصيد والذبائح، باب العقيقة، الفصل الثانی)

## که په اومه ورځ عقیقه ونه شي؛ نو کله او څنګه بیا وشي؟

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اړه څه وایي چې که یو سړی په اومه ورځ د خپل بچي عقیقه ونه کړي؛ کله او څنګه یې بیا وکړي؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**جواب:** د طبراني او نورو کتابونو د حدیث ﴿۱-۲﴾ له مخې عقیقه په اوم، څوارلسم او یوویشتم تاریخ کول غوره دي، په فتاوی کاملیه ﴿۳﴾ او نورو ﴿۴﴾ کې یې لیکلي دي چې د تاریخ نه یې وړاندې او وروسته کول هم جواز لري. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ عن بريدة رضى الله تعالى عنه أن النبي ﷺ قال العقيقة لسبع أو أربع عشرة أو إحدى وعشرين. (المعجم الصغير للطبراني بحواله إعلاء السنن ١٧:١١٨ كتاب الذبائح، باب أفضلية ذبح الشاة فى العقيقة)

﴿۲﴾ عن أم كرز وأبي كرز قال نذرت امرأة من آل عبد الرحمن بن أبي بكر إن ولدت امرأة عبد الرحمن نحرنا جزورًا، فقالت عائشة: لا بل السنة أفضل ...... ولكن ذاك يوم السابع فإن لم يكن ففى أربعة عشر فإن لم يكن ففى إحدى وعشرين، هذا حديث صحيح الإسناد ولم يخرجاه، مستدرك.

(إعلاء السنن ١٧:١١٥ كتاب الذبائح)

﴿۳﴾ قال العلامة الشيخ محمّد كامل رحمه الله تعالى: ووقتها بعد تمام الولادة إلى البلوغ فلا يجزئ قبلها وذبحها فى اليوم السابع يسنّ. (فتاوى كاملية ٢٤٥ كتاب الذبائح)

﴿۴﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ولو قدم يوم الذبح قبل يوم السابع أو أخره عنه جاز إلا أن يوم السابع أفضل.

(فتاوى تنقيح الحامدية ٢:٢٣٣ كتاب الذبائح)

## د عقیقې وړاندې او وروسته کېدل او په یوه غوا کې اوه عقیقې کول

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې (۱) که یو سړي په اومه ورځ د بچي عقیقه ونه کړه؛ نو کله او څنګه یې باید وکړي؟
(۲) که پنځه شپږ بچي یې پیدا شوي وي او د لوی اختر په ورځ ټول په یوه حیوان کې سره شریك شي ایا عقیقه یې کیږي؟ که نه کیږي نو بله اسانه طریقه یې راته وښیه؛ بینوا توجروا

المستفتي: محمد حسین مینګوره سوات ..... ۱۹۸۱ م / ۹ / ۷

**جواب**: طبراني او نورو کتابونو کې د د عقیقې غوره وخت اوم، څوارلسم او یویشتم تاریخونه ښودل شوي دي، ﴿۱﴾ په فتاوی کاملیه او نورو کې یې لیکلي دي چې د دغو تاریخو نه وړاندیوالی او وروسته والی هم جائز دی ﴿۲﴾ که د کوم ماشوم عقیقه په بل تاریخ کې وشي، لکه لوی اختر یا بله ورځ نو جواز لري.
یې د فقهي په ټولو معتبرو کتابونو کې لیکلي دي چې د قرباني په حیوان کې دعقیقې لپاره (۷/۱) برخه ټاکل هم جائز دي. ﴿۳﴾ خو یوازې د اوه ماشومانو

﴿۱﴾ عن بریدة رضی الله تعالیٰ عنه أن النبی ﷺ قال: العقیقة لسبع أو أربع عشرة أو إحدی وعشرین. (المعجم الصغیر للطبرانی بحواله إعلاء السنن ۱۷: ۱۱۸، کتاب الذبائح، باب افضلیة ذبح الشاة فی العقیقة)

﴿۲﴾ قال العلامة الشیخ محمّد کامل رحمه الله تعالیٰ: ولو قدم الذبح علی الیوم السابع أو أخره عنه جاز إلاّ أن السابع أفضل...... ووقتها بعد تمام الولادة إلی البلوغ فلا یجزئ قبلها وذبحها فی الیوم السابع یسن. (فتاویٰ کاملیة ۲۴۰ کتاب الذبائح)
(ومثله فی الفتاویٰ تنقیح الحامدیة ۲: ۲۳۳ کتاب الذبائح)

﴿۳﴾ فی الهندیة: ولو أرادوا القربة الأضحیة أو غیرها من القرب أجزاهم...... وکذلک إن أراد بعضهم العقیقة عن ولد ولد له من قبل کذا ذکر محمّد رحمه الله تعالیٰ فی نوادر الضحایا. (فتاویٰ هندیة ۵: ۳۰۴ کتاب الأضحیة، الباب الثامن)

لپاره یوه غوا حلالول په دیکښې د عالمانو ترمنځ اختلاف دی، غوره قول پکښې د جواز دی، وهو الاستحسانُ لأنها قامتْ مقامَ سبع شیاهٍ صرحَ هذه الاقامة صاحبُ البدائع ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## د قربانۍ په حیوان کښې د عقیقې لپاره برخه پرېښودل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې په زید باندې د خپل بچي عقیقه پاتې ده، هغه د قربانۍ په حیوان کښې د عقیقې لپاره یوه برخه ځای نیولی دی، پاتې شپږ برخې د قربانۍ والا دي، ایا دا کار د شریعت محمدي او حنفي فقهي سره سم کار دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: سید بختور شاه تهوپی ضلع صوابی

**جواب** په قربانۍ کښې د عقیقې لپاره برخه نیول جائز دي. في رد المحتار ۵: ۲۸۵: وكذا لوأرادبعضهمْ العقيقةَ عنْ ولدٍ قدْ ولدَ له منْ قبلُ لأنَّ ذلك جهة التقربِ بالشكرِ على نعمة الولدِ ذكره محمدٌ رحمه الله تعالى ﴿۲﴾ وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامة الكاسانی رحمه الله تعالى: ولأن القياس يأبى جوازها عن أكثر من واحد لما ذكرنا أن القربة فى الذبح وأنه فعل واحد لا يتجزا لكنا تركنا القياس بالخبر المقتضى للجواز عن سبعة مطلقا فيعمل بالقياس فيما وراءه لأن البقرة بمنزلة سبع شياة.

(بدائع الصنائع ۴: ۲۰۷ كتاب التضحية، محل إقامة الواجب)

﴿۲﴾ (ردالمحتار ۵: ۲۲۹ كتاب الأضحية)

وفى الهندية: وكذلک إن أراد بعضهم العقيقة عن ولد ولد له من قبل كذا ذكره محمّد رحمه الله تعالى فى نوادر الضحايا.

(فتاوى هندية ۵: ۳۰۴ كتاب الأضحية، الباب الثامن فيما يتعلق بالشركة فى الضحايا)

## د عقیقې لپاره په غوا یا مېښه کې د شراکت حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې که د اوه ماشومانو یا ددې نه د کم لپاره په عقیقه کې یو غوا یا مېښه ذبح شي؛ نو عقیقه به یې صحیح وي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا رحیم الله باچا اضاخیل بالا نوښهره ..... ۱۴۰۲ هـ/محرم/۸/

**جواب:** علماء په دیکښې مختلف دي «۱» خو په ظاهره کې د اسې عقیقه صحیح ده. «۲» د بدائع د عبارت نه معلومیږي چې غوا استحسانا د اوه کسانو نه صحیح کیږي او د اوه چیلیو قائم مقام کرځي.«۳» واللّٰهُ أعلمُ

«۱» قال العلامة ابن حجر رحمه الله تعالى: ويذكر الشاة والكبش على أنه يتعين الغنم للعقيقة وبه ترجم أبوالشيخ الأصبهانى ونقله ابن المنذر عن حفصة بنت عبد الرحمن بن أبى بكر، وقال البندنيجى من الشافعية لانصّ للشافعى فى ذلك، وعندى أنه لا يجزئ غيرها، والجمهور على إجزاء الإبل والبقر أيضًا، وفيه حديث عند الطبرانى وأبى الشيخ عن أنس رفعه يعق عنه من الإبل والبقر والغنم، ونصّ أحمد على اشتراط كاملة، وذكر الرافعى بحثًا أنها تتأدى بالسبع كما فى الأضحية. والله أعلم.

(فتح البارى ۹: ۵۹۳ كتاب العقيقة، باب إماطة الأذى عن الصبى فى العقيقة)

«۲» قال العلامة ظفر أحمد العثمانى رحمه الله تعالى: ولو ذبح بدنة أو بقرة عن سبعة أولاد او اشترك فيها جماعة جاز سواء أرادوا كلهم العقيقة او أراد بعضهم العقيقة وبعضهم اللحم. (إعلاء السنن ۱۷: ۱۱۹ كتاب الذبائح، باب أفضلية ذبح الشاة فى العقيقة)

«۳» قال العلامة الكاسانى رحمه الله تعالى: لأن القياس يأبى جوازها عن أكثر من واحد لما ذكرنا أن القربة فى الذبح وانه فعل واحد لا يتجزأ، لكنا تركنا القياس بالخبر المقتضى للجواز عن سبعة مطلقًا فيعمل بالقياس فيما وراءه، لأن البقرة بمنزلة سبع شياة.

(بدائع الصنائع ۴: ۲۰۷ كتاب التضحية، محل إقامة الواجب)

## د عقيقې پروخت د ماشوم وېښته پرې کول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د عقيقې پر وخت د ماشوم وېښته پرې کول څه حکم لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۹۹۰م / ۱۲ / ۱۰/

**جواب:** د عقيقې پروخت د ماشوم وېښته پرې کول د رسول الله صلی الله عليه وسلم سنت دی. (التعليق الممجد) ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## صرف د وړوکي ماشوم وېښته د عقيقې په وخت کې پرې کول سنت دي

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د وړوکي ماشوم وېښته تر کوم عمر پورې پرې کول جائز دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: قاري محمد اسحاق فتح جنګ اټک ..... ۱۹۸۵م / ۸ / ۸ /

**جواب:** يوازې دعقيقې پرمهال دماشوم وېښته پرې کول مستحب دي، ﴿۲﴾ په نورو وختونو کې د ماشومې (جينۍ) د وېښتو پرې کولو نه بايد ځان وساتل شي، د دې لپاره چې د سړو سره يې مشابهت رانه شي او دغه راز د کافرانو

---

﴿۱﴾ عن محمد بن علي رضی الله تعالی عنه قال: وزنت فاطمة بنت رسول الله ﷺ شعر حسن وحسين رضی الله تعالی عنهما وزينب وأم كلثوم فتصدقت بوزن ذلك فضة.

قال العلامة عبد الحي اللكنوي رحمه الله تعالى: ووزن فاطمة شعر الحسن والحسين بأمر أبيها ﷺ ووزن شعر زينب وأم كلثوم يحتمل أن يكون بأمره ويحتمل أنها قاست ذلك على أمره لها في الحسن كذا في شرح الزرقاني.

(التعليق الممجد على موطأ للإمام محمد رحمه الله تعالى ۲۹۱، باب العقيقة)

﴿۲﴾ في المشكوة: عن الحسن عن سمرة قال ..... پاتې حاشيه په بل مخ باندې

او فاسقانو ﴿۱﴾ سره هم د مشابهت نه ځان ساتل ضروري دي ﴿۲﴾ وهو الموفق.

(بقیه حاشیه) قال رسول الله ﷺ: الغلام مرتهن بعقیقته تذبح عنه یوم السابع ویسمّٰی ویحلق رأسه. (مشکٰوة المصابیح ۳۶۲ باب العقیقة، الفصل الثانی)

وفی إعلاء السنن: ویستحب حلق رأس المولود یوم سابعة.

(إعلاء السنن ۱۷:۱۱۹ کتاب الذبائح، باب أفضلیة ذبح الشاة فی العقیقة)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالٰی: یستحب لمن ولد له ولد أن یسمّیه یوم أسبوعه ویحلق رأسه.

(ردالمحتار ۵:۲۳۶ کتاب الأضحیة، قبیل کتاب الحظر والإباحة)

﴿۱﴾ فی المشکٰوة: عن ابن عباس رضی الله تعالٰی عنه قال قال النبی ﷺ: لعن الله المتشبّهین من الرجال بالنساء والمتشبهات من النساء بالرجال.

(مشکٰوة المصابیح ۳۸۰ کتاب اللباس، باب الترجّل)

﴿۲﴾ عن ابن عمر رضی الله تعالٰی عنهما قال قال رسول الله ﷺ: من تشبّه بقوم فهو منهم.

(سنن أبی داؤد ۲:۵۵۸ کتاب اللباس، باب فی لبس الشهرة)

# بَابُ النَّظَرِ وَالْمَسِّ

قالَ اللّٰهُ تبارك وتعالى: ﴿قُل لِّلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ﴾ (سورة النور)

## د پردې فرضيت او په پرده کولو د مور او پلار خفګان

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ په کلي نظام پور کې بې پردګۍ حد درجې ته رسېدلې ده. ښځې هم د نارينه وو په څېر کليو او کوڅو کې بې پروا ګرځي او په پټيانو کې د کار لپاره د کوره وځي، زموږ ځاى د تمدن نه يو څه لرې او ځايي خلك يې نورو ښارونو ته مسافر کيږي. اوس زه غواړم چې په خپل کور کې پرده راولم، د ډېر کوشش سره- سره مې څوك خبره نه مني، که زه خپلې ښځې ته د شرعي پردې کولو حکم کوم؛ نو مور او پلار مې رانه خفه کيږي، تر دې چې زما عاق کولو ته هم تيار دي، په دې صورت کې زما لپاره څه کول پکار دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: سردار خان اندړى نظام پور نوشهره ... ۱۴۰۵ هـ / محرم / ۲۷/

**جواب:** دا خو د فتنې زمانه ده، ښځو ته پکار دي چې خپله د پردې کوشش وکړي او ځان د بې پردګۍ نه وساتي، ﴿۱﴾ ددې ښځو په خپلوانو فرض دي چې هغوى د سرو سره يو ځاى کېدو او بې پردګۍ نه منع کړي. ﴿۲﴾

---

﴿۱﴾ وقال اللّٰه تعالى: (يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ) قال ابوبكر في هذه الآية دلالة على أنّ المرأة الشابّة مأمورة بستر وجهها عن الأجنبيين واظهار الستر والعفاف عند الخروج لئلا يطمع أهل الريب فيهنّ.

(احكام القرآن للجصاص ۳: ۳۷۲، قبيل سورة سبا)

﴿۲﴾ ان عبداللّٰه بن عمر رضى اللّٰه تعالى عنهما يقول: سمعت رسول اللّٰه ﷺ الا كلكم راع وكلكم مسئول عن رعيته، الإمام راع ومسئول عن رعيته، والرجل راع في أهله وهو مسئول عن رعيته.

(صحيح البخارى ۱: ۱۲۲، كتاب الجمعة، باب الجمعة في القرى)

د نبي كريم صلى الله عليه وسلم حديث مبارك دى. لا طاعة لمخلوقٍ فى معصية الخالقِ. ﴿۱﴾ ددې حديث له مخې د مور او پلار دا خبره منل حرام دي، په دې باندې ځوك نه عاق كيږي، د مور او پلار په دې خبره باندې خفگان لويه گناه ده چې بلكې د كفر ويره هم شته. ﴿۲﴾ وهو الموفق.

## د كومو ښځو نه پرده ضروري ده؟

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د كومو ښځو نه پرده ضروري ده، د كومو ښځو نه پرده نه كول ضروري دي، د زوم نه پرده كول څنگه دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۱۹۷۶م / ۱ / ۱۱ /

**جواب**: دكومې ښځې سره چې د همېش لپاره نكاح حرامه وي د هغې نه پرده نه كول گناه نه ده. ﴿۳﴾ كه نه نو گناه ده. ﴿۴﴾ ددې قاعدې په رڼاكې دحقيقي زوم نه پرده ضروري نه ده.

---

﴿۱﴾(مشكوٰة المصابيح : ۳۲۱، كتاب الإمارة والقضاء)

﴿۲﴾قال العلامة الذهبى رحمه الله تعالىٰ: "الكبيرة الستون الجدل والمراء، وقال الله تعالىٰ: مَا يُجَادِلُ فِيٓ اٰيَاتِ اللّٰهِ اِلَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا......(الآية). (غافر ۴) ......وعن ابن عمر رضى الله تعالىٰ عنهما عن النبى ﷺ قال من خاصم فى باطل وهو يعلم لم يزل فى سخط الله حتى ينزع، وفى لفظ فقد باء بغضب من الله تعالىٰ. (الكبائر للذهبى ۲۶۱، الكبيرة الستون :الجدل والمراء)

﴿۳﴾قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالىٰ : (وينظر الرجل من محرمه)هى من لايحلّ له نكاحها أبدًا بنسب أوسبب ولوبزنا (إلى الرأس والوجه والصدر والساق والعضد إن أمن الشهوة).

(الدرالمختار ۵: ۲۵۹، كتاب الحظر والإباحة ،فصل فى النظر والمسّ)

﴿۴﴾وفى الاختيار :ولاينظر الى الحرة الأجنبية إلا إلى الوجه والكفين إن لم يخف الشهوة......والأصل فيه قوله تعالىٰ: وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا مَاظَهَرَ مِنْهَا.

(الاختيار لتعليل المختار ۳: ۱۹۳، كتاب الكراهية)

که د خطرې پېښېدو وېره وي بيا هر وخت پرده ضروري ده. ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## د ضرورت په وخت ښځې ته کتل

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې بالغې ښځې ته د مرض د تشخيص پر مهال کتل جائز دي او که ناجائز؟

بينوا توجروا

المستفتي: حافظ منصب خان راولپنډی

**جواب:** د ضرورت له وجې د عورت لوڅول او ورته کتل د دواړه جائز دي، ﴿۲﴾ خو په ياد صورت کې چې په ظاهره ضرورت نه ښکاري؛ نو کتل ورته ناجائز دي. ﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾قال العلامه الحصكفى رحمه الله تعالى: "فحلّ النظر مقيد بعدم الشهوة وإلّا فحرام وهذا فى زمانهم وأمّا فى زماننا فمنع الشابّة".

وقال العلامه ابن عابدين رحمه الله تعالى: لالأنّه عورة بل لخوف الفتنة.

(الدرالمختار مع رد المحتار ٥: ٢٦١، كتاب الحظر والإباحة، فصل فى النظر والمسّ)

﴿۲﴾وفى شرح المجلة :الضرورات تبيح المحظورات، هذه قاعدة أصولية مأخوذة من النصّ وهو قوله تعالى "إلّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ"......يعني أن الممنوع شرعًا يباح عندالضرورة ......كنظر الطبيب إلى مالا يجوزانكشافه شرعا من مريض أو جريح فإنّه ترخيص فى رفع الإثم لاالحرمة".

(شرح المجلة ١ :٥٥، ٥٦، المادةنمبر ٢١)

﴿۳﴾وفى الاختيار :والنظر إلى العورة حرام إلّاعند الضرورة كالطبيب والختان والخافض والقابلة.

(الاختيار لتعليل المختار ٤: ١٨٩، كتاب الكراهية)

## په شريکي کور کې شرعي پرده او طريقه يې

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زه په خپله ښځه شرعي پرده کول غواړم: خو مور او پلار مې خفه کيږي. اوس زما لپاره څه کول پکار دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الخالق مسجد قاضيان سرگودها ...۱۳۹۷هـ /ربيع الثاني/۲۹/

**جواب:** شرعي پرده اسانه ده. ﴿۱﴾ نه خپلې ښځې ته وو ايه چې کله کور خالي وي؛ نو هيڅ غير محرم ته دننه اجازه مه ورکوه! ﴿۲﴾ د بېلگې په توگه: که ستا په شتون کې څوك راځي؛ نو خير دی. ﴿۳﴾ د غير محرم سره يې د ازاد گپ شپ او بې ضرورته خبرو نه بندول. ﴿۴﴾ په ضروري خبرو کې هيڅ گناه نشته. ﴿۵﴾ دخولې، د لاس تلي او قدم نه بغير نور اندامونه هر وخت پټ ساتل پکار دي،

---

﴿۱﴾عن ابى هريرة رضى الله تعالى عنه عن النبى ﷺ قال: إن الدين يسر.
(صحيح البخارى ۱: ۱۰، كتاب الإيمان ،باب الدين يسر)

﴿۲﴾عن عمر رضى الله تعالى عنه عن النبى ﷺ قال لايخلونّ رجل بامرأةٍ الّا كان ثالثها شيطان......عن جابر رضى الله تعالى عنه عن النبى ﷺ لاتَلِجُوا على المغيبات فإنّ الشيطان يجرى من أحدكم مجرى الدم.(مشكوة المصابيح ۲۶۸، ۲۶۹ ،باب النظر إلى المخطوبة)

﴿۳﴾قال العلامة ابن عابدين: وفى الأشباه: الخلوة بالأجنبية حرام...... اقول وقول القنية وليس معهما محرم يفيد أنّه لو كان فلا خلوة والّذى تحصل من هذا انّ الخلوة المحرمة تنتفى بحائل وبوجود محرم أو إمرأة ثقة قادرة.

(ردالمحتار ۵: ۲۶۰، كتاب الحظر والإباحة، فصل فى النظر والمسّ)

﴿۴﴾قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: "ولايكلم الاجنبية إلاعجوزًا.

(ردالمحتار ۵: ۲۶۰، كتاب الحظر والإباحة ،فصل فى النظر والمسّ)

﴿۵﴾عن ابى هريرة رضى الله تعالى عنه قال ...... پاتې حاشيه په بل مخ باندې

که خامخا خطرې و بره نه وي؛ نو د خولې پټول ضروري نه دي﴿۱﴾ وهو الموفق.

## د ښځو په مکتب (ښوونځي) کې استاذ کېدل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې زه په حکومتي مکتب کې ښوونکی (معلم) وم، اوس زه د نجونو لیسې ته بدل شوم او په هغې کې بالغې نجونې هم شته. ایا زما لپاره دا جائز دي چې د نجونو په لیسه کې لوست ورکړم؟ بینوا توجروا

المستفتي: نور محمد متعلم دار العلوم حقانیه ...... ۱۹۸۴ م / اکتوبر / ۱۲/

**جواب:** ته په خوند د کتو، سترې مشي او زړه لګولو نه ځان وساته؛ که نه

---

(بقیه حاشیه) خرج رسول الله ﷺ ذات يوم أو ليلة فإذا هو ابي بكر وعمر ...... فأتى رجلا من الأنصار فإذا هو ليس في بيته فلمّا رأته المرأة قالت مرحبا وأهلاًفقال لها رسول الله ﷺ أين فلان قالت: ذهب الخ:

قال العلامة النواوى :فيه جواز سماع كلام الأجنبية ومراجعتها الكلام للحاجة.

(حاشية النواوى على صحيح المسلم:۲:۱۷۷، باب جواز اشباعه غيره إلى دار من يثق برضاه الخ)

﴿۱﴾وفي الجلالين "وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وهوالوجه والكفان فيجوز نظره لأجنبي إن لم يخف فتنة في أحد الوجهين "وفي حاشيته :قوله :والكفان وكذلك القدمان عندنا.(تفسير جلالين:۲:۳۳۹،سورة النور آيت:۳۱)

﴿۲﴾قال العلامه الحصكفي رحمه الله تعالىٰ :وما حلّ نظره حل لمسه إلّا من أجنبية فلا يحل مسّ وجهها و كفّها وإن أمن الشهوة، والخلوة بالأجنبية حرام ،ولا يكلّم الأجنبية إلّا عجوزًا عطست أو سلّمت فيشمتها ويردّ السّلام عليها وإلّا لا،وينظر من الأجنبية إلى وجهها وكفيها فقط للضرورة فإن خاف الشهوة أو شكّ امتنع نظره إلى وجهها فحلّ النظر مقيد بعدم الشهوة وإلّا فحرام وهذا في زمانهم وأمّا في زماننا ...... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

نو وظیفه دي بدله کړه، والله أعلمُ بالصواب.

## د حکومتي وظیفې لپاره د لوڅ بدن معاینه کول

**سوال** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې کله د فوځ لپاره ځوان داخله کوي؛ نو په لوڅ بدن یې معاینه کوي، ایا داسې کول صحیح دي؟ او دا هم ضروري ده چې کله اسلام ته خطر پېښ شي؛ نو دفاع به یې کوم، ددې معاینې حکم څه دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: متعلم اکوړه خټک..... ۱۴۰۵ هـ / صفر / ۱۵ /

**جواب** په هر ډول فوځ کې داخله ضروري ده، ﴿۱﴾ او کله چې دا د اسلام د دفاع لپاره جنګیږي؛ نو بیا خو بیخي ضروري ده، البته بې ضرورته بدن لوڅول حرام دي ﴿۲﴾ وهو الموفق.

---

(بقیه حاشیه) فمنع من الشابة .(درمختار مختصراً)

وقال العلّامه ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وإلّالا) أى وإلّا تكن عجوزاً بل شابة لايشمّتها ولا يردّ السّلام بلسانه.

(رد المحتار مع الدر المختار ٥: ٢٥٩. ٢٦١، كتاب الحظر والإباحة ،فصل في النظر والمسّ)

﴿١﴾وفي شرح المجلة: يجوز إجارة الآدمي للخدمة أو لإجراء صنعة ببيان مدة أو بتعيين العمل بصورة أخرى. (شرح المجلة ٢: ٦٦٠، المادة نمبر: ٥٦٢، الفصل الرابع في إجارة الآدمي)

﴿٢﴾(وعن ابن عمر رضى الله تعالى عنهما قال قال رسول الله ﷺ: إيّاكم والتعرّى فإنّ معكم من لايفارقكم إلّا عند الغائط وحين يفضي الرجل إلى أهله فاستحيوهم وأكرموهم).

وقال الملا على قارى رحمه الله تعالى :قال ابن الملك فيه أنه لايجوز كشف العورة إلّا عند الضرورة كقضاء الحاجة والمجامعة وغير ذلک".

(مرقاة المفاتيح ٢: ٢٠٠ ،باب النظر إلى المخطوبة)

## په غیر محرم باندې پښې او ورون چاپي کول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د استاذانو لپاره په مدرسه کې ناپالغو هلکانو باندې پښې او ورون چاپي کول څه حکم لري؟ لکه نن سبا دا کار عالمانو خپل يو رواج جوړ کړی دی. ايا دا جائز دي او که ناجائز؟ که جائز وي؛ نو په قرآن او حدیث سره یې ثابت کړئ. بینوا توجروا

المستفتي: کمال الدین بهکر ضلع میانوالی ..... ۱۳۸۸ هـ / ذی القعده / ۱۴ /

**جواب:** په غیر محرم باندې د عورت چاپي کول حرام دي، د عورت نه بغیر نور اندامونه چاپي کول جائز دي، ﴿۱﴾ فی الهندیة ۵، ۳۶۴: قالَ أبوْ جعفرٍ سمعتُ الشیخَ الامامَ أبابکرٍ محمداً رحمةُ الله تعالی یقولُ لا بأسَ بأنْ یغمزَ الرجل الی الساقِ و یکرهُ أنْ یغمزَ الفخذَ و یمسه وراء الثوبِ ، ویقولُ یغمزُ الرجلُ رِجْلَ والدیهِ ولا یغمزَ فخذ والدیه والفقیه أبو جعفرٍ رحمه الله تعالی یبیحُ أنْ یغمزَ الفخذَ و یمسها وراء الثوبِ و غیرها﴿۲﴾وهوالموفق.

## بالغه لور او خور مچو کول ناجائز دي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې پلار په سفر تللی وي، کله چې د سفر نه څو میاشتې وروسته راشي او د هغه بالغه لور په

---

﴿۱﴾قال العلامة العینی رحمه الله تعالیٰ: (وما یباح النظر إلیه للرجل من الرجل یباح المسّ)یعنی إذا کان المسّ بغیر شهوة ......وفی المجتبیٰ اختلف فی غمز الرجل فخذ الرجل فوق الإزار قیل یجوز إذا کان الإزار کثیفًا وبه أخذ الحلوانی والاحتیاط ترکه .

(البنایة فی شرح الهدایة ۱۳: ۲۹۰، کتاب الکراهیة،فصل فی الوطی والنظر)

﴿۲﴾(فتاوی هندیه۵: ۳۲۸ کتاب الکراهیة ،الباب الثامن فیما یحل للرجل النظر إلیه)

کور کې وي، که پلار خپله لور مچو کړي. ایا دا جائز دي او که ناجائز؟ که جائز وي؛ نو کوم شرعي دلیل وړاندې کړئ!

دغه راز که مشر ورور خپله بالغه خور مچو کړي؛ نو څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: فهیم الدین پشاور صدر ..... ۱۹۸۶ م / ۵ / ۲۱ /

**جواب:** دفساد په دې وروستي دورکې مچو کول ناجائز او حرام دي ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## د ښځې لپاره د خاوند مړي ته لاس لګول او کتل

**سوال:** ددین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې ښځه د خاوند مړي ته لاس وروړی شي او که نه؟ او هغه ته کتلی شي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: میا محمد صدیق دهلي کالوني کراچی نمبر ۶ ..... ۱۴۰۴ هـ / جمادی الثانی / ۲۲/

**جواب:** ښځه خاوند ته غسل ورکولای شي، لاس ورسره لګولای شي او هغه کتلای هم شي

﴿۱﴾ وفي الهندية: يكره أن يقبّل الرجل فم الرجل أو يده أو شيئاً منه في قول أبي حنيفة ومحمّد رحمهما الله تعالىٰ، وقال أبو يوسف رحمه الله تعالىٰ لابأس بالتقبيل..... فإن كانت القبلة على وجه المبرة دون الشهوة جاز عند الكل..... ذكر ابو الليث رحمه الله تعالىٰ أن التقبيل على خمسة أوجه قبلة الرحمة كقبلة الوالد ولده ..... وقبلة المودّة كقبلة الرجل أخاه على الجبهة.

(فتاوى هندية ٥: ٣٦٩، الباب الثامن والعشرون في ملاقات الملوك)

وقال العلامة الرافعي رحمه الله تعالىٰ: (ثم قول أبي يوسف رحمه الله تعالىٰ لابأس الخ) إن كان بشهوة فهو حرام اتفاقاً وبدونها فجائز اتفاقاً.

(تقريرات الرافعي ٦: ٣٠٨، كتاب الحظر والإباحة، باب الاستبراء)

(شامي ﴿۱﴾ وغیره ﴿۲﴾) وهو الموفق.

## د لېور نه د پردې په کولو خفه کېدل یا شراکت ختمول کم عقلي ده

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د لېور نه د پردې په کولو سره ځينې خلك وايي چې شراکت به ختم شي او په صله رحمي کې به کمی راشي، په داسې حال کې چې شریعت هم د صله رحمۍ په اړه زور ورکوي، وايي: صله رحمي پرې نه کړئ! په خپل منځ کې بنه اخلاقو سره ژوند تېروئ! ددې په باره کې شرعي حکم څه دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد زمان بام خیل ضلع صوابی ..... ۱۹۷۵م / ۷ / ۲۵ /

**جواب**: د لېور نه پرده ضروري ده، په پردې کولو سره خفه کېدل یا شراکت ختمول بې دیني او کم عقلي ده. ﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾قال العلامة الحصكفي :ويمنع زوجها من غسلها ومسها لا من النظر إليها على الأصح وهي لاتمنع من ذلک، وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ :(قوله:وهي لاتمنع من ذلک)اى من تغسيل زوجها دخل بها أو لا......قلت اى لأنها تلزمها عدة الوفاة ولولم يدخل بها.

(ردالمحتار ۱ :۶۳۴ كتاب الجنائز مطلب فی حديث كل سبب ونسب منقطع)

﴿۲﴾وفی الهندية:ويجوز للمرأة أن تغسل زوجها إذالم يحدث بعد موته مايوجب البينونة.

(فتاوی هندية ۱ :۱۶۰ كتاب الجنائز ،الفصل الثانی فی الغسل)

﴿۳﴾عن عقبة ابن عامر رضی الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ إياكم والدخول على النسآء فقال رجل يارسول الله ﷺ ارايت الحمو؟قال الحمو الموت.

(مشكوة المصابيح ۲۶۸ كتاب النكاح،باب النظرإلى المخطوبة)

وقال العلامة العينی :المراد من الحمو فی الحديث أقارب الزوج غير آبائه وأبنائه لأنهم محارم للزوجة...... وإنماالمراد الأخ وابن الأخ والعم ...... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

## د ښځې د خور (خیني) نه پرده کول څه حکم لري؟

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د ښځې د خور (خیني) نه پرده کول څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد زمان بام خیل ضلع صوابی ..... ١٩٧٥ م / ٧ / ٢٥ /

**جواب:** دا د محارمو څخه نه ده، د ښځې د مرګ یا طلاق ورکولو وروسته د دې سره نکاح کیږي، ﴿١﴾ نو ځکه ددې نه هم پرده ضروري ده﴿٢﴾ وهوالموفق.

## متبنی (هغه څوک چې په زوی توب نیول شوی وي) جوړل او د هغه نه د پردې کولو حکم

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې په شریعت کې متبنی جوړول جائز دي او که ناجائز؟ که جائز وي نو پرده ترې کول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: جمعه مقام سلیم خان کیمل پور حضرو ..... ١٣٩٠ هـ / ربیع الثانی /٢٣/

---

(بقیه حاشیه) وابن العم وابن الأخت ونحوهم ممن يحل لها تزويجه..... وجرت العادة بالتساهل فيه. (عمدة القاری ٢٠: ٢١٣ كتاب النكاح، باب لايخلون رجل بامرأة)

﴿١﴾قال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي: فلو ماتت زوجة رجل جاز أن يتزوج بأختها أو عمتها ..... فلو طلق زوجته طلاقا رجعيا لم يجز له الزواج بواحدة من قريباتها المحارم إلا بعد انقضاء العدة. (الفقه الإسلامی وأدلته ٩: ٦٦٢٥، الجمع بين الأختين ونحوهما فی العدة)

﴿٢﴾قال العلامة الكاسانی رحمه الله تعالى: وأمّا النوع السادس: وهو الأجنبيات الحرائر فلايحل النظر للأجنبی من الأجنبية الحرة إلى سائر بدنها إلّا الوجه والكفين لقوله تعالى: قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ.

(بدائع الصنائع ٣: ٣٩٣، كتاب الاستحسان)

**جواب**: متبنی اوس هم جوړول جائز دي؛ خو د پردي په کولو او میرات کې د پردي حکم لري، نسبت به یې خپل پلار ته کیږي.﴿۱﴾ والدليلُ على جوازه اقتضاء قوله تعالى: ﴿ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِندَ اللَّهِ﴾ (الآية) يعني أنكر الله تعالى على الدعوة للمتبنى لا على التبني ﴿۲﴾ وهو الموفق.

## مشر ورور یا خور او بالغ زوی یا لور مچو کول

**سوال**: ما يقولُ العلماءُ الكرامُ في المسئلة الآتية: هلْ يجوزُ تقبيلُ الأبِ بنته الكبيرةَ أمْ لا ؟ هل يجوزُ تقبيلُ الأم ابنها الكبير على الخدّ أمْ لا ؟ وهل يجوزُ تقبيلُ الأخِ أخته و بالعكسِ أم لا؟ بينوا توجروا

المستفتي: فصیح الدیم پشاور صدر ...... ۱۹۸۶م/۵/۸/

﴿۱﴾ وفي المرقاة: (عن أبي هريرة رضى الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ لاترغبوا) أي لاتعرضوا (عن آبائكم فمن رغب عن أبيه) أي وانتسب إلى غيره (فقد كفر) أي قارب الكفر...... والادعاء إلى غير الأب مع العلم به حرام. (مرقاة المفاتيح ۶: ۳۲۰، باب اللعان)

﴿۲﴾ وفي تفسير القرطبي: قال الإمام القاسم عبدالرحمن السهيلي رضى الله تعالى عنه كان يقال زيد بن محمّد حتّى نزل (أُدْعُوْهُمْ لِآبَائِهِمْ) فقال أنا زيد بن حارثة، وحرم عليه أن يقول أنا زيد بن محمّد ﷺ.

(أحكام القرآن للقرطبي ۱۴: ۱۷۱، سورة الأحزاب آيت ۳۷)

(ويدل على جوازه اتّخاذ عائشة رضى الله تعالى عنها للعروة بن زبير بالتبنّی كما قال الشيخ عبدالحق رحمه الله تعالى) عروه بن زبیر رضی الله عنه چې د حضرت عائشې رضی الله عنها خوریی او د حضرت اسما رضی الله عنها زوی دی، ددې له امله چې د حضرت عائشې رضی الله عنها خپل زوی نه ؤ، نو خپل خوریی یې په زوی ولی نیولی ؤ.

(حقائق السنن ۱: ۳۶۸، باب ترک الوضوء من القبلة)

**جواب**: هذا التقبيلُ وانْ كانَ جائزاً فى نفسه﴿۱﴾لكن لا يفتى بــه فى عصــرِ الجهلِ والفسقِ كعصرنا-وهوالموفق.

## د ماما لور، د تره لور، د مامي، وربنداري او د ښځې د وربرې نه د پردې حکم

**سوال**:ددين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د ماما د لور، تره لور،مامي،وربنداري اودښځې د وربرې نه دپردې څه حکم دى؟بينوا توجروا

المستفتي: حنيف الله ديروي فاضل بنوري ټاون کراچى...١٤٠٢هـ/ محرم/٢٠/

**جواب**:ددې ټولو په وړاندې عورت ښکاره کول،﴿۲﴾ ددوى سره ستړي مشي

﴿۱﴾قال العلامه الحصكفى رحمه الله تعالى :وكره تحريمًا قهستانى تقبيل الرجل فم الرجل أويده اوشيئًا منه، وكذا تقبيل المرأة المرأة عندلقاء او وداع ،قنية، وهذا لو عن شهوة وأمّا على وجه البرّ فجائز عند الكلّ خانية ......التقبيل على خمسة أوجه قبلة المودّة للولد على الخدّ وقبلة الشفقة لأخيه على الجبهة وقبلة الشهوة للمرأة وأمته على الفم. (الدرالمختار ٥: ٢٦٩. ٢٧٢، باب الاستبراء)

وفى الاختيار:(ويكره ان يقبّل الرجل فم الرجل أو شيئًا منه أو يعانقه)وعن أبى يوسف لاباس به وعن بعض المشائخ لاباس به إذ قصد به الإكرام والمبرّة ولم يخف الشهوة.(الاختيار لتعليل المختار ٥: ١٩٣، قبيل فصل احكام اللباس)

﴿۲﴾وفى المرقاة:عن بهز بن حكيم عن أبيه عن جدّه قال قال رسول الله ﷺ أى له احفظ عورتك أى من التكشف إلّا من زوجتك او ما ملكت يمينك .

(مرقاة المفاتيح ٦ : ٢٠٠، باب النظر الى المخطوبة)

کول او د هغوی سره يوازې کښيناستل حرام دي «۱» وهوالموفق.

## د خوابنې نه د پردې حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که خوابنې څوانه وي، د هغې نه پرده کول څه حکم لري؟ د ځوانۍ او بوډۍ والي څه حد دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد زمان بام خيل ضلع صوابی ...... ۱۹۷۲م / ۷ / ۲۵ /

**جواب:** خوابنې د محارمو ښځو څخه ده، «۲» ددې سره هم يوازيوالی منع دی، په داسې حال کې چې د خطرې واقع کېدو وېره وي «۳» وهوالموفق.

---

«۱» قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالىٰ: وما حل نظره حل لمسه إلاّ من أجنبية فلا يحلّ مسّ وجهها وكفها وإن أمن الشهوة لأنه اغلظ، والخلوة بالاجنبية حرام، ولا يكلّم الأجنبية إلاّ عجوزًا.

(الدرالمختارمختصرًا ٥: ٢٥٩ : كتاب الحظر والإباحة، فصل فى النظر والمسّ)

«۲» وفى الاختيار: ويحرم على الرجل نكاح..... أم امرأته قال الله تعالى: وأُمَّهَاتُ نِسَآئِكُمْ.

(الاختيار لتعليل المختار ٣: ١٠٥، كتاب النكاح، فصل فى المحرمات)

«۳» وقال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالىٰ: والخلوة بالمحرم مباحة إلاّ الأخت رضاعًا والصهرة الشابّة.

وقال العلامة بن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله والصهرة الشابّة) قال فى القنية: ماتت عن زوج وأم لهما أن يسكنا فى دار واحدة إذا لم يخافا الفتنة وإن كانت الصهرة شابّة فللجيران أن يمنعوها منه إذا خافوا عليهما الفتنة.

(ردالمحتار مع الدر المختار ٥: ٢٦٠، كتاب الحظر والإباحة، فصل فى النظر والمسّ)

## د لېور او اوښي نه د پردې حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د لېور نه پرده څه حکم لري، فرض دي که مستحب؟ ځکه چې زمونږ ښځې د لېور نه پرده نه کوي. د خور د خاوند (اوښي) نه پرده څه حکم لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الرحمن قندهاري ميزان مارکيټ کوټه.....۱۴۰۲هـ /شعبان/۲۷/

**جواب:** لېور او اوښي پردي دي، د هغوی نه د عورت پټول، د بدن د ښسته پټول، دغه راز پنډی پټول فرض دي. ﴿۱﴾ والناسُ عنهُ غافلونَ ، قالَ اللّهُ تبارك وتعالی: ﴿وَلَايُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ...(الآية ۳۱ سورة النور)﴾ ﴿۲﴾ وقالَ رسولُ اللّه صلی اللّه عليهِ وسلمَ : اِيَّاكم والدخولَ علی النساءِ فقالَ رجلٌ يا رسولَ اللّهِ صلی اللّه عليهِ وسلّمَ! ارءيتَ الحموَ ؟ فقالَ الحموُ الموتُ (متفق عليه) ﴿۳﴾ وهو الموفق.

## د تره، ماما، ترور او امه لورګانو نه د پردې حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د تره، ماما، ترور او امه لورګانو نه پرده څه حکم لري؟ دغه راز د تره ځوانې ښځې نه د پردې حکم؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد زمان بام خيل صوابی ..... ۱۹۷۲م / ۷ / ۲۵/

---

﴿۱﴾ وفی الاختيار: ولا ينظر إلی الحرة الأجنبية إلّا إلی الوجه والكفين إن لم يخف الشهوة......والأصل فيه قوله تعالی: وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا.

(الاختيار لتعليل المختار ۴: ۱۹۳ کتاب الکراهية)

﴿۲﴾ (سورة النورآيت: ۳۱)

﴿۳﴾ (مشکوة المصابيح ۲۶۸، باب النظر إلی المخطوبة)

**جواب**: دا ټولې محارمې نه بلکې پردی ښځې دي. نو ځکه پرده ترې ضروري ده ﴿۱﴾ وهوالموفق.

## د مراهقه جينۍ د سرو په وړاندې د قرانکريم تلاوت کول

**سوال**: د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې زموږ په جوماتو کې يو مجلس جوړ شو چې د لرې نه هم ځينو مېلمنو پکښې ګډون کړی وو. د دوی په وينا ځينې شاګرداني نجوني هم راغلي وې چې ځينې پکښې بالغي وې، هغوی د تلاوت او بيا ځينې بې د حديث اورولو لپاره د جومات په منبر کښېنستلې او خبري يې پيل کړې، ځينې خلك د مجلس نه خفه لاړل، ويل يې: د جينۍ لپاره دا نه دي جائز چې د سړو په څېر منبر باندې کښېني او خلکو ته وينا وکړي، لهذا تاسو يو غير شرعي کار وکړ؛ نو ځکه موږ خفه شو، اوس ددې مسئلې شرعي حل څه دی؟ بينوا توجروا

المستفتي شيخ رضوان اسلم پنډی ...... ۱۴۰۹ هـ / صفر المظفر /۱۴/

**جواب**: دبالغي بلکې مراهقې (هغه چې د سړي اشتها ورته راځي (زباړن) اواز پورته کېدل مکروه دي، ځکه چې دې سره د فتنې پيدا کېدو وېره ده ﴿۲﴾ وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ قال الله تبارک وتعالی: يَأَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ.... الآية.

(سورة الأحزاب آيت ۵۹)

وقال النبی ﷺ المرأة عورة ،فإذا خرجت ،استشرفها الشيطان روه الترمذی.

(مشکوة المصابيح ۲۶۹، باب النظر إلی المخطوبة)

﴿۲﴾ قال العلامة اللکنوی رحمه الله تعالی: والاستفسار: صوت المرأة هل هو عورة؟ الاستبشار: اختلف فيه: فقيل إنها عورة..... وقيل إنه ليس عورة ورجحه فی الدرالمختار ،واعتمد عليه ابن نجيم المصری فی الأشباه ،وفی غمز عيون البصائر: فی شرح المنية الأشبه أن صوتها ليس بعورة وانما يؤدی إلی الفتنة.

(نفع المفتی والسائل ۴۰۰، ۴۰۱ ما يتعلق بالنظر واللمس)

## د بالغو سړو په يوه کټ څملاستل:

**سوال:** ما يقولُ العلماءُ أئمةُ الدينِ نفعَ اللّٰهُ تعالیٰ بهم المسلمينَ فی الرجلينِ الفحلينِ يجتمعانِ للنومِ فی السريرِ الواحدِ للضرورة أَوْ لغيرها معَ وجودِ المحبة الصحيحةِ فی قلبِ كلٍّ واحدٍ منهما معَ الآخرِ هلْ يجوزُ لهما ذلك الفعلُ أمْ لا؟ بينوا بالدليلِ آجركم اللّٰهُ تعالیٰ الجليل

المستفتي: محمد فردوس الافغانی

**جواب:** افضاء الرجلِ الی الرجلِ خلافُ الأولی عندَ الأمنِ منَ الفتنة ، قالَ رسولُ اللّٰه صلی اللّٰهُ عليهِ وسلمَ: الا لا يفضينَّ رجلٌ الی رجلٍ ولا امرءةٌ الی امرءةٍ الاالی ولدٍ أوْ ولد،(رواهُ أبوداؤدَ﴿۱﴾)وفی المجمعِ هوفهی تحريمٌ اذالمْ يكنْ بينهما حائلٌ بأنْ يكونَ متجردينِ وانْ كانَ بينهما حائلٌ فتنزيهٌ ، بذلة ۳: ۶۵ :﴿۲﴾، نعم! عند الضرورة جازَ ارتكابُ أهونُ البليتين﴿۳﴾وهوالموفق.

## د غير محرم سره سفر، يوازې والی، سلام خبرې او د هغوی د بيماری د پوښتنې حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي زيد دا عقيده لري چې د پردې تعلق د زړه سره دی، غير محرم ښځې ته سلام کول، د هغې

---

﴿۱﴾(سنن أبی داؤد ۱:۲۹۴، كتاب النكاح باب ما يكره من ذكر الرجل مايكون من اصابته أهله)

﴿۲﴾(بذل المجهود ۳:۲۶۴، كتاب النكاح، باب ما يكره من ذكر الرجل مايكون من إصابته أهله)

﴿۳﴾قال العلامة الحصكفی رحمه اللّٰه تعالیٰ :والضابط أن من ابتلی ببليتين فإن تساويا خير وإن اختلفا اختار الأخف.

(الدرالمختار ۱:۳۰۳، قبيل بحث النية )

وفی شرح المجلة :يختار اهون الشرين. (شرح المجلة ۱:۷۰، المادة ۲۹)

پوښتنه کول، د هغې سره بوازې سفر کول جائز دي، دغه راز بوډا سړی او بوډۍ هم پردي کور ته تلای شي، بالغې ښځې ته پردي سړی د قرآن تعلیم ورکولای شي. دا شیان په شریعت کې څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتي: جاوید اقبال نیو ټاون کراچي ...... ۱۴۱۰ هـ / رمضان /۲۹/

**جواب:** زید په ښکاره غلطۍ باندې دی، د شریعت او طبیعت دواړو نه بې خبره دی. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## په اوسني دور کې د پردیو نه ټول بدن پټول ضروري دي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې ځینې خلک وایي: موږ غریبانان یو، زموږ سره په پټیانو کې زموږ ښځې هم کومک کوي، یا دا چې بازار ته ځي. په ښځه باندې هیڅ پابندي نه ده ضروري، نبي کریم صلی الله علیه وسلم ددې په اړه څه حکم کوي؟ بینوا توجروا

المستفتي: عنایت مجیب خټک ضلع چترال

---

﴿۱﴾قال الله تبارک وتعالی: يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ....الآیة.(سورة الاحزاب ۵۹)

عن ابن مسعود رضی الله تعالی عنه قال رسول الله ﷺ المرأة عورة فإذا خرجت استشرفها الشیطان.

(مشکوٰة المصابیح ۲۶۹، باب النظر إلی المخطوبة)

وقال العلامة الکاساني رحمه الله تعالی: وأما النوع السادس: وهو الأجنبیات الحرائر فلایحل النظر للأجنبي من الأجنبیة الحرة إلی سائر بدنها إلا الوجه والکفین لقوله تعالی: قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ...الآیة (سورة النور ۳۰) إلا أن النظر إلی مواضع الزینة الظاهرة وهی الوجه والکفان رخص بقوله تعالی: وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا.

(بدائع الصنائع ۴: ۳۹۳، کتاب الاستحسان، النوع السادس)

**جواب** په اوسني دور کې د پردیو سړو نه ټول بدن پټول د ټولو ضروري دي ﴿۱﴾

والله أعلمُ بالصواب .

## د ضرورت لپاره له کوره د ښځې وتل

**سوال** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې ایا زموږ په مذهب کې د ضرورت لپاره ښځه له کوره بهر وتلای شي؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد ارشاد پشاور ښهر ..... ۱۴۰۵ هـ / شعبان / ۲ /

**جواب** ښځه د کور د ضرورت لپاره بهر ته وتلای شي، په شرط ددې چې د فتنې او بې پردګۍ نه په امن کې وي ﴿۲﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: (وللحرة جميع بدنها) حتّى شعرها النازل في الأصح (خلا الوجه والكفين) فظهر الكف عورة على المذهب (والقدمين)...... وتمنع المرأة الشابة من كشف الوجه بين رجال لا لأنه عورة بل لخوف الفتنة. (الدر المختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله بل لخوف الفتنة) أى الفجور بها، قاموس، أوالشهوة، والمعنى تمنع من الكشف لخوف أن يرى الرجال وجهها فتقع الفتنة، لأنه مع الكشف قد يقع النظر إليها بشهوة.

(ردالمحتار ۱: ۲۹۸، ۲۹۹، كتاب الصلوٰة، باب شروط الصلاة)

﴿۲﴾ في حجة الله البالغة: ألا تخرج المرأة من بيتها إلّا لحاجة لاتجد منها بدًّا، قال النبي ﷺ المرأة عورة فإذا خرجت استشرفها الشيطان...... أن تلقى عليها جلبابها ولا تظهر الزينة منها إلّا لزوجها أولذى رحم محرم.

(حجة الله البالغة ۲: ۲۲۰ ذكر العورات من أبواب تدبير المنزل)

قال العلامة القرطبي رحمه الله تعالى:..... پاتې حاشیه په بل مخ باندې

## د پردیو سره یوازې کښېناستل. د هغه بدن ښکلول یا په خوند ورته کتل

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زموږ د خلکو دا یو رواج دی د خپلوانو نه پرده کول عیب ګڼل کیږي، حال دا چې د کومې ښځې سره چې نکاح کیږي د هغې نه پرده ضروري ده، د یو عالم وینا ده: پرده نه کول لویه ګناه ده، تاسو راته د پردې په اړه تفصیلي بیان وکړئ! بینوا توجروا

المستفتي: محمد مظهر ...... ۱۹۷۴م/ ۳/ ۲۷/

**جواب:** ستاسو درانه حضور ته السلام علیکم! وروسته له دې واضحه دې وي چې د پردیو نه پرده کول فرض ده. ﴿۱﴾ د پردیو سره یوځای کښېناستل د هغه کوم اندام ته د خوند په نظر کتل یا یې ښکلول ناجائز او

(بقیه حاشیه) قوله تعالى: وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ، معنى هذه الآية: الأمر بلزوم البيت، وإن كان الخطاب لنساء النبي ﷺ فقد دخل غيرهن فيه بالمعنى هذا لو لم يرد دليل يخص جميع النساء، كيف والشريعة طافحة بلزوم النساء بيوتهن والانكفاف عن الخروج منها إلا لضرورة فأمر الله تعالى نساء النبي ﷺ بملازمة بيوتهن وخاطبهن بذلك تشريفًا لهن ونهاهن عن التبرج.

(الجامع لأحكام القرآن ۱۴: ۱۵۹ سورة الأحزاب، آيت: ۳۳)

﴿۱﴾ قال الله تعالى: (يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ) قال أبو بكر: في هذه الآية دلالة على أن المرأة الشابة مأمورة بستر وجهها عن الأجنبيين وإظهار الستر والعفاف عند الخروج لئلا يطمع أهل الريب فيهن.

(أحكام القرآن للجصاص ۳: ۳۷۲، قبيل سورة سباء)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وفي الأشباه: الخلوة بالأجنبية حرام.

(الدرالمختار ۵: ۲۶۰ كتاب الحظر والإباحة، فصل في النظر والمس)

حرام دي.﴿۱﴾ پاتې شوه داچې خپلوانو کره تلل په شرط ددې چې ددې کارونو نه خالي وي بیا منع نه دي. وهوالموفق

## د غیر محرم نه پرده نه کول د پښتنو رواج او کم عقلي ده

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زید یو دیني عالم دی، په خپله ښځه باندې پرده کول غواړي؛ خو ښځه چې بې کله د پلار کور ته لاړه شي؛ نو نه د ځوان او نه د بوډا نه پرده کوي، که زید خپلې ښځې ته وایي: چې پرده کوه؛ نو دا ورته په ځواب کې وایي: چې د وړوکوالي نه تر اوسه پورې مې پرده نه ده ورنه کړې، که اوس بې کوم خلك به راپورې توکي او مسخرې کوي، ایا د ښځې دا رایه صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: محترم ابوالحسن منظور احمد شاه مانسهره

**جواب:** (۱)واضحه دي وي چې دغیرمحرم نه پرده نه کول د پښتنو یووروسته پاتې رواج اوکم عقلي ده.دا رواج دقرآن سره په ټکر کې دی. قالَ اللهُ تبارك وتعالی:﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ...الآية﴾﴿۲﴾ لهذا د توکو او مسخرو له امله ځان بې پردې کول د ایمان کمزوري ده

---

﴿۱﴾فی الهندیة: وأما إذا علمت أنه تقع فی قلبها شهوة أوشکت ومعنی الشک استواء الظنین فأحب الیّ أن تغض بصرها منه هکذا ذکر محمّد رحمه الله تعالی فی الأصل فقد ذکر الاستحسان فیما إذا کان الناظر إلی الرجل الأجنبی هو المرأة وفیما إذا کان الناظر إلی المرأة الأجنبیة هو الرجل قال فلیجتنب بجهده وهو دلیل الحرمة وهو الصحیح فی الفصلین جمیعًا ولا تمس شیئًا منه إذا کان أحدهما شابًا فی حد الشهوة وإن أمنا علی أنفسهما الشهوة. (فتاوی هندیة۵:۳۲۷، کتاب الکراهیة، الباب الثامن فیما یحل للرجل النظر إلیه)

﴿۲﴾(سورة النور آیت:۳۱)

(۲) دزید په خپله ښځه باندې پرده نه کول بې غیرتي او دووسي ده، «۱» خو که کور ته د خاوند په موجودګۍ کې غیر محرم سړی راشي او د ښځې مخ ښکاره وي، په دیکښې بیا څه ګناه نشته «۲» وهوالموفق

## د سړي اپاره بالغو ښځو ته د قرآن لوست ورکول

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زموږ د کلي امام صاحب دی، د ده پر وخت راهیسي بې غټو بالغو ښځو ته بې پرده لوست ورکولو، ځینو خلکو دا امام صاحب ددې کار نه منع کړ چې دا ناجائز کار مه کوه؛ ځکه چې په همدې کلي کې ځیني ښځې داسې شته چې قرآنکریم په ناظره لوستلای شي، ښځې دې دغو غټو ښځو ته ورځي او د قرآن تعلیمونه دې زده کوي، امام صاحب خپل ضد پوره کوي او بالغو ښځو ته د خپل زوړ عادت سره سم اوس هم تعلیم ورکوي، بل مولوي صاحب بیا دا فتوی ورکړه چې پرده هم فرض او د علم زده کړه هم فرض ده (طلب العلمِ فريضةٌ على كلِّ مسلمٍ و مسلمةٍ) په دې صورت کې مولوي صاحب بې پردې لوست ورکولای شي، د هغه شاته د خلکو لمونځ هم صحیح دی.

«۱» عن جابر رضى الله تعالىٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ: إن المرأة تقبل في صورة شيطان وتدبر في صورة شيطان...... عن ابن مسعود رضى الله تعالى عنه عن النبي ﷺ قال: المرأة عورة فإذا خرجت استشرفها الشيطان...... عن الحسن البصرى رحمه الله تعالى مرسلًا قال بلغني أن رسول الله ﷺ قال: لعن الله الناظر والمنظور إليه، من غير عذر.

(مرقاة المفاتيح ۶:۱۹۷، ۱۹۸، ۲۰۳ كتاب النكاح، باب النظر إلى المخطوبة)

«۲» قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: (قوله أو بحائل) ...... أقول: وقول القنية وليس معهما محرم يفيد أنه لو كان فلا خلوة والذى تحصل من هذا أن الخلوة المحرمة تنتفى بالحائل وبوجود محرم أوامراة ثقة قادرة.

(ردالمحتار ۵: ۲۶۰ كتاب الحظر والإباحة، باب النظر والمس)

بل دیني عالم ددې عالم په خلاف فتوی ورکړه چې دا امام په لویه ګناه کې اخته دی. لهذا ترکومه چې دا امام د خپل کار نه اونښتی نه وي تر هغه پورې ددې امام پسې لمونځ نه صحیح کیږي. کله چې دې عالم ته معلومه شوه چې ده خو داسې فتوی ورکړې؛ نو هغه بل ته یې کنځلې شروع کړې. په یاد صورت کې امام باندې کوم شرعي حکم نافذیږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: قاضي محمد عنایت الله راولپنډی ..... ۱۹۷۰م / ۳ / ۲۹/

**جواب**: ښځې چې کله د قرآن تلاوت کوي. د هغوی آوازونه ښایسته وي او زړونه ځان ته مایل کوي، ددې له امله نارینه استاذ ته پکار دي چې د بالغو نجونو د لوست نه لاس واخلي، بې شکه که ښځې خاموش ناستې وي یا په بې کاره اواز تلاوت لولي، دغه راز د دواړو تر منځ اختلاط هم نه وي بیا جائز دي، ف رد المحتار ۱: ۲۷۷: فانا نجیز الکلامَ معَ النساءِ الأجانبِ ومحاورتهنَّ عند الحاجة الی ذلك ولا نجیزُلهنَّ رفعَ أصواتهنَّ ولا تمطیطها ولا تلیینها وتقطیعها لمافی ذلك من استمالة الرجالِ الیهنَّ وتحریك الشهوات منهمْ، وقالَ ناقلاً عنِ النوازلِ و تعلمها القرآن منَ المرأة أحبُ «۱» فقط، وهو الموفق.

## ښایسته جینی یا هلك ښکلول

**سوال**: (۱) د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې د ښایسته جینی یا هلك سره مینه کول. یا د خپلې سینې سره یوځای کول څه حکم لري؟ او هغه دې کار سره ګناهګاریږي او که نه؟

(۲) د لس کالو نه واخله تر اتلسو کالو پورې هلك یا جینی ښکلول جائز دي او که ناجائز؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الله شاه .... ۱۹۷۴م / ۳ / ۲۷ /

«۱» (ردالمحتار ۱: ۲۹۹ کتاب الصلوة، باب شروط الصلوة، مطلب فی ستر العورة)

**جواب:** د شفقت په توګه جائز او د شهوت په توګه ناجائز دي او په کوم ځاى کې چې د شهوت ويره وي، هلته هم ناجائز دى، كما فى تقبيلِ الأجنبى ﴿۱﴾ وهو الموفق.

## د شيخ لاس - پښې ښکلول او د هغه پښو ته ځان غورزول

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې که څوک د خپل شيخ لاس - پښې ښکلوي يا د هغه پښو ته ځان غورزوي دا څه حکم لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: فرهاد شهزاد ، جلبئى صوابى ...... ۱۴۰۳ هـ / ذى القعده / ۲۷ /

**جواب** لاس- پښې ښكلول جائز او پښو ته يې ځان غورزول يو بد رواج دى. ﴿۲﴾ لأنّ الصحابة رضى

---

﴿۱﴾ فى الهندية: فإن كانت المعانقة فوق قميص أوجبة أو كانت القبلة على وجه المبرّة دون الشهوة جاز عند الكل كذا فى فتاوى قاضى خان...... ذكر ابو الليث رحمه الله تعالىٰ أن التقبيل على خمسة أوجه: قبلة الرحمة كقبلة الوالد ولده و قبلة التحية كقبلة المؤمنين بعضهم لبعض وقبلة الشفقة كقبلة الولد والديه وقبلة المودّة كقبلة الرجل أخاه على الجبهة وقبلة الشهوة كقبلة الرجل امرأته أو أمته.

(فتاوى هندية ۵ : ۳۶۹ كتاب الكراهية، الباب الثامن والعشرون فى ملاقاة الملوك)

وقال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالىٰ: ولا رخصة فيه أى فى تقبيل اليد لغيرهما أى لغير عالم وعادل هو المختار، مجتبىٰ وفى المحيط إن لتعظيم إسلامه وإكرامه جاز. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: (قوله وهو المختار) قدم عن الخانية والحقائق أن التقبيل على سبيل البرّ بلا شهوة جائز بالإجماع.

(ردالمحتار ۵ : ۲۷۱ كتاب الحظر والإباحة، قبيل فصل فى البيع)

﴿۲﴾ فى الهندية: من سجد للسلطان على وجه التحيه أو قبل الأرض بين يديه لايكفر ولكن يأثم لارتكابه الكبيرة...... تقبيل يد العالم والسلطان العادل جائز...... پاتې حاشيه په بل مخ بانديې

الله عنهم قبلوها كما فى الأدبِ المفردِ للامام البخارى رحمه الله تعالى《۱》و

لأنَّ النبى صلى الله عليهِ وسلمَ قررَ تقبيلَ اليهود رجلَ النبى صلى الله عليهِ

وسلمَ《۲》ولما فى رد المحتار ۵: ۳۷۵《۳》وهوالموفق.

---

(بقيه حاشيه) طلب من عالم أو زاهد أن يدفع إليه قدمه ليقبله لايرخص فيه ولا يجيبه إلى ذلك عند البعض وذكر بعضهم يجيبه إلى ذلك.

(فتاوی هندية۵ :۳۶۸، ۳۶۹ كتاب الكراهية، الباب الثامن والعشرون فى ملاقاة الملوك الخ)

《۱》عن ابن عمر رضى الله تعالىٰ عنه قال: كنّا فى غزوة ،فحاص الناس حيصة ،قلنا: كيف نلقى النبى ﷺ و قد فررنا؟فنزلت (إلّا مُتَحَرِّفاً لِقِتالٍ)(الانفال۱۶)فقلنا : لا نقدم المدينة فلا يرانا أحد،فقلنا :لو قدمنا ،فخرج النبى ﷺ من صلاة الفجر قلنا :نحن الفرارون قال :أنتم العكّارون فقبلنا يده ...... عن ابن جدعان ،قال ثابت لأنس :أمسست النبى ﷺ بيدك؟قال:نعم فقبّلها ...... عن الوزاع بن عامر رضى الله تعالىٰ عنه قال:قدمنا فقيل:ذاك رسول الله ﷺ ،فأخذنا بيديه و رجليه نقبّلهما ...... عن صهيب قال:رأيت عليًا رضى الله تعالىٰ عنه يقبّل يد العباس و رجليه .

(أدب المفرد ۲۸۸، ۲۸۹،باب تقبيل اليد،باب تقبيل الرجل)

《۲》عن زراع، وكان فى وفد عبد القيس، قال لما قدمنا المدينة فجعلنا نتبادر من رواحلنا فنقبّل يد رسول الله ﷺ ورجله رواه أبوداؤد.

(مشكوة المصابيح ۴۰۲ باب المصافحة والمعانقة)

《۳》قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: ولابأس بتقبيل يد الرجل العالم والمتورع على سبيل التبرك...... طلب من عالم أو زاهد أن يدفع إليه قدمه ويمكنه من قدمه ليقبله اجابه وقيل لا.(الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى:...... پاتې حاشيه په بل مخ باندې

## د ښځې تلاوت اوريدل

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د ښځې تلاوت اوريدل څه حکم لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: شاه اسمعيل ضلع اټک ..... ۱۹۹۹م / جولائی / ۱۶ /

**جواب:** که ښځه په خوږ آواز باندې تلاوت کوي، د پردې سرې لپاره يې تلاوت اوريدل منع دي ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د بالغو ښځو سړو ته د نعت خوانۍ حکم

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې که يوه بالغه ښځه د الله تعالىٰ ستاينه او د رسول صلى الله عليه وسلم نعت د ډول او

---

(بقيه حاشيه) (قوله أجابه) لما أخرجه الحاكم: أن رجلا أتى النبیﷺ فقال: يا رسول اللهﷺ أرنی شيئا أزداد به يقينا، فقال اذهب إلى تلک الشجرة فادعها فذهب إليها فقال إن رسول اللهﷺ يدعوک فجاء ت حتى سلّمت على رسول اللهﷺ فقال لها: ارجعی فرجعت قال: ثم أذن له فقبل راسه ورجليها.

(ردالمحتار ۵: ۲۷۱ كتاب الحظر والإباحة، قبيل فصل فی البيع)

﴿۱﴾ قال العلامة الحموی رحمه الله تعالىٰ: قوله وصوتها عورة فی قول، فی شرح المنية الأشبه أن صوتها ليس بعورة وإنما يؤدی إلى الفتنة.

(غمزعيون البصائر شرح الأشباه والنظائر ۳: ۳۸۳، أحكام الأنثى)

وقال العلامة الحصكفی رحمه الله تعالىٰ: ولا تلبی جهرا بل تسمع نفسها دفعا للفتنة، وما قيل إن صوتها عورة فضعيف.

(الدرالمختار ۲۰۶ كتاب الحج، قبيل باب القِران)

سورنا نه بغبر وايي، د هغې اورېدل جائز دي او كه ناجائز؟ په داسې حال كې چې كله نبي كريم صلى الله عليه وسلم مدينې منورې ته راغى او ښځو ورته نعت ويلو نبي كريم صلى الله عليه وسلم ورته غوږ ايښى ؤ، بل لور ته په حديث كې راځي چې د سندرو او اورېدونكو په غوږونو كې به د قيامت په ورځ د وسپنې سرپ وځخول شي، د دې دواړو تطبيق څنګه كيږي؟ بينوا توجروا

المستفتي: استاذ خورشيد جناب عيسى شيدو ...... ١٩٢٥م/ ٣/ ٩/

**جواب** د بالغو ښځو نه د نعت اورېدل ګناه ده، ځكه چې په ديكښې اواز پورته كيږي او د ښځې لپاره دا مكروه دي، دغه راز د خوش اوازى د وجې نه د فتنې واقع كېدو وېره ده.﴿١﴾ وعيد او زوږنه د سندرو په اړه راغلې ده، نه د دې لپاره چې شعر ويل مباح دي، فليراجع الى رد المحتار ٥: ٣٠٥:﴿٢﴾ وهو الموفق.

## د وعدې سره سم پرده نه كولو سره د تعلق پرې كولو حكم

**سوال** د دين عالمان او مفتيان د دې مسئلې په اړه څه وايي چې يو سړي خپل لور بل ته په نكاح وركړه او د هغه لور يې خپله په نكاح واخيستل، د

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: نغمة المرأة عورة...... قال عليه الصلوٰة والسلام: التسبيح للرجال والتصفيق للنساء فلا يحسن أن يسمعها الرجل...... ذكر الإمام ابو العباس القرطبى فى كتابه فى السماع ولا يظن من لا فطنة عنده أنا إذا قلنا صوت المرأة عورة إنا نريد بذلك كلامها...... ولا نجيز لهن رفع أصواتهن ولا تمطيطها ولا تليينها وتقطيعها لما فى ذلك من استمالة الرجال إليهن وتحريك الشهوات منهم ومن هذا لم يجز أن تؤذن المرأة.
(ردالمحتار ١: ٢٩٩ كتاب الصلوٰة، باب شروط الصلوٰة)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: رواه السنن مرفوعا إلى النبى ﷺ بلفظ أن الغناء ينبت النفاق فى القلب، كما فى غاية البيان...... ومانقل أنه عليه الصلوٰة والسلام سمع الشعر لم يدل على إباحة الغناء، ويجوز حمله على الشعر المباح المشتمل على الحكمة والوعظ.
(ردالمحتار ٥: ٢٢٥، ٢٢٦ كتاب الحظر والإباحة، قبيل فصل فى اللبس)

مولوي صاحب په وړاندې د دواړو نه دا وعده واخيستل شوه چې پرده به ضرور کوي، څه وخت وروسته د یوې ښځې ورور بې پردګۍ ته لمن وهل او ويل بې چې څو کسان دي دا به زموږ کور ته بې پوښتنې راځي؛ خو خاوند يې په غوسه کې راغی او دده دا خبره یې ونه منل. په دې باندې مولوي صاحب ده ته څه وويل او د سړي نه بې تعلق پرې کړ. ايا د شريعت له مخې دا جائز دي؟ بينوا توجروا

المستفتي غلام نبی ډی آی خان ...... ۱۳۹۳ هـ / ۶ / ۲۸ /

**جواب:** د سلام وروسته دې واضحه وي چې په سپېڅلي شريعت کې پرده لويه مرتبه لري، د پردې په وجه په معاشره کې د فساد مخه نيول کيږي، ﴿۱﴾ که کوم غير محرم ته په کور کې اجازه ورکول شي؛ ﴿۲﴾ نو خان دې د بوازې والي نه وژغوري. ﴿۳﴾ که ښځه لوڅه نه وي؛ نو ممنوع نه دي. الا منْ رحِمهُ الله ووفقهُ الله تعالى، لهذا په دې وختونو کې د يا د سړي سره تعلق پرې

---

﴿۱﴾قال الله تبارک وتعالی: وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ......الآية.

وقال العلامة القرطبی رحمه الله تعالی: وهذا يدل على أنه لا ينبغي لأحد أن يثق بنفسه فى الخلوة مع من لاتحل له فإن مجانبة ذلک أحسن لحاله وأحصن لنفسه وأتم لعصمته.

(تفسير القرطبی ۱۶: ۲۰۲ سورة الأحزاب آيت: ۵۳)

﴿۲﴾قال العلامة الحصكفی رحمه الله تعالی: و إذا أتى دار إنسان يجب أن يستأذن قبل السلام. (الدر المختار ۵: ۲۹۳، كتاب الحظر والإباحة، فصل فی البيع)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالی: وفی الأشباه: الخلوة بالأجنبية حرام...... القول: وقول القنية وليس معهما محرم يفيد أنه لو كان فلا خلوة والذی تحصل من هذا أن الخلوة المحرّمة تنتفی بالحائل، وبوجود محرم أو امرأة ثقة قادرة.

(ردالمحتار ۵: ۲۶۰ كتاب الحظر والإباحة، فصل فی النظر والمس)

کول بنه نه دي. ﴿١﴾ وهو الموفق

## د ښځې عکس ته کتل او خوند ترې اخيستل

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې د ښځې عکس ته کتل او د هغې نه خوند اخيستل څنګه دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: شاه اسمعيل ضلع اټک ..... ١٩٩٩ م / جولائی / ١٥ /

**جواب:** دښځې عکس ته کتل اوخوند ترې اخيستل منع دي. يدلُّ عليهِ حديث أبي داؤدَ ، كأنما ينظرُ اليها ﴿٢﴾ وهو الموفق.

## د وظيفې لپاره شفاخانه کې عورت کتل

**سوال:** د دين عالمان او مفتيان ددې مسئلې په اړه څه وايي چې لکه څرنګه د حکومتونو قانون دی، د وظيفې ورکولو لپاره لومړی د انساني بدن لوڅه معاينه کوي، حال دا چې د ستر مسئله په شريعت کې د قدر وړ ده، ايا د کوم اسلامي حکومت لپاره جائز دي چې د وظيفې لپاره د کوم سړي لوڅ بدن

---

﴿١﴾ عن ابی ایوب الأنصاری رضی الله تعالیٰ عنه قال: قال رسول الله ﷺ: لا يحل للرجل أن يهجر أخاه فوق ثلاث ليال.

وفی المرقاة: (أخاه)..... والمراد به أخوة الإسلام ويفهم منه أنه إن خالف هذه الشريطة وقطع هذه الرابطة جاز هجرانه فوق ثلاثة وفيه أنه حينئذ يجب هجرانه.

(مرقاة المفاتيح ٩: ٢٦١،٢٦٢ باب مانهی عنه من التهاجر والتقاطع الخ)

﴿٢﴾ عن ابن مسعود رضی الله تعالیٰ عنها قال قال رسول الله ﷺ: لا تباشر المرأة المرأة لتنعتها لزوجها كانما ينظر إليها.

(سنن أبی داؤد ١: ٢٩٢ كتاب النكاح، باب مايؤمر به من غض البصر)

معاینه کړي؟ بینوا توجروا

المستفتي: معراج تحصیل چارسده پشاور ..... ۱۴۰۴ هـ / شوال /۱۲/

**جواب**: په موجوده دور کې د وظیفې ترلاسه کولو لپاره خلك په بې غیرتی باندې سترګي پټوي، د امکان تر حده دې کوشش کوي او ددې کار نه دې ځان ساتي «۱» وهو الموفق.

## په بې ږیرو هلکانو باندې ورون یا بدن چاپي کول

**سوال**: د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې زید بنه صحتمند سړی دی، د ځان د خوشحالولو لپاره کله - کله بې ږیري او کله هم بالغ بې ږیري هلکان راغواړي او خپل ورونونه او بدن پرې چاپي کوي، دا لړۍ یو څو دقیقې نه بلکې تر ساعتونو پورې همداسې روانه وي، ایا په شریعت کې د داسې بې ږیرو هلکانو نه دغه خدمت اخیستل جائز دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: عاشق حسین صابر وزیرستان ..... ۱۹۷۲ م / ۶ / ۲۵ /

---

«۱» قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالیٰ: والرابع ستر عورته ووجوبه عام ولوفي الخلوة إلّا لغرض صحيح كتغوّط واستنجاء.

(الدرالمختار ۱: ۲۹۷ كتاب الصلوٰة، مطلب في ستر العورة)

وفي الهندية: ويجوز أن ينظر الرجل إلى الرجل إلّا إلى عورته...... ومن رأى غيره مكشوف السوأة أمره بستر العورة وأدّبه علىٰ ذلك إن لجّ كذا في الكافي، وفي الإبانة كان أبوحنيفة رحمه الله تعالیٰ لا يرى بأسًا بنظر الحمامي إلى عورة الرجل...... ويجوز للرجل النظر إلى الفرج للخاتن وللقابلة وللطبيب عند المعالجة ويغضّ بصره ما استطاع كذا في السراجية، ويجوز للرجل النظر إلى فرج الرجل للحقنة.

(فتاوى هندية ۵: ۳۲۷، ۳۳۰، كتاب الكراهية، الباب الثامن فيما يحل للرجل النظر إليه الخ)

**جواب:** په بې پېرو هلکانو د فتنې پیدا کېدو له امله بدن چاپي کول ناجائز دي، لأنَّ وسیلةَ الحرامِ حرامٌ﴿۱﴾ د فتنې واقع کېدو پرمهال د ورون چاپي کول مختلف فیه ده، احتیاط دا دی چې ونه شي. في الهندیة ۵: ۳۶۴: قالَ أبو جعفرٍ رحمه الله تعالی سمعتُ الشیخَ الامامَ أبابکرٍ محمداً رحمهُ الله تعالی یقولُ لا بأسَ بأنْ یغمزَ الرَّجُلُ الرِّجْلَ الی الساقِ و یکرهُ أنْ یغمزَ الفخذَ و یمسه وراء الثوبِ ، ویقولُ یغمزُ الرجلُ رِجْلَ والدیه ولا یغمزَ فخذ والدیهِ ، والفقیه أبو جعفرٍ رحمه الله تعالی یبیحُ أن یغمز الفخذَ و یمسها وراء الثوبِ و غیرها کذا في الغرائبِ﴿۲﴾وهوالموفق.

## په لاره کې د ښځې او نر د مخامخ کېدو په صورت کې به څوک لاره پرېږدي

**سوال:** د دین عالمان او مفتیان ددې مسئلې په اړه څه وایي چې که یو سړی ته په لاره کې ښځه مخې ته راشي؛ نو دا سړی به څه کوي؟ ایا دا سړی به ښځې ته لاره پرېږدي او که ښځه به سړي ته لاره پرېږدي؟ شرعي مسئله راته

---

﴿۱﴾ قال الله تبارک وتعالیٰ: وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنٰى إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاءَ سَبِيلًا.

قال العلامة ابن کثیر رحمه الله تعالیٰ: یقول الله تعالیٰ ناهیًا عباده عن الزنا وعن مقاربته ومخالطة أسبابه ودواعیه.

(تفسیر ابن کثیر ۳:۵۵ سورة الإسراء آیت: ۳۲)

وقال العلامة ظفر أحمد العثمانی رحمه الله تعالیٰ: قلنا هذا من باب تحریم ذرائع المحرم ولیس هو النظر المحرم لعینه، لأن النظر المحرم لعینه هوالنظر الناشئ من الشهوة کما عرفت، وهذا لیس کذلک، لعما فیه احتمال لأن یکون مفضیًا إلی المحرم وهو النظر بالشهوة وغیر ذلک فحرّمه الفقهاء سدًا للذرائع.

(إعلاء السنن ۱۷:۳۸۹ کتاب الحظر والإباحة، باب زنا العین)

﴿۲﴾ (فتاوی هندیة ۵:۳۲۸ کتاب الکراهیة، الباب الثامن فیما للرجل النظر إلیه الخ)

بیان کړئ! بینوا توجروا

المستفتي: جناب عالم زیب شبقدر چارسده ..... ۱۹۶۹م / ۱ / ۱۹/

**جواب**: دا سړی به خپل نظر لاندې ځمکې سره ساتي، ﴿۱﴾ که ښځه لاره نه پرېږدي؛ نو سړی به ورته لاره پرېږدي ﴿۲﴾ وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ قال الله تبارک وتعالیٰ: قُلْ لِلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ذٰلِكَ اَزْكٰى لَهُمْ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌ بِمَا يَصْنَعُوْنَ.

(سورة النور آیت: ۳۰)

وفی تفسیر ابن کثیر: عن جریر ابن عبد الله البجلی رضی الله تعالیٰ عنه قال سألت النبی ﷺ عن نظرة الفجاة فامرنی أن اصرف بصری..... وفی روایة لبعضهم فقال أطرق بصرک یعنی انظر إلی الأرض والصرف أعم فإنه قد یکون إلی الأرض وإلی جهة أخری.

(تفسیر ابن کثیر ۳: ۳۷۳ سورة النور)

﴿۲﴾ فی المرقدة: عن أبی أسید الأنصاری رضی الله تعالیٰ عنه أنه سمع رسول الله ﷺ یقول وهو خارج من المسجد فاختلط الرجال مع النساء فی الطریق فقال للنساء استأخرن..... المعنی تأخرن عن وسط الطریق وابعدن عن حاقها إلی حافتها (فإنه لیس لکن أن تحققن الطریق)..... أی تذهبن فی حاق الطریق (علیکن بحافات الطریق) أی باطرافها وجوانبها (فکانت المرأة تلصق بالجدار حتی أن ثوبها لیتعلق بالجدار).

(مرقاة المفاتیح ۹: ۹۳، باب الجلوس والنوم والمشی)